بسم الله الرحمن الرحيم

# صفوة التفاسير

پښتو

تألیف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښي د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکی

مولوي شمس الله کمال زاده

المكتبة المعروفية
کوئټه لاهور پاکستان

# صفوة التفاسير

پنځم ټوک

د قرآن کریم هغه تفسیر چې د مأثور او معقول تولګه اوله خورا معتبرو تفسیرونو څخه لکه:
طبري، کشاف، قرطبي، اُلوسي، ابن کثیر، بحر محیط اونورو څخه يې غور چاڼ شوي او په
روانو اونویو اسلوبو چې بیان اولغوي ارخونو ته پکښې پاملرنه شوي لیکل شوي دي.

مؤلف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکي:

## مولوي شمس الله کمال زاده

عنبر التراث ستمبر پبلشرز

المکتبة المعروفیة
(کوئټه) کاسي روډ شالدره کوئټه پاکستان
(لاهور) بادیه حلیمه سنټر غزني سټریټ اُردو بازار لاهور

:03337907394-03353132868
Ph:03159807152-03337907398
E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com
http://www.facebook.com/maktabamarofia

# دکتاب پیژندنه

دکتاب نوم: ------------ پښتو صفوه التفاسیر

تالیف: ------------ الشیخ محمد علي الصابوني رحمه الله

پښتو ژباړه: ------------ مولوي شمس الله کمال زاده

دکمپوزچاري: ------------ مرحوم انجنیرعبدالله گل (ریان) اوزیاته برخه مولوي عبد البصیر

خپرونکي اداره: ------------ المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

دچاپ شمیر: ------------ ۸۰۰ توکه

دچاپ کال: ------------ ۱۴۴۰ هجري قمري د محرم الحرام میاشت

دکتاب ترلاسه کولو پته ------------ المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

منیر انوار پرنٹرز

المکتبة المعروفیة

(کوئټه) کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ پاکستان

(لاہور) ہادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اُردو بازار لاہور

:03337907394-03353132868

Ph:03159807152-03337907398

E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com

http://www.facebook.com/maktabamarofia

## الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَا تُجَٰدِلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ إِلَّا بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُ إِلَّا ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنۡهُمۡۖ وَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا بِٱلَّذِيٓ أُنزِلَ إِلَيۡنَا وَأُنزِلَ إِلَيۡكُمۡ وَإِلَٰهُنَا وَإِلَٰهُكُمۡ وَٰحِدٞ وَنَحۡنُ لَهُۥ مُسۡلِمُونَ ﴿٤٦﴾ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَۚ فَٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ يُؤۡمِنُونَ بِهِۦۖ وَمِنۡ هَٰٓؤُلَآءِ مَن يُؤۡمِنُ بِهِۦۚ وَمَا يَجۡحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴿٤٧﴾ وَمَا كُنتَ تَتۡلُواْ مِن قَبۡلِهِۦ مِن كِتَٰبٖ وَلَا تَخُطُّهُۥ بِيَمِينِكَۖ إِذٗا لَّٱرۡتَابَ ٱلۡمُبۡطِلُونَ ﴿٤٨﴾ بَلۡ هُوَ ءَايَٰتُۢ بَيِّنَٰتٞ فِي صُدُورِ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَۚ وَمَا يَجۡحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٤٩﴾ وَقَالُواْ لَوۡلَآ أُنزِلَ عَلَيۡهِ ءَايَٰتٞ مِّن رَّبِّهِۦۖ قُلۡ إِنَّمَا ٱلۡأٓيَٰتُ عِندَ ٱللَّهِ وَإِنَّمَآ أَنَا۠ نَذِيرٞ مُّبِينٌ ﴿٥٠﴾ أَوَلَمۡ يَكۡفِهِمۡ أَنَّآ أَنزَلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ يُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَرَحۡمَةٗ وَذِكۡرَىٰ لِقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ ﴿٥١﴾ قُلۡ كَفَىٰ بِٱللَّهِ بَيۡنِي وَبَيۡنَكُمۡ شَهِيدٗاۖ يَعۡلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۗ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱلۡبَٰطِلِ وَكَفَرُواْ بِٱللَّهِ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ ﴿٥٢﴾ وَيَسۡتَعۡجِلُونَكَ بِٱلۡعَذَابِ وَلَوۡلَآ أَجَلٞ مُّسَمّٗى لَّجَآءَهُمُ ٱلۡعَذَابُۚ وَلَيَأۡتِيَنَّهُم بَغۡتَةٗ وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ ﴿٥٣﴾ يَسۡتَعۡجِلُونَكَ بِٱلۡعَذَابِ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةُۢ بِٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿٥٤﴾ يَوۡمَ يَغۡشَىٰهُمُ ٱلۡعَذَابُ مِن فَوۡقِهِمۡ وَمِن تَحۡتِ أَرۡجُلِهِمۡ وَيَقُولُ ذُوقُواْ مَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴿٥٥﴾ يَٰعِبَادِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ أَرۡضِي وَٰسِعَةٞ فَإِيَّٰيَ فَٱعۡبُدُونِ ﴿٥٦﴾ كُلُّ نَفۡسٖ ذَآئِقَةُ ٱلۡمَوۡتِۖ ثُمَّ إِلَيۡنَا تُرۡجَعُونَ ﴿٥٧﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُم مِّنَ ٱلۡجَنَّةِ غُرَفٗا تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ نِعۡمَ أَجۡرُ ٱلۡعَٰمِلِينَ ﴿٥٨﴾ ٱلَّذِينَ صَبَرُواْ وَعَلَىٰ رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٥٩﴾ وَكَأَيِّن مِّن دَآبَّةٖ لَّا تَحۡمِلُ رِزۡقَهَا ٱللَّهُ يَرۡزُقُهَا وَإِيَّاكُمۡۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴿٦٠﴾ وَلَئِن سَأَلۡتَهُم مَّنۡ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ وَسَخَّرَ ٱلشَّمۡسَ وَٱلۡقَمَرَ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُۖ فَأَنَّىٰ يُؤۡفَكُونَ ﴿٦١﴾ ٱللَّهُ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦ وَيَقۡدِرُ لَهُۥٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٞ ﴿٦٢﴾ وَلَئِن سَأَلۡتَهُم مَّن نَّزَّلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَأَحۡيَا بِهِ ٱلۡأَرۡضَ مِنۢ بَعۡدِ مَوۡتِهَا لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُۚ قُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِۚ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡقِلُونَ ﴿٦٣﴾ وَمَا هَٰذِهِ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَآ إِلَّا لَهۡوٞ وَلَعِبٞۚ وَإِنَّ ٱلدَّارَ ٱلۡأٓخِرَةَ لَهِيَ ٱلۡحَيَوَانُۚ لَوۡ كَانُواْ يَعۡلَمُونَ ﴿٦٤﴾ فَإِذَا رَكِبُواْ فِي ٱلۡفُلۡكِ دَعَوُاْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ فَلَمَّا نَجَّىٰهُمۡ إِلَى ٱلۡبَرِّ إِذَا هُمۡ يُشۡرِكُونَ ﴿٦٥﴾ لِيَكۡفُرُواْ بِمَآ ءَاتَيۡنَٰهُمۡ وَلِيَتَمَتَّعُواْۚ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُونَ ﴿٦٦﴾ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّا جَعَلۡنَا حَرَمًا ءَامِنٗا وَيُتَخَطَّفُ ٱلنَّاسُ مِنۡ حَوۡلِهِمۡۚ أَفَبِٱلۡبَٰطِلِ يُؤۡمِنُونَ وَبِنِعۡمَةِ ٱللَّهِ يَكۡفُرُونَ ﴿٦٧﴾ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ كَذَّبَ بِٱلۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُۥٓۚ أَلَيۡسَ فِي جَهَنَّمَ مَثۡوٗى لِّلۡكَٰفِرِينَ ﴿٦٨﴾ وَٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ فِينَا لَنَهۡدِيَنَّهُمۡ سُبُلَنَاۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٦٩﴾ ﴾ العنكبوت: ٤٦ - ٦٩

مناسبت:

کله چي الله تعالی دهغو کسانو چي پرته له الله یې نور معبودان نیولي ګمراهي وښوده اوددوی مثال یې دغني (تناو کنبس) دخوني څرګند کړ نودلته یې داهل کتابو لپاره دایمان په بلنه او دعوت کي د نرمي امر وفرمایواو ورپسي یې درسول الله ﷺ په رښتنولي کوټلي دلائل اوبراهین راوړل اودقرآنکریم دصحت اوصدق لپاره یې دلائل وړاندي کړل دسورت په پای کي یې دهغه څه یادونه وکړه کوم چي دتوحید په لاره کي مانع ګرزي او هغه دفاني دنیا په ژوند غولېدل دي اوبیایې دمشرکینو هغه حالت چي پر سختي کي یې الله په یادوي اوپه توحید یې یادوي مګر دسوکالي په وخت کي یې بیاهېرکړي (او مشرکان شي) بیان کړ.

لغتونه:

(بغتة) ناڅاپه نابیره (یغشاهم) پټوي یې له غشآء څخه اخیستل شوی اوغشاء غطاته وایي (لنبوئنهم) په یوځای کي داقامت په توګه اوسېدلوته (بوأ) وایي یعني زه به دوی ته داوسېدلولپاره هستوګنځی ورکړم (غرفا) بالاخاني دجنت لوړي خوني (یؤفکون) ګرزول کاوه شي له حق څخه د باطل په لوري (یبسط) خپروي غوړوي (یقدر) تنګوي (مثوی) هغه ځای چي هلته انسان اوسي.

دنزول سبب:

ابن عباس ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ هغه وخت چي مسلمانان دمشرکانوله ضررڅخه ډېر په څور شول دهجرت امر ورکړ او ورته یې وویل: مدیني ته ولاړشئ اوهجرت وکړئ له ظالمانوسره مه اوسئ هغوی ورته وویل: موږ خوهلته نه سرای لرو اونه څمکه نه داسي خپلوان چي موږته خواړه اوبه راکړي نو داآیت شریف نازل شو: ﴿ وَكَأَيِّن مِّن دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا ٱللَّهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ ﴾ (۱) دآیت ترپایه

تفسیر:

﴿ وَلَا تُجَٰدِلُوٓاْ أَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ إِلَّا بِٱلَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ﴾ اوڅګړې مکوئ (ای مؤمنانو) له اهل کتابو سره مګرپه هغه (خصلت) چي هغه ډېرښه دی (لکه دالله ﷻ دقدرت په نښانوبلنه اویاتنبیه په دلائلو اوبراهینو باندي) ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنْهُمْ ﴾ مګرهغه کسان چي ظلم یې وکړ له دوی څیني (او تاسو سره جنګېږي اودرسره دښمني کوي نوله هغوی سره په توره وجنګېږئ په شدت اوغلظت ورسره مجادله وکړئ. امام فخر رازي وایي چي: که مشرک دیوبد کار دکولو ملاتړلي وه نوله هغه سره دي په سخته رویه رفتار وشي اودهغه دتګلاري دي سپکاوی وکړل شي خوکه چېري کتابیانوچي په کتابونویې ایمان

---

(۱) القرطبي ۱۳/ ۳۶۰

راوړی او په پیغمبرانو هم مکر یوازي په رسول الله ﷺ یې اعتراف ندی کړی احسان کاوو تاسو هم ورسره په هغه ډېرښه خصلت باندي مجادله کوئ مګرهغه کسان چي دوی ظلم کړی او الله ته دولدنسبت کوي اویاوایي چي :الله ثالث ثلاثة (ددرې ګونویودی )نوله هغوی سره دي په سخته رویه مجادله وشي اوددوی جهالت دي ورته څرګندشي (١)﴿ وَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا بِٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَأُنزِلَ إِلَيْكُمْ ﴾ اوووایاست تاسي چي ایمان راوړی دی موږ په هغه (قرآن) چي نازل کړی شوی دی موږ ته او(په هغه کتابونوچي) نازل کړی شوي دي تاسوته (چي تورات، انجیل دی ابوهریرة ﷺ وایي چي اهل کتابوبه تورات په عبراني ژبه لوستل اودمسلمانانرلپاره به یې په عربي تفسیرکاوونو رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسومه دهغوی تکذیب کوئ اومه یې تصدیق کوئ اوداسي وایاست چي موږ ایمان راوړی په هغه کتاب چي موږ ته نازل شوی اوپه هغوچي تاسوته نازل شوي دي (٢)﴿ وَإِلَٰهُنَا وَإِلَٰهُكُمْ وَٰحِدٌ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴾ اوالله زموږ اوالله ستاسویودی اوموږخاص الله ته غاړه ایښودونکي یو(په وحدانیت یې منوحکمونو اوامرونو ته یې غاړه ایږدو ) ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ اوهمداسي (لکه په نوروانبیاوو ) نازل کړی دی موږتاته کتاب (قرآن) ای محمده ! ) ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يُؤْمِنُونَ بِهِۦ ﴾ پس هغه کسان چي ورکړی دی موږ دوی ته کتاب (لکه عبدالله بن سلام اونورملګري یې) ایمان راوړی دوی په دې قرآن ﴿ وَمِنْ هَٰٓؤُلَآءِ مَن يُؤْمِنُ بِهِۦ ﴾ اوځیني له دغومکې والوهغه څوک دي چي ایمان راوړي په دې (قرآن) ﴿ وَمَا يَجْحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا ٱلْكَٰفِرُونَ ﴾ (اونه منکرېږي په آیتونوزموږمګر کافران) یعني اونه منکرېږي زموږ په آیتونوچي خوراڅرګنداوپه دلائلوولاړدي مګر هغه په کفرکي ډوب کافران چي په عنادکي ښخي وروستي پړاوته رسېدلي وي قتاده وایې چي جحد هغه انکارته چي وروسته له معرفت (پېژندګلوي) وي ویل کېږي (٣)﴿ وَمَا كُنتَ تَتْلُواْ مِن قَبْلِهِۦ مِن كِتَٰبٍ وَلَا تَخُطُّهُۥ بِيَمِينِكَ إِذًا لَّٱرْتَابَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴾ (اونه وې ته (ای محمده ! ) چي لوست به تاپخوا له دې قرآنه څخه کوم کتاب( له پخوانیو کتابونونه) اونه به دي لیکه (دغه کتاب) په ښي لاس خپل (اوکه چېري ته لیکونکی اولوستونکی وای ) نوهلته به شک کاوو باطلونکوخلګو ) یعني ای محمده تاخودقرآنکریم ترنزول دمخه لیک اولوست نه پېژاند أمي وې ابن عباس وایې چي رسول الله ﷺ أمي وو نه یې څه لوستل اونه لیکل(٤) که چېري تاسولوستلای لیکلای شوای نوبه کافرانو په قرآنکریم کي شک کاووچي ښایې دغه به یې له پخوانیو کتابونوراخیستي اوالله ته به یې منسوب کړي وي په آیت شریف کي ددې دلیل دی چي دغه قرآن دالله له لوري نازل شوی کتاب

---

(١) التفسیرالکبیر٢٥ / ٧٥

(٢) أخرجه البخاري

(٣) القرطبي ١٣/ ٣٥١

(٤) أخرجه البخاري

دی ځکه هغه اُمي پیغمبردی دغه معجزکتاب چي په پټو چارو اودتېرو اُمتونو په خبرونو ډک دی دوی ته راوړی اودغه دده په رښتنولي ستربرهان اولوړ دلیل دی ابن کثیروایي معناداچي ای محمده تاخو پخپل قوم کي وخت ډېر تېرکړی پخواله دې چي قرآن ورته راوړې ته خونالوستی وې اونه دي څه لیکلای شوای هرسړی دې پېژني چي ته اُمي وې او همداسي رسول الله ﷺ ترپایه پوري څه نه لیکل ، نه یې کوم توری اوحرف لیکلی هغه ﷺ دوحی کاتبان لرل چي وحی به یې ورته لیکله (۱) ﴿ بَلْ هُوَ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ فِى صُدُورِ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ ﴾ (بلکه دغه (قرآن) ښکاره آیتونه دي په سینو دهغو کسانو کي چي هغوی ته علم ورکړی شوی دی) یعني خبره دغسي نه ده لکه چي ظالمان اوباطلونکي یې انګېري بلکه دغه په اعجازڅرګند اوښکاره آیتونه دي دا په ډاګه کوي چي قرآن الهي کتاب دی اودعلماوو په زړونوکي خوندي دی مفسرین کرام وایي چي د قرآنکریم له ځانګړتیاوو څخه دادی چي الله پاک هغه له تغیېراوتبدیل څخه په دوو ډولونو ساتلی لومړی حفظ فی السطور اودوهم یې حفظ في الصدور دی په خلاف دنورو کتابونوچي هغه خویوازي په لیکنه کي راغلی مګرپه سینوکي خوندي شوی نه دی ځکه نوتحریف ورته لاره موندلي ده اوددغه امت په صفتونوکي راغلي چي (انجیلونه یې په سینوکي دي) حسن رحمه الله وایي چي دغه اُمت ته حفظ ورکول شوی دی اوپخوانیوبه خپل کتابونه بې له دې چي له مخي یې ووایي نشو لوستلای اوکله چي به یې پټ او ونغښتل پرته له انبیاوو علیهم السلام نه په هغه څه به نه پوهېدل کوم چي به ددوې په کتاب کي وو ﴿ وَمَا يَجْحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ اونه منکرېږي په آیتونوزموږ (هیڅوک) مګرظالمان (هغه چي په کفر اوعنادکي وروستي پړاوته رسېدلي وي) ﴿ وَقَالُوا۟ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَٰتٌ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ اووایي دغه (دمکې کافران) چي ولي نه نازلوی شي پردغه (محمد) معجزې له لوري د رب دده؟ (چي دده په رښتنولي دلالت وکړي لکه اوښه دصالح ﷺ او یالکړه دموسی اومانده دعیسی علیهما السلام ﴿ قُلْ إِنَّمَا ٱلْءَايَٰتُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ ووایه دوی ته بېشکه همداخبره ده معجزې خاص دالله په نزددي (زماپه لاس نه دي چي معجزې درته راوړم که الله وغواړي معجزې رااستوي اوکه وغواړي منع کوي یې زماپه وس کي نشته) ﴿ وَإِنَّمَآ أَنَا۠ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ اوبېشکه همداخبره ده چي زه ښکاره وېرونکی یم (دالله له عذابه نه داچي معجزې درته راوړم) ﴿ أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ﴾ (آیادوی ته کافي نه دی (له جهته دمعجزې) داچي) بېشکه موږ نازل کړی دی په تاکتاب (قرآن) چي تل پردوی لوستل کېږي) استفهام دتوبیخ لپاره دی یعني مشرکینوته دغه معجزکتاب کافي نه دی چي همېشه یې دوی اوري؟ اوڅرنګه چي دوی دمعجزاتو غوښتنه کوي چي دغه قرآن ستا په نبوت خوراڅرګند دلیل دی ؟ ابن کثیروایي چي الله تعالی ددوی زیات جهل اودعقل خامي بیانوي چي دوی درسول الله په رښتنولي باندي معجزه وغوښتله پداسي حال کي چي هغه داسي معجزکتاب دی چي هیڅ باطل ورته هیڅ لاره نلري اوتر سترو معجزاتو لاستردی ځکه

(۱) مختصرابن کثیر ۳/ ۴۰

چي دوخت فصحاء اوبلغاء يې له مقابلې څخه عاجزدي آيادوی ته داكافي نه ده چي په تاأمي غوندي شخص چي نه ليكلای اونه لوستلای شي داسي كتاب چي دپخوانيوأمتونوپه اخبارومشتمل دي دركړی شوي؟ خكه نووروسته فرمايي: ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَرَحْمَةً وَذِكْرَىٰ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ (بېشكه چي پدې (كتاب قرآن) كي خامخارحمت مهرباني اوپندونه دی لپاره دهغه قوم چي ايمان راوړي) يعني بېشكه چي په نازلولو ددې قرآن عظيم الشان كي په بندګانو سترنعمت دی چي دضلالت اوګمراهي څخه يې ژغورلي اوهمداراز پندپكي شته دهغه چالپاره چي مقصدېې ايمان راوړل دی تعنت اوعنادنه كوي ﴿ قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ شَهِيدًا ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته!) الله زمااوستاسي په مينځ كي شاهد كافي دی (چي زمادرسالت دربښتنولي شاهدي وايي) ﴿ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ چي ورمعلوم دی هرهغه شی چي په آسمانونو كي دی او(هرهغه څه چي) په ځمكه كي دی (كه زه دروغجن يم هغه به راڅخه كسات واخلي) ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوا بِاللَّهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴾ اوهغه كسان چي ايمان يې په باطل راوړي اوپه الله كافران شوي دي هم دوی زيانكاران دي (چي كفريې په ايمان بدل كړی دی) ﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ ﴾ اوبېړه (تلوار) كوي دغه (كفار) په تاپه راتلودعذاب كي (وايي:) ﴿ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ ﴾ اودغه هسي استعجال دی چي تكذيب او استهزآء ورسره دی ﴿ وَلَوْلَا أَجَلٌ مُسَمًّى لَجَاءَهُمُ الْعَذَابُ ﴾ اوكه نه وای هغه نېټه ټاكلي شوی (لپاره دعذاب) نو خامخاراغلي به وو دغو (غوښتونكودعذاب ته) عذاب (سمدلاسه) ﴿ وَلَيَأْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ اوخامخارابه شي (داعذاب) دوی ته يوناڅاپه حال داچي دوی به خبرنه وي (په راتلوا ووخت يې)

﴿ يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ﴾ (بېړه كوي كفارپه تاپه (راتلو) دعذاب (په دنيا كي) حال داچي بېشكه دوزخ خامخاپه كافرانو احاطه كونكی دی) دغه ددوی له عناد او سركښي څخه تعجب دی چي دوی څرنګه په دنياكي دژر راتلونكي عذاب غوښتونكي دي حال داچي ددوزخ عذاب پردوی داسي راګرزېدلی لكه لاس وندی (وښی) په لاس باندي چي خني پټېدلای او تښتېدلای نشي بيايې څرنګوالی داسي بيانوي چي: ﴿ يَوْمَ يَغْشَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ ﴾ (ياد كړه ای محمده هغه) ورځ چي لاندي به كړي دوی عذاب له پاسه (دسرونو) ددوی اوله لاندي د پښو دوی نه (اوله ټولوطرفو نو اولورو) ﴿ وَيَقُولُ ذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ اووبه وايي دوی ته (الله دپرښتو په ژبه) وڅكئ تاسي (خونددسزا) دهغه (عمل) چي وی تاسي كاووبه مو(په دنياكي له استهزاء او ګناهونوڅخه) وروسته الله تعالى له دې چي دمنكرانو كفاروحال يې بيان كړ دمتقيانو نېكانوحال داسي بيانوي چي: ﴿ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ أَرْضِي وَاسِعَةٌ ﴾ (ای زمابندګانوچي ايمان يې راوړی دی بېشكه زماځمكه ارته ده) دغه خطاب دتعظيم اوتشريف لپاره دی چي دهجرت لپاره هځونه او تحريض پكي شته يعني ای هغوكسانوچي الله دځپل عبوديت لپاره مشرف كړي ياست كه چېري تاسو دځپل ايمان په

ځرګندولوکي ستونزي ويني او له ظالمانو سره ګاونډي توب نشي کولای نودالله ځمکه پراخه ده مقاتل وايي دغه دمکې دبېوزلانو په باب نازل شوی دی(۱)﴿ فَإِيَّٰىَ فَٱعْبُدُونِ ﴾ پس خاص ما لره عبادت وکړئ تاسي (نه بل چاته) ﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ ٱلْمَوْتِ ﴾ هريونفس ځکونکی دمرګ دی (خامخا مري)﴿ ثُمَّ إِلَيْنَا تُرْجَعُونَ ﴾ بيا(خاص) موږته (په بعث بعد الموت کي) راوستل کېږي) يعني هر چېري چي ياست مرګ درته راتلونکی دی نوتل دالله په طاعت عبادت کي اوسئ اوچي کله د هجرت درته ووېل شي نوهجرت وکړئ له مرګه خلاصون هېچېري نشته وروسته به بياالله ته دحساب او جزا لپاره راوستل کېږي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ اوهغه (کسان) چي ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه عملونه (يعني دايمان اواعمالواخلاص يې يوځای کړي دي) ﴿ لَنُبَوِّئَنَّهُم مِّنَ ٱلْجَنَّةِ غُرَفًا ﴾ خامخاځای به ورکړو موږ هرومرو دوی ته له جنته په دنګومانيوکي ﴿ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ چي بهېږي لاندي (له ونومانيو) ويالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ نِعْمَ أَجْرُ ٱلْعَٰمِلِينَ ﴾ حال داچي تل به اوسېږي په دغو(مانيو) کي ښه دی اجرددغو عمل کونکو(اوچتي مانۍ په داجنت کي) ﴿ ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴾ هغه (عمل کونکي) چي صبريې کړی (په تکليفونو ګاللودهجرت اوربړونو په لاره دالله کي) او(خاص) پخپل رب باندي توکل کوي (په ټولوچاروکي په البحرالمحيط کي راوړي چي همدغه دخير ښيګڼو، کوچي اومغز دي چي صبرپه تکليفونواودچاروسپارښت الله ته وشي (۲)﴿ وَكَأَيِّن مِّن دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا ﴾ (اوډېردی له خوځېدونکو(په ځمکه) چي نه پورته کوي دوی خپله روزي) يعني ډېر داسي کمزوري ذی روح (ساکښان) دي چي پخپله دروزي په لاس ته راوړلونه توانېږي مګرالله هغوی ته سره له کمزوري ددوی روزي ورکوي ﴿ ٱللَّهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ ﴾ الله رزق رسوي هغوی ته اوتاسي ته هم ،الله ﷻ دټولومخلوقاتودروزي دتکفل وعده فرمايلي ده تاسي له دې مه وېرېږئ چي کله هجرت وکړی روزي به له کومه کوی الله رزاق دی په التسهيل کي وايې چي په آيت شريف کي مقصد دمسلمانانود زړونوتقويه کول دي کله چي دوی دخپلو ټاټوبواو هيوادونو دپرېښودلوپه وخت کي له لوږي اوفقرځخه وېرېږی نولکه چي څرنګه الله دغو کمزورو ساکښانوته روزي ورکوي کله چي تاسي له خپله ښاره اوديار هجرت وکړی داسي به يې تاسي ته هم درکوي ﴿ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ (۳) اوهم دی ښه اورېدونکی (دټولواقوالو ستاسي) ښه پوه دی (په ټولواحوالو ستاسي) بياخبره دمشرکانوتوبيخ اوترټني ته راګرځېدونکه شوه چي دوی څرنګه دغيرالله عبادت کوي؟﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَسَخَّرَ

(۱) زادالمسير ۲۸۱/۶
(۲) البحر ۱۵۷/۷
(۳) التسهيل ۱۱۹/۳

﴿ ٱلشَّمۡسَ وَٱلۡقَمَرَ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ ﴾ اوقسم دی که سوال وکړې ته (له دوی نه ای محمده !) چي چاپیدا کړي دي آسمانونه اوځمکه ؟ اومسخرکړي (په کارېي اچولي) دي لمراوسپوږمۍ نوخامخاهرومروواېي کفاردمکې چي الله (پیداکړي دي یعني ای محمده که ته مشرکانوته دعالم علوي اوسفلي په هکله اوهغه عجائبات او غرائب چي پکې دي وپوښتې چي داچاپیدا کړي دي ؟ اودغه لمر، سپوږمۍ چا په داسي دقیق نظام د بندګانو دمصلحتونو ترسره کولو لپاره تابع کړي دي؟ نودوی به واېي الله ﴿ فَأَنَّىٰ يُؤۡفَكُونَ ﴾ پس څرنګه دوی (له توحیده) ګرزولی شي (سره له دې چي دغه اقرار هم کوي؟ ﴿ ٱللَّهُ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦ وَيَقۡدِرُ لَهُۥٓ ﴾ الله پراخوي رزق لپاره دهرهغه چاچي اراده وکړي (دپراخي ېې) له خپلو بندګانو څخه اوتنګوي ېې په ده (که اراده دتنګي ېې وکړي) اودغه ټول دازموینې لپاره ،چي شاکر اوصابر ښکاره شي ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٞ ﴾ بېشکه چي الله په هرشي ښه عالم دی (هغه کوي چي دده د حکمت اومصلحت غوښتنه وي ﴿ وَلَئِن سَأَلۡتَهُم مَّن نَّزَّلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَأَحۡيَا بِهِ ٱلۡأَرۡضَ مِنۢ بَعۡدِ مَوۡتِهَا لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ ﴾ اوبیاقسم دی چي که سوال وکړې ته له دوی نه ای محمده !) چي چانازل کړي دي له (لوري) دآسمانه اوبه؟ پس ژوندۍ کړي ېې ده په دې اوبوسره ځمکه پس له مرګه (وچوالي) ددې نو خامخاواېي دوی هرومروچي الله (نازلي کړي دي !) یعني که ته له مشرکانوڅخه پوښتنه وکړې چي له آسمانه اوبه چاراوروليچي دول دول مېوې داني اوفصلونه ېې وروسته له وچوالي دځمکي را زرغونه کړي ؟ نودوی به واېي دغه (دالله جل جلاله کاردی ﴿ قُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِۚ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡقِلُونَ ﴾ وواېه(ای محمده !) ټوله ثناالله ته دی بلکه زیاتره ددوی عقل نلري (چي پدې اقرار کوي چي الله رازق اوخالق دی خوله دې سره سره دبل چاعبادت کوي ﴿ وَمَا هَٰذِهِ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَآ إِلَّا لَهۡوٞ وَلَعِبٞۚ ﴾ او ندی دغه ژوندون ددنیامګرعبث اولوبې دي ژرتېرېږي لکه چي ماشومان یوه شېبه لوبې کوي اوبیا سره تېت پرک شي .

﴿ وَإِنَّ ٱلدَّارَ ٱلۡأٓخِرَةَ لَهِيَ ٱلۡحَيَوَانُۚ ﴾ اوبېشکه چي دارآخرت خامخاهم دی دی واقعي ژوندون (چي مړینه اوتلخي نه لري ) ﴿ لَوۡ كَانُواْ يَعۡلَمُونَ ﴾ که چېري وای دوی چي پوهېدلای (نوفاني به ېې په باقي باندي نه غوره کولای ځکه چي دنیاخسیسه اوسپکه ده دالله په وړاندي دماشي دوزرتول نلري [1]﴿ فَإِذَا رَكِبُواْ فِي ٱلۡفُلۡكِ دَعَوُاْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ (پس هرکله چي سپاره شي دوی په بېړۍ نودوی بولي (هلته یوازي) الله په داسي حال کي چي خالص کونکي وي دوی دغه الله ته دین (اعتقاد) دغه په مشرکانو باندي ددریم دلیل راوړل دي چي دوی څرنګه چي سختي اومشکلات ووېني الله بولي اودسوکالۍ اوراحت په وخت کي بیامشرکان شي؟ د﴿ مُخۡلِصِينَ ﴾ په لفظ کي یودول تهکم اواستهزاء

---

[1] په حدیث شریف کي راغلي چي که چېري دنیادغوماشي دوزر غوندي قدرلرلای نوبه ېې کافرته داوبوغوړپ غوندي هم نه وه ورڅکلي.

شته ﴿ فَلَمَّا نَجَّـٰهُمْ إِلَى ٱلْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴾ (پس هركله چي نجات وركړي الله دوى ته وچي ته ناڅاپه دوى بياله الله سره شريكان نيسي (لكه پخوا غوندي) يعني كله چي الله دوى ته دسمندر له ډوبېدلو څخه نجات وركړي اووچي ته راووزي نودوى بيرته كفرغوره كوي اواشراک خوښوي هغه الله چي دوى يې ژغورلي هېروي ﴿ لِيَكْفُرُوا۟ بِمَآ ءَاتَيْنَـٰهُمْ وَلِيَتَمَتَّعُوا۟ ﴾ كافران دي شي دوى په هغه نعمت چي موږ دوى ته وركړي وو او ګټه دي واخلي دوى (په دغه ژوندانه كي) ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ پس ژر به دوى پوه شي (په عاقبت دخپل كار)([1]) امرد تهديد لپاره دى ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا ءَامِنًا وَيُتَخَطَّفُ ٱلنَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ﴾ (آيانه ويني) نه پوهېږي ) چي بېشكه موږ ګرزولى مودى (دابښار ددوى مكه) حرم امن وركونكى (له آفتونو) حال داچي تښتول كېږي نورخلګ له چاپېره ددوى ) يعني آيادغه كفارد پند او عبرت په سترګونه ګوري چي څرنګه مومكه دامن ښار ګرزلى چي نه پكي قتل كېږي اونه څوک بنديانېږي اوله دوى خواوشادغه پېښي كېدونكي دي ضحاک وايي چي د ﴿ وَيُتَخَطَّفُ ٱلنَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ﴾ معناداچي ځيني ځيني نور وژني اوپه اسارت يې نيسي([2]) ﴿ أَفَبِٱلْبَـٰطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ ٱللَّهِ يَكْفُرُونَ ﴾ (آياپس په باطلو معبودانو ايمان راوړي دوى اوپه نعمت دالله (چي په حرم كي اوسېدل اوامن دى) كافران كېږي) يعني آياوروسته له دې سترونعمتونو دوى بياهم په الله كافران اوپه بتانو ايمان راوړي؟ ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِٱلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُۥٓ ﴾ او څوک دى ډېر ظالم له هغه چاچي له ځانه په الله دروغ ونړي اوتكذيب وكړي (دحق قرآن) چي كله ده ته راشي (بلكه ترده بل ډېر ظالم نشته) ﴿ أَلَيْسَ فِى جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَـٰفِرِينَ ﴾ آيانشته په دوزخ كي ځاى دهستوګني لپاره دكافرانو (په آياتونو دالله جزادتكذيب اوكفرددوى)؟ بلكه شته ) ﴿ وَٱلَّذِينَ جَـٰهَدُوا۟ فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ﴾ اوهرچي هغه كسان دي چي جهادكوي تل (له نفس شيطان، خواهشاتو او كفارو سره چي ددين دښمنان دي دالله درضاء لپاره) خامخاوبه ښيوودوى ته لاري خپلي (چي موږته پرې راځي) ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ اوبېشكه الله خامخاله نېكوكارانو سره دى (په مرسته اومدد كي).

بلاغت:

پدې آيتونوكي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادى:

۱- تحضيض اوهڅونه لكه چي فرمايي: ﴿ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَـٰتٌ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾.

---

([1]) دغه دامرمعنادصابوني صاحب دتفسيردى.

([2]) القرطبي ۱۳ / ۳۶۳

٢ - د طباق صنعت لکه دا کلام ﴿ ءَامَنُوا۟ بِٱلْبَٰطِلِ وَكَفَرُوا۟ بِٱللَّهِ ﴾ .

٣ - د حصر افاده چي پدې کلام کي شته ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ يعني نه بل څوک

۴ - اطناب چي څوځله دعذاب یادونه شوي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلْعَذَابِ ۚ وَلَوْلَآ أَجَلٌ مُّسَمًّى .... يَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلْعَذَابِ .... وَإِنَّ جَهَنَّمَ .... يَوْمَ يَغْشَىٰهُمُ ٱلْعَذَابُ ﴾ تر پايه پوري

۵ - اضافت د تشريف او تکريم لپاره لکه دلته ﴿ يَٰعِبَادِىَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ﴾ .

٦ - د طباق صنعت ﴿ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ وَيَقْدِرُ ﴾ او همداسي ﴿ أَفَبِٱلْبَٰطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ ٱللَّهِ يَكْفُرُونَ ﴾ .

٧ - عقلي مجاز چي پدې کلام کي دی ﴿ حَرَمًا ءَامِنًا ﴾ يعني اهل دهغه .

٨ - بليغه تشبيه چي پدې آيت شريف کي دی ﴿ وَمَا هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَآ إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ ﴾ چي په اصل (كاللهو، كاللعب ) وو د تشبيه ادوات او وجه دشبه حذف شوه نو بليغه تشبيه وگرزېده لکه چي وايي زيد زمری دی.

٩ - ايجاز بالحذف چي د شرط ځواب حذف شوی ځکه چي سياق وربانـدي دلالت کوي هلته چي فرمايي: ﴿ لَوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ﴾ يعني که چېري پوهېدای نو دنيا به يې په آخرت او فنا په بقانه بدلولای او غوره کولای.

١٠ - د فواصلو مراعت کول چي د کلام رونق او جمال زياتوي او په اورېدلو کي خانگړي اغيزه لري لکه ﴿ أَفَبِٱلْبَٰطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ ٱللَّهِ يَكْفُرُونَ.... بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ .... إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴾ .

تنبيه: مسلمان ته نه ښايي هلته چي د الله عبادت کول ورته گران وي واوسي د الله ځمکه پراخه ده او په آيتونو کي دهجرت وجوب ته اشاره ده چي دارالاسلام ته دي ورشي او لکه چي ويل شوي دي (كل مكان ينبت العز طيب) هرچېري چي عزت شته هغه ښه دی.

د الله په مرسته دالعنکبوت سورت تفسير بشپړ شو.

***

## دالروم سورت مکي اوشپېته آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

* الروم سورت مکي اوهدفونه يې همغه دمکي سورتونودي چي دعقيدې قضاياوي څېړي اودهغوی عمومي چوکاټ اوپراخ ډګرچي ايمان په وحدانيت، رسالت اوبعث اوجزاء دی تعقيبوي.

* دسورت پيل په يوغيبي مهم خبرچي پخواله پېښېدويې قرآنکريم وړاندوينه کوي پيلېږي هغه چي کله پدې نژدې کي ددوی تر مينځ جګړه پېښه شي روميان به په فارسيانوبری مومي اوهمداسي وشول لکه چي قرآنکريم فرمايلي وو اونبوت څرګندشوهمدغه درسول الله صلی الله عليه وسلم په رسالت يوډېر څرګند دليل دی چي کوم څه يې راوړي هغه وحی اودقرآن له خورا لوړو معجزاتو څخه ګڼل کېږي.

* بياسورت دهغې جګړې حقيقت ښيي کومه چي درحمن اوشيطان دپلويانوترمينځ وي دغه جګړه ډېره پخوانۍ ده چي له ژوندانه سره سمه راروانه ده دغه جګړه به ترهغو ونه درېږي څوحق اوباطل شتون لري شراوخير موجودوي اوشيطان خپلې لښکري راغونډوي اودالله دنورله مينځه وړلوهلې ځلې کوي دانبياووعليهم السلام ددعوت مخه نيسي اوپه دې آيتونوکي داسي دلائل اوشواهدشته چي حق په باطل بری مومي اودغه په ټولو زمانواو وختونوکي راځي دغه دالله سنت دی. ولن تجد لسنة الله تحويلا.

* بياسورت دقيامت خبري کوي اودکفارو ګمراهانوبرخه ليک رااخلی چي په دغه سخته ورځ به څرنګه له کړاوونو کړېږي؟ هلته چي مؤمنان به په پراخو باغچود جنت کي خوښ اوهوساوي اوکفاربه په عذاب کي اوړي رااوړي وروستی تم ځای به ددوړو ډلوجلاجلا وي اوحقيقي بری اوربښتوني بدمرغي همدغه دي.

* وړپسې سورت دکائناتوځيني مشاهد راوړي اوغيبي دلائل وړاندي کوي هغه چي دالله ﷻ په قدرت اووحدانيت ګواه دي ترڅودالله په عظمت اوجلال باندي دليل شي هغه چي دهغه په وړاندي غاړې کږېږي اودمنني سرونه ورته ټيټېږي چي دلته الله ځيني مثالونه دهغوچي درحمان عبادت کوي اودهغوچي دبتانوعبادت کوي رااخلي.

* په پای کي سورت دقريشي کفارو خبر راوړي هغوته چي آيتونه اواخطارونه ګټه نه ور رسوي اوهر څومره دقدرت نښانې اوڅرګنددلائل چي ووينې بياهم پندنه اخلي اونه لاري ته راځي دوی لکه مړي داسي دي چي نه اوري ، نه ويني همدغه ګردبيانونه درسول الله ﷺ دتسليت اودلاساينې په مقصد چي هغه له مشرکانوډېرتکاليف ليدل نوهغه ته دصبرمارښنه ده چي څوپوري مرسته اونصرت مومي زغم دي ولري.

## تسمیه او نو مول:

څکه ورته سورة الروم وايي چې دغه ښرګنده معجزه هغه چي دقرآنکريم په ربښتنولي دلالت کوي پکي راغلي فرمايي: ﴿الٓمٓ غُلِبَتِ ٱلرُّومُ فِىٓ أَدْنَى ٱلْأَرْضِ وَهُم مِّنۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُونَ فِى بِضْعِ سِنِينَ﴾ او دغه دقرآنکريم له څيني معجزاتو څخه ګڼل کيږي

## الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿الٓمٓ ﴿١﴾ غُلِبَتِ ٱلرُّومُ ﴿٢﴾ فِىٓ أَدْنَى ٱلْأَرْضِ وَهُم مِّنۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُونَ ﴿٣﴾ فِى بِضْعِ سِنِينَ ۗ لِلَّهِ ٱلْأَمْرُ مِن قَبْلُ وَمِنۢ بَعْدُ ۚ وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴿٤﴾ بِنَصْرِ ٱللَّهِ ۚ يَنصُرُ مَن يَشَآءُ ۖ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٥﴾ وَعْدَ ٱللَّهِ ۖ لَا يُخْلِفُ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦﴾ يَعْلَمُونَ ظَٰهِرًا مِّنَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ ٱلْءَاخِرَةِ هُمْ غَٰفِلُونَ ﴿٧﴾ أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِم ۗ مَّا خَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ وَأَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكَٰفِرُونَ ﴿٨﴾ أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَانُوٓا۟ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَأَثَارُوا۟ ٱلْأَرْضَ وَعَمَرُوهَآ أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوهَا وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ ۖ فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٩﴾ ثُمَّ كَانَ عَٰقِبَةَ ٱلَّذِينَ أَسَٰٓـُٔوا۟ ٱلسُّوٓأَىٰٓ أَن كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَكَانُوا۟ بِهَا يَسْتَهْزِءُونَ ﴿١٠﴾ ٱللَّهُ يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿١١﴾ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يُبْلِسُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿١٢﴾ وَلَمْ يَكُن لَّهُم مِّن شُرَكَآئِهِمْ شُفَعَٰٓؤُا۟ وَكَانُوا۟ بِشُرَكَآئِهِمْ كَٰفِرِينَ ﴿١٣﴾ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَتَفَرَّقُونَ ﴿١٤﴾ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَهُمْ فِى رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ ﴿١٥﴾ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَلِقَآئِ ٱلْءَاخِرَةِ فَأُو۟لَٰٓئِكَ فِى ٱلْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴿١٦﴾ فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴿١٧﴾ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ ﴿١٨﴾ يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ ٱلْحَىِّ وَيُحْىِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ وَكَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴿١٩﴾﴾ الروم: ۱ - ۱۹

## لغتونه:

(يغلبون) مات به شي (اثاروا الارض) څمکه يې وکرله دکښت لپاره يې واړوله (السوء آ) د(اسوا) تانيث دی لکه چي (حسنی) د(أحسن) تانيث دی او(سوءای) متناهي عذاب ته وايي (يحبرون) خوشحاله به وي جوهري وايي چي (حبر) (سرور) ته وايي يعني په نعمت اونبه حالت کي به خوشحاله وي (عشيا) له مابنامه نيولي ترماسخوتن تياري پوري وخت ته وايي (تظهرون) دغرمي په وخت کي ورګډ هدلوته وايي.

تفسير:

﴿ الٓمٓ ﴾ له مقطعاتو حروفو څخه دی څود قرآنکریم په اعجازدلالت وکړي (١)﴿ غُلِبَتِ ٱلرُّومُ فِيٓ أَدۡنَى ٱلۡأَرۡضِ ﴾ مغلوب کړی شو(اهل د ) روم په متصله (نژدې) ځمکه کي (دفارس ځمکي ته) ﴿ وَهُم مِّنۢ بَعۡدِ غَلَبِهِمۡ سَيَغۡلِبُونَ ﴾ اودغه (روميان) وروسته له دغه مغلوبيت ددوی ژربه غالب شي (په فارسيانو باندي ﴿ فِي بِضۡعِ سِنِينَۗ ﴾ په څوکاله کي يعني په دومره موده کي چي څوکاله به زيات نه وي (بضع) له دريوکالونو نيولي ترنهوکالونوپوري مودې ته وايې . مفسرين کرام ليکي چي دفارسيانواو روميانوترمينځ جګړه ونښته اوفارسيان په روميانوغالب شول دغه خبره رسول الله ﷺ ته ورسېده اواصحابان ﷺ خبرشول اوسخته ورته ښکاره شوه خوابدي شول مشرکان پدې خوشحاله شول ځکه چي فارسيان آتش پرسته مجوسيان وو اوکتاب يې نه لاره او روميان خواهل کتاب وو مشرکانو اصحابوته وويل تاسوخواهل کتاب ياست اوروميان هم کتابيان دي موږ چي بې کتابه اُميان يوزموږ ورونه فارسيان ستاسو په ورونو روميانوغلبه وموندله همداسي به موږ پرتاسو بری مومو ابوبکرصديق ﷺ ورته وويل الله مودا آرمان نيمګړی کړه (لايقرالله أعينکم) نوالله داآيت راواستاوو ﴿ وَهُم مِّنۢ بَعۡدِ غَلَبِهِمۡ سَيَغۡلِبُونَ فِي بِضۡعِ سِنِينَۗ ﴾ اودجګړې په اووم کال بيا لښکري سره ښکرېه ښکرشوې اوروميانوفارسيان راوپرزول مسلمانان پدې خوشحاله شول ابو السعودوايې :چي دغه آيتونه له ښکاره معجزاتود قرآنکريم څخه دي چي درسول الله دنبوت په رښتنولي شاهدي وايې اوداچي قرآنکريم دالله جل جلاله له لوري رانازل شوی کتاب دی چي له داسي پټوخبروڅخه پرده پورته کوي چي له الله پرته بل هيچاته معلوم نه دی اولکه څرنګه چي يې وراندوينه کړي وه هغسي وشول (٢) بيضاوي وايې چي دغه آيت شريف دنبوت دليل دی چي له غيبوڅخه يې خبر راوړی (٣)﴿ لِلَّهِ ٱلۡأَمۡرُ مِن قَبۡلُ وَمِنۢ بَعۡدُۚ ﴾ (خاص الله ته دی حکم امرپخوااو اوس ) ترپخواله غلبې او اوس وروسته له هغې دغه ټول دالله په فيصله کېږي ابن جوزي رحمه الله وايې معناداچي غلبه دغالب اومغلوبيت دمغلوب دالله په حکم اوقضاء سره کېږي (٤)﴿ وَيَوۡمَئِذٖ يَفۡرَحُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴾ او په دغه ورځ(دغلبې دروم په فارس)خوشحاله به شي مؤمنان(په غلبه دکتابيانوپه فارسيانومجوسيانو باندي ځکه اهل کتاب ترمجوسيانومؤمنانوته نژدې دي اوهمداسي دغه فتح دبدر دورځي له بري سره سمون پيدا کړ ابن عباس ﷺ وايې چي دبدرورځ دبتانو او اوردعبادت کونکولپاره دماتي ورځ وه .

---

(١) وګوره هغه څه چي موږ دالبقرة سورت په پيل کي ليکي دي.
(٢) ابوالسعود٤ / ١٧٦
(٣) البيضاوي٢ / ١٠٣
(٤) زاد المسير٢ / ٢٨٨

﴿ بِنَصْرِ ٱللَّهِ يَنصُرُ مَن يَشَآءُ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ (په نصرت دالله (له کتابیانوسره په مجوسیانو) مرسته کوي الله له هرهغه چاسره چي دنصرت اراده يې وکړي هم دی بنه غالب ډېر رحم والادی) يعني الله خپلوبندګانوته مرسته ورکوي اوهغه زورور ذات دی چي له دښمنانوکسات اخلي اوپه خپلو دوستانوډېررحم کونکی دی ﴿ وَعْدَ ٱللَّهِ لَا يُخْلِفُ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥ ﴾ وعده کړي ده الله (وعده کول) الله له خپلي وعدې خلاف نه کوي (ځکه چي وعده يې حق اووينايې ربښتياده) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليکن زياتره خلګ نه پوهېږي (يدې له جهله اوبې عقلي ځخه چي دالله په وعده کي خلاف نشته) ﴿ يَعْلَمُونَ ظَٰهِرًا مِّنَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ (بلکه) پوهېږي په ښکاره سطحي شيانوله دغه ژوند ددنياڅخه هغه چي ددوی مصالح لکه زراعت، تجارت، تعميرات اوداسي نوري چاري تشکيلوي ابن عباس وايي دوی ته دژوندانه چاري ورمعلومېږي چي کله به کښت کرونده کوي کله به يې ربيې، کله به درختي کېنوي اوڅرنګه به کور ودانوي؟[1] ﴿ وَهُمْ عَنِ ٱلْـَٔاخِرَةِ هُمْ غَٰفِلُونَ ﴾ (حال داچي دوی له آخرت نه هم دوی غافلان دي) يعني دوی دآخرت له چارو ړانده دي چي دآخرت لپاره سوچ وکړي اويادآخرت کاروکړي امام فخر رازي وايي: دآيت معناداچي ددوی علم په دنياکي راګېردی خوسره له دې دنياهم هغسي نه پېژني لکه چي ده، دوی يې يوازي سربېره سطحي پېژني چي هغه يې لذتونه اوهوسونه لوبيي دي اودننه باطن يې ورته معلوم نه دی چي داکړاوونه اوتاوانونه لري دوی ته يې برسېره معلوم دی اوپه آخوا فنايي نه پوهېږي له آخرت څخه غفلت کونکي دي[2] ښايي چي په دغه تعبيرد ﴿ ظَٰهِرًا ﴾ کي دي دې ته اشاره وي چي دوی يوازي پټوکي (قشر) پېژندلی مغز يې هډوپېژندلی نه دی ددوی پوهه دڅارويو (حيواناتو) پوهه ده ﴿ أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِم ۗ مَّا خَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ وَأَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ (آيافکرنه کوي دوی پخپلو ځانونوکي چي نه دي پيداکړي الله دغه آسمانونه اوځمکه اوهرهغه څه چي په مينځ ددغو دوارو کي دي مګرپه حقه اوپه ټاکلي نېټې سره) يعني دوی فکرنه کوي په خپلوعقلونوچي وپوهېږي الله هغه عظيم اوجليل ذات ٥ی چي ځمکه اوآسمانونه يې عبث نه دي پيداکړي بلکه ديورسېدلي حکمت له مخي يې پنځولي دي چي په يوه ټاکلي نېټې به له مينځه ځي چي هغه دقيامت ورځ ده؟ قرطبي وايي چي پدې کي دفناء راتلوپاره تنبيه نغښتي ده چي هرمخلوق اجل لري اوداچي نيکوکارته به ثواب اوبدکارته جزاورکولی شي[3] ﴿ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكَٰفِرُونَ ﴾ اوبېشکه چي ډېرله خلګو (کفارو) په ملاقات درب خپل (په قيامت کي) خامخا منکران دي (چي بعث اوجزانشته) ﴿ أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ ﴾ (آيانه ګرزي دغه کفار په ځمکه کي پس ودي ګوري داچي څرنګه وه آخره خاتمه دهغو کسانوچي تردوی پخواتېرشوي دي) يعني

---

[1] القرطبي ۱۴/۷
[2] التفسيرالکبير ۲۵/۹۷
[3] القرطبي ۱۴/۷

آبادوی سفرونه کړي چي دوی دهلاک شوو کندوالې ووینې او وپوهیږې چي هغه کسان چې دخپلو انبیاوو تکذیب یې کاوو هغوی هلاک شوي نو به دوي عبرت اخیستی وو ﴿ كَانُوٓاْ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ﴾ ووهغه پخواني اُمتونه ډېر سخت له دغو (کفارو) له جهته دقوت) یعنې قوی بدنونه زیات مالونه اولادونه یې درلودل ﴿ وَأَثَارُواْ ٱلْأَرْضَ وَعَمَرُوهَآ أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوهَا ﴾ او خیرولې به دوی ځمکه (لپاره داستخراج د معادنو، کښتونو کرلو او مانۍ جوړولو لپاره) او ودانه کړي وه (پخوانیو کفارو) دغه ځمکه ډېره له هغې ځمکې نه چې دوی ودانه کړي وه داځمکه بیضاوي وایې چې دغه دمکې په کفارو باندې تهکم او استهزاده یعني دوی خوپه دنیامغروره دې خودوی ډېر کمزوري دې ځکه چې دوی خوپه ښارونو کې پراخې لتوې په خلگو برلاسي غوارې اودځمکې په گوټ گوټ کې تعمیرات اوودانۍ جوړوي پداسي حال کې چې دوی داسي ځای ته فناوروري چي گته پکي نشته (۱) ﴿ وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ اوراغلي وودوی ته رسولان ددوی په ښکاره دلائلو (دقدرت اومعجزو) خودوی یې تکذیب وکړ) ﴿ فَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴾ اونه وو الله چي پردوی باندې ظلم وکړي ولاکن وودوی چې پر خپلو ځانونو به یې ظلم کاوو (په کفر او تکذیب کولو نودهلاکت وړ او مستحق وگرزېدل ﴿ ثُمَّ كَانَ عَٰقِبَةَ ٱلَّذِينَ أَسَٰٓـُٔواْ ٱلسُّوٓأَىٰٓ ﴾ بیاوه آخره خاتمه دهغو کسانو چي بدیې کړي وو ډېره بده (چي ددوزخ اوردی) ﴿ أَن كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَكَانُواْ بِهَا يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ پدې سبب چي دوی تکذیب کړی دی دالله دآیتونو او وودوی چي (دالله په آیتونو به یې) ملنډې وهلې ﴿ ٱللَّهُ يَبْدَؤُاْ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ الله اول ځل خلگ پیداکوي (پخپل قدرت) بیایې رااعاده کوي (وروسته له مرگه) بیابه خاص همدغه الله جل جلاله ته بېول کېږئ تاسي (لپاره دحساب اوجزاء) ﴿ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يُبْلِسُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ (اوپه هغه ورځ چي قیامت قائم شي ناهیلي (زړه ماتي) به شي ظالمان) یعني کله چي قیامت قائم شي اوخلگ دحساب لپاره راټول کړل شي نومجرمان به چوپه خوله پاتي شي دلیل به ورته پاتي نشي شونډي به نشي خوځولای ابن عباس وایي ﴿ يُبْلِسُ ﴾ ناامیده به شي اومجاهد وایې رسوابه شي قرطبي وایې چي په لغت کې مشهوره داده چي کله څوک ووایې (أبلس الرجل) هغه چي چوپه خوله پاتي شي اودلیل یې نه وي ﴿ وَلَمْ يَكُن لَّهُم مِّن شُرَكَآئِهِمْ شُفَعَٰٓؤُاْ ﴾ اونه به وي دوی ته له خپلو شریکانو ددوی کوم شفاعت کونکی (چي شفاعت به وکړي) ﴿ وَكَانُواْ بِشُرَكَآئِهِمْ كَٰفِرِينَ ﴾ اوشي به دوی له خپلو شریکانو بېزاره منکران ﴿ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَتَفَرَّقُونَ ﴾ اوپه هغه ورځ چي قیامت قائم شي په دغه ورځ کې تارپه تارخپاره به شي ټول مخلوقات، دقیامت دقیام لفظ یې دوېروني اوتخویف لپاره مکرر راوور ځکه دغه یوهیښوونکی حالت دی او مؤمنان کافران به سره بېلېږي یوه ډله به جنت ته اوبله

(۱) البیضاوي ۲/ ۱۰۳

به دوزخ ته درومي څکه فرمايي: ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ پس هرهغه (کسان) چي ايمان يي راوړی دی او کړي يي دي ښه (عملونه هغه چي ايمان او اعمال صالحه يي يوځای کړي) ﴿ فَهُمْ فِي رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ ﴾ پس دوی به دجنت په روضه کي خوشحاله کړی شي ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَلِقَآيِٕ ٱلْءَاخِرَةِ ﴾ او هرهغه کسان چي کافران شوي دي او دروغجن يي شمېرلي دي آيتونه د (قرآن) زموږ او (کافران دي) په ملاقات دآخرت (بعث بعد الموت) باندي ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ فِي ٱلْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴾ پس دغه کسان په عذاب کي حاضر کړی شوي دي (تل ترتله) ﴿ فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴾ پس (تسبيح ووايي د (الله) کله چي داخل شي په بېگاه کي او کله چي ننوزي په سباکي ( يعني د الله تنزيه له ټولو صفاتو دنقصان څخه وکړی او هغه وستايي) ﴿ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ ﴾ او خاص هم ده ته دټولو ثناصفت دی په آسمانونو کي او په ځمکه او کله چي ننوزي په آخردورځي کي او کله چي ننوزي په وخت دماسپښين کي. ابن عباس ﷺ وايي چي اهل السماوات او اهل الارض يي ثناوايي او ورته لمنځونه کوي[1] مفسرين کرام وايي چي ﴿ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ اعتراضيه جمله ده او اصل کلام همغه ﴿ فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ ﴾ دي او حکمت پدې کي دې لوري ته اشاره کول دي چي دعبادت توفيق نعمت دی ښايي چي ورباندي حمد وويل شي (العشي) دماښام له لمانځه ترتياري خپرېدو پوري ﴿ تُظْهِرُونَ ﴾ کله چي په ماسپښين کي ورګډېږي ﴿ يُخْرِجُ ٱلْحَيَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ ٱلْحَيِّ ﴾ راوباسي (الله) ژوندی له مړي (لکه مؤمن له کافره ،مرغه له هګۍ) او راوباسي (الله) مړی له ژوندي (لکه جاهل له عالمه ،نطفه له حيوانه) ﴿ وَيُحْيِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَكَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴾ او ژوندی کوي ځمکه پس له مرګه (وچوالي) دهغې او په مثل (درا ايستلو ددې شيانو) راايستل کېږی تاسي (له قبرونو څخه لپاره دحساب جزاء په ورځ دقيامت کي. قرطبي وايي چي الله ﷻ دخپل قدرت کمال بيان کړنولکه چي ځمکه دنباتاتو په را زرغونولو وروسته له وچوالي راژوندی کوي همداسي به تاسي په بعث بعد الموت کي راژوندي کړي[2])

بلاغت:

پدې آيتونو کي چي دبديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيي دادی:

۱-دطباق صنعت لکه ﴿ غُلِبَتِ ... سَيَغْلِبُونَ ﴾ او د ﴿ قَبْلُ ... بَعْدُ ﴾ ترمينځ.

۲-دسلب طباق چي فرمايي: ﴿ لَا يَعْلَمُونَ ... يَعْلَمُونَ ظَٰهِرًا مِّنَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾

---

(1) القرطبي ۱۴/۱۰

(2) القرطبي ۱۴/۱۲

۳- دمبالغې صيغه ﴿ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ يعني ښه زورور ښه رحم والا.

۴- دضمير تكرار د حصر د افادې لپاره لكه ﴿ وَهُمۡ عَنِ ٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ غَٰفِلُونَ ﴾ او دا چې اسميه جمله يې راوړه ترڅو چې ددوى دغفلت په استمرار او دوام دلالت وكړي.

۵- انكار او توبيخ چې پدې آيت كې شته: ﴿ أَوَلَمۡ يَسِيرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَيَنظُرُواْ ﴾.

۶- اشتقاقي جناس لكه ﴿ أَسَٰٓـُٔواْ ٱلسُّوٓأَىٰٓ ﴾ ترمينځ.

۷- بيا طباق چې د ﴿ تُمۡسُونَ ... تُصۡبِحُونَ ﴾ ترمينځ.

۸- مقابله چې دنېكمرغه كسانو او بد مرغانو د حال ترمينځ دى فرمايي: ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَهُمۡ فِي رَوۡضَةٖ يُحۡبَرُونَ ۝١٥ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَلِقَآيِٕ ٱلۡأٓخِرَةِ فَأُوْلَٰٓئِكَ فِي ٱلۡعَذَابِ مُحۡضَرُونَ ﴾.

۹- باريكه استعاره پدې كلام كې ﴿ يُخۡرِجُ ٱلۡحَيَّ مِنَ ٱلۡمَيِّتِ ﴾ دلته يې ژوندى د مؤمن لپاره استعاره كړا و مړى يې د كافر لپاره او دغه خورا ښكلې او آغلې استعاره ده چې په ښايست او جمال كې وتلې ده.

۱۰- دفواصلو مراعات كول چې په سمع باندې اغيز پرې باسي لكه ﴿ فِي رَوۡضَةٖ يُحۡبَرُونَ ... فِي ٱلۡعَذَابِ مُحۡضَرُونَ ... تُرۡجَعُونَ ﴾ او نورو ځايونو كې.

لطيفه:

زمخشري وايي چې د الله تعالى دا وينا چې فرمايي: ﴿ يَعۡلَمُونَ ظَٰهِرٗا مِّنَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾ پدې دلالت كوي چې دنيا ظاهر او باطن لري ظاهري هغه څه دي چې جهال يې په ښايست، ښكلا، سوكالي او خوندونو كې وينې او باطن او حقيقت يې بيا هغه دي چې د آخرت لپاره پكې توښه برابره شي طاعات، عبادات او نيک اعمال پكې ترسره كړي.[1]

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنۡ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٖ ثُمَّ إِذَآ أَنتُم بَشَرٞ تَنتَشِرُونَ ۝٢٠ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنۡ خَلَقَ لَكُم مِّنۡ أَنفُسِكُمۡ أَزۡوَٰجٗا لِّتَسۡكُنُوٓاْ إِلَيۡهَا وَجَعَلَ بَيۡنَكُم مَّوَدَّةٗ وَرَحۡمَةًۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَتَفَكَّرُونَ ۝٢١ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ خَلۡقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَٱخۡتِلَٰفُ أَلۡسِنَتِكُمۡ وَأَلۡوَٰنِكُمۡۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّلۡعَٰلِمِينَ ۝٢٢ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ مَنَامُكُم بِٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ وَٱبۡتِغَآؤُكُم مِّن فَضۡلِهِۦٓۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَسۡمَعُونَ ۝٢٣ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ يُرِيكُمُ ٱلۡبَرۡقَ

[1] الكشاف ۳ / ۳۶۸

خَوْفًا وَطَمَعًا وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَيُحْيِي بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٢٤﴾ وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ تَقُومَ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ بِأَمْرِهِ ثُمَّ إِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً مِنَ الْأَرْضِ إِذَا أَنْتُمْ تَخْرُجُونَ ﴿٢٥﴾ وَلَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ كُلٌّ لَهُ قَانِتُونَ ﴿٢٦﴾ وَهُوَ الَّذِي يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢٧﴾ ضَرَبَ لَكُمْ مَثَلًا مِنْ أَنْفُسِكُمْ هَلْ لَكُمْ مِنْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ مِنْ شُرَكَاءَ فِي مَا رَزَقْنَاكُمْ فَأَنْتُمْ فِيهِ سَوَاءٌ تَخَافُونَهُمْ كَخِيفَتِكُمْ أَنْفُسَكُمْ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٢٨﴾ بَلِ اتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَهْوَاءَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَمَنْ يَهْدِي مَنْ أَضَلَّ اللَّهُ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ ﴿٢٩﴾ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٠﴾ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ وَاتَّقُوهُ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٣١﴾ مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٣٢﴾ وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا أَذَاقَهُمْ مِنْهُ رَحْمَةً إِذَا فَرِيقٌ مِنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾ أَمْ أَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوا بِهِ يُشْرِكُونَ ﴿٣٥﴾ وَإِذَا أَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوا بِهَا وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ ﴿٣٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٣٧﴾ فَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٣٨﴾ وَمَا آتَيْتُمْ مِنْ رِبًا لِيَرْبُوَ فِي أَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُو عِنْدَ اللَّهِ وَمَا آتَيْتُمْ مِنْ زَكَاةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُونَ ﴿٣٩﴾ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ مَنْ يَفْعَلُ مِنْ ذَٰلِكُمْ مِنْ شَيْءٍ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٤٠﴾ الروم: ٢٠ - ٤٠

**مناسبت:**

کله چي الله تعالی په آخرت کي دخلکو احوال یادکړل اوپه پیدا اینښت او اعاده یې خپل قدرت وښوده دلته یې پخپل ربوبیت اووحدانیت باندې هغه دلائل چي بشریې پنځولی مختلف صورتونه او ژبې یې وربښلي ځمکې یې په باران ودانې کړې دخلکو دخوب آرام اوروزگارچاري یې پرمخ ببولي بیان کړل بیایې دمشرکانو لپاره مثالونه راوړي چي هغوی څرنګه دغیرالله عبادت کوي سره له دې چي الله خالق اورازق دی ؟!

**لغتونه:**

(آیاته) دآیت جمع اوپه ربوبیت اووحدانیت باندې علامې ته وایي (تنتشرون) انتشاردژوندانه په شئونوکي خپرېدلوته وایي (لتسکنوا الیها) څوتاسي هغوی ته میلان ونیسی اوالفت ومومی (قانتون) دهغه ارادې ته

غاړه اېښودونکي (المثل الاعلى) په کمال او جلال کي ستروصف (القيم) سم برابر چي کړ والی پکي نه وي (منيبين) له انابت څخه اخيستل شوی چي په توبه او اخلاص سره رجوع کولو ته وايي.

تفسير:

﴿ وَمِنْ ءَايَـٰتِهِۦٓ أَنْ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ﴾ اويوه له ښنو (دقدرت) ددغه (الله) داده چي پيدايي کړی (اصل) دتاسي له خاورو (چي آدم عليه السلام وو او اضافت دپيدا اېښت يې څکه دوی ته وکړچي آدم دبشر اصل وو ﴿ ثُمَّ إِذَآ أَنتُم بَشَرٌ تَنتَشِرُونَ ﴾ (بيا اوس تاسي يی بشر خور پړی) يعني بيا وروسته تاسي اړول کېږی له نطفې څخه علقې ته، بيا مضغې ته، وروسته بيا هوښيار ان بشر جوړېږی چي تصرفات کوی په هغه څه کي چي ستاسي دمعېشت قوام ورباندي راځي. ابن کثير وايي پاکي ده هغه ذات لره چي دوی يې پيدا کړل ويې ګرزول تابع يې کړل اودژوندانه دارتياوو اومکاسبولاري چاري يې وروښودلې اوددوی ترمينځ يې په علوموا وفکرونو، حسن اوقبح، بډايي اوفقر، سعادت اوشقاوت کي تفاوت راوړ (۱).

﴿ وَمِنْ ءَايَـٰتِهِۦٓ أَنْ خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَٰجًا ﴾ اوځيني له ښنود (قدرت) ددغه (الله) دادی چي پيدا کړي دي تاسي ته له ځانونو ستاسي مېرمني (ښځي جوړه) يعني دالله په عظمت اوبشپړ قدرت باندي له دلالت کونکو څخه يودادی چي ستاسوله جنسه يې آدمياني ستاسو په شان ښځي درته پيدا کړي له بله جنسه څخه نه دي. ابن کثير وايي که چېرې ښځي له کومه بله جنسه وای له پېريانو، ياله حيواناتونو دغه مينه الفت به نه وو موجود بلکه کرکه اونفرت به يې ځای نيولی وو همدغه دالله بشپړ رحمت دی چي په بني آدم يې لوررولی دی ﴿ لِّتَسْكُنُوٓا۟ إِلَيْهَا ﴾ لپاره ددې چي مائل شی دوی ته (اومطمئن اوسی) ورسره الفت ونيسی) ﴿ وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً ﴾ اوګرزولی يې دی په مينځ ستاسي (اودښځو) کي دوستي اومهرباني شفقت. ابن عباس وايې چي ﴿ مَّوَدَّةً ﴾ دسړي محبت له ښځي سره اوشفقت مهرباني بياد ﴿ وَرَحْمَةً ﴾ معناده چي هغې ته کله تکليف رسېږي خاونديې ورباندي ترحم کوي. ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَـٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ بېشکه په دغه (پيدا کولو دمودت اورحمت) کي خامخا ډېري ښنې دقدرت دي دپاره دهغه قوم چي فکر کوي (په قدرت او عظمت دالله کي اوبيا دهغه سترحکمت پېژني) ﴿ وَمِنْ ءَايَـٰتِهِۦ خَلْقُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱخْتِلَـٰفُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَٰنِكُمْ ﴾ او (ځيني) له ښنو (دقدرت) ددغه (الله) پيدا کول دآسمانونو اوځمکي دي او اختلاف دژبو ستاسي اودرنګونو ستاسي) يعني دالله په بشپړ قدرت ستر دلالت کونکی دادی چي آسمانونه يې په پراخوالي اواوچت والي پيدا کړي اوځمکه يې په پنډوالي اوټيټ والي پيدا کړی لغتونه اوژبي يې لکه عربي، عجمي، ترکي، رومي اونور پيدا کړي رنګونه يې سپين، تور اوسره پيدا کړي ترڅو چي يو تن له بله سره مشتبه نشي اويو انسان په بل خطا نشي سره له دې

(۱) مختصر ابن کثير ۳/۷

چي گرددآدم ﷺ اولاده ده ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَٰتٖ لِّلۡعَٰلِمِينَ ﴾ بېشکه په دغه (اختلاف کي) خامخا ډېري نښې (دقدرت) دي لپاره دعالمانو پوهانو (دبصيرت خاوندانو لپاره) ﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ مَنَامُكُم بِٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ ﴾ اوځيني له نښو (د کامل قدرت) ددغه (الله) ستاسي خوب دی په شپه اوورځ کي (ستاسو دبدني راحت لپاره) ﴿ وَٱبۡتِغَآؤُكُم مِّن فَضۡلِهِۦٓۚ ﴾ اوطلب ستاسي دی (په ورځ کي) دالله له فضله (روزي) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَسۡمَعُونَ ﴾ بېشکه پدې (خوب اومعېشت) کي خامخا ډېري نښې (دقدرت) دي لپاره دهغه قوم چي اوري (په اورېدلو دپوهي اوپېژندلو) ﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ يُرِيكُمُ ٱلۡبَرۡقَ خَوۡفٗا وَطَمَعٗا ﴾ او(ځيني) له نښو (دقدرت) ددغه (الله دادي) چي ښيي تاسي ته برېښنا دپاره دوېري (دتندر) اولپاره داميد (دباران) قتاده وايي معنادا چي وېره پکي ده دمسافرلپاره اواميد پکي دی دمقيم لپاره ([1]) ﴿ وَيُنَزِّلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَيُحۡيِۦ بِهِ ٱلۡأَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَآۚ ﴾ اونازلوي (الله) له (طرفه) دآسمانه اوبه پس ژوندي کوي په دغو (اوبو) سره ځمکه وروسته له مرګه (وچوالي) دهغې (چي نه نبات اونه کښت پکي وي) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَعۡقِلُونَ ﴾ بېشکه په دغه (برېښنا اوباران) کي خامخا ډېري نښې (دقدرت) دي دپاره د(هغه) قوم چي عقل لري (اوپه نعمتونو کي تدبر اوسوچ کوي) ﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن تَقُومَ ٱلسَّمَآءُ وَٱلۡأَرۡضُ بِأَمۡرِهِۦۚ ﴾ او(ځيني) له نښو (دقدرت اوعظمت) ددغه (الله دادي) چي ولاړدی آسمان (اوچت بې له ستنو) اوځمکه په امرده (اوحکمت يې چي نه لوېږي اونه اوړي په اوسېدونکو باندي).

﴿ ثُمَّ إِذَا دَعَاكُمۡ دَعۡوَةٗ مِّنَ ٱلۡأَرۡضِ إِذَآ أَنتُمۡ تَخۡرُجُونَ ﴾ بيا کله چي راوبولي تاسي په بللو سره له ځمکي ځخه ناڅاپه تاسي راوزی (ژوندي له قبرونو لپاره دحساب اوجزاء يوه ثانيه هم ځنډنه کوی په راوتلو کي مفسرين کرام وايي چي داهله چي کله اسرافيل (عليه السلام) په دوهمه نفخه شپېلی پوکړي اووايي: ای دقبرونو خاوندانو پاڅئ نوله پخوانيو او وروستنيو څخه به څوک پاتي نشي مګر پاڅي به اوانتظار به کوي ([2]) ﴿ وَلَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ ﴾ اوخاص الله لره دي هرهغه چي په آسمانونو کي دي اوپه ځمکه کي دي (له ملائکو پېريانو اوانسانانو خلقاً ملکاً اوعبيداً تصرفاً چي هيڅوک ورسره شريک نه دی) ﴿ كُلّٞ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ ﴾ داټول دغه (الله) ته اطاعت کونکي امرمنونکي) دي ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِي يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ﴾ او(الله) هم هغه (مطلق قادر) دی چي اول ځلي خلک پيداکوي بيابه داخلګ را ژوندي (وروسته له مرګه لپاره دحساب اوجزاء) ﴿ وَهُوَ أَهۡوَنُ عَلَيۡهِۚ ﴾ اودغه (بيا ژوندي راپاڅول هم) ډېرآسان دي په دغه (الله) دغه دابن عباس (رض) وينا ده مجاهد وايي معنادا چي دغه بيارا پاڅول

---

([1]) الطبري ٢١ / ٢٢

([2]) البحر المحيط ٧ / ١٢٨

ترلومړي پيدا ينبت الله ته زښته ډېرسهل اوزښته ډيرسپک دی لومړی پيدا ينبت ورته سهل اوسپک دی (۱) مفسرين كرام وايي الله تعالى له خلگو سره داسي مخاطبه کوي چي ددوی عقل ورسېړي يعني کله کله چي ستاسو په اندازه دوهم ځل جوړول ترلومړي ځل آسانه دي نو هغه چي لومړی پيدا ينبت کوي هغه ته يې بيا دوهم وار راپاڅول ستاسي له اصولو اومنطق سره خورا آسانه ده ﴿ وَلَهُ ٱلْمَثَلُ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ او خاص الله لره دی شان صفت ډېرلوی ، لوړچي بل چالره هغه جلال ، کمال، سلطان اوعظمت نشته ) ﴿ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ (په آسمانونواوپه ځمکه کي) يعني څوک چي په آسمانونواوپه ځمکه کي دي هغوی يې داسي ستايې چي: (ليس كمثله شئ ) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ اوهمدی دی ښه غالب، قوي ، ښه حکمت والا (چي ګردکارونه يې دحکمت اومصلحت په غوښتنه دي بيا الله تعالى ددوی دبتانودعبادت بطلان داسي بيانوي چي: ﴿ ضَرَبَ لَكُم مَّثَلًا مِّنْ أَنفُسِكُمْ ﴾ بيانوي (الله) تاسي ته (ای مشرکانو!) يومثال له ځانونوستاسي څخه دهغه مثال دادی) ﴿ هَل لَّكُم مِّن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُم مِّن شُرَكَآءَ فِي مَا رَزَقْنَٰكُمْ ﴾ (آياشته تاسي ته (بلکه نشته) له هغومريانوچي مالکان شوي دي دهغو، ښي لاسونه ستاسي څه شريکان (له تاسي سره) په هغه څه کي چي موږتاسي ته درکړي( له رزقه ؟) يعني آياستاسوکوم يوپدې راضي ياست چي ستاسي مريی په خپل هغه مال روزي کي چي الله درکړي شريک ومنی نوچي تاسي خوښ نه ياست بيانځرنګه پدې راضي کېږی چي له الله سره بل څوک شريک کوی چي هغه په اصل کي دالله مخلوق اوبنده وي؟! ﴿ فَأَنتُمْ فِيهِ سَوَآءٌ تَخَافُونَهُمْ كَخِيفَتِكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ (پس تاسي اودامريان موپه هغه (رزق) کي سره برابريې چي وېرېږی له هغولکه وېرېدل ستاسي له نفسونو (د نوروآصيلوشريکانو) خپلو ) دغه دمثال تتمه ده يعني تاسواوستاسي مريونه خوپه دغه مال کي ستاسو سره برابرنه ياست اونه تاسي له هغوی څخه داسي وېرېږی لکه له نورو احرارو شريکانوڅخه اوتاسي چي خپل مريونه پخپل مال کي شريکان نه منی نوڅرنګه له الله سره دهغه په خلق اوملک کي شريکان منی ؟ ﴿ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ په مثل ددغه (تفصيل) موږپه تفصيل سره بيانوو آيتونه (دقدرت) دپاره (دهغه) قوم چي عقل لري (اوسوچ کوي) ﴿ بَلِ ٱتَّبَعَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ أَهْوَآءَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ بلکه متابعت کوي هغه کسان چي ظلم يې کړی دی (په شريک نيولو له الله سره) دآرزوګانوخپلوبې له علمه (اوبرهانه) قرطبي وايي چي کله ددوی په شريک نيولوباندي کوم دليل اوعذرپاتي نشونويې وفرمايل چي ددوی شريک نيول يوازي ددوی دنفسي خواهشاتواود پلرونو اواسلافو دړانده تقليد زېږنده ده (۲) ﴿ فَمَن يَهْدِي مَنْ أَضَلَّ ٱللَّهُ ﴾ پس څوک به سمه صافه لاره وښيي هغه چاته چي الله دی ګمراه کړی وي (هيڅوک يې ورته ښودلای نشي ) ﴿ وَمَا لَهُم مِّن نَّٰصِرِينَ ﴾ اونشته ددوی لپاره هيڅوک

(۱) مختصرابن کثير ۳ / ۵۲

(۲) القرطبي ۱۴ / ۲۳

له مرسته كونكو(ژغورونكوله عذابه دالله نه) ﴿ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ﴾ پس برابركړه (اى محمده) مخ خپل دين ته پداسي حال كي چي مائل اوسې حق ته (له باطل نه) چي حق داسلام دين دى) ﴿ فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ﴾ (لازم ونيسى) پيدا ينبت دالله هغه چي الله پيدا كړي دي خلك په هغه پيدا ينبت ) يعني دغه حق دين چي موږ يې تاته داستقامت امركوو هغه فطرت دى چي الله ورباندي خلك پيدا كړي اودغه دتوحيد فطرت دى لكه چي په حديث شريف كي راځي: كل مولود يولد على الفطرة فابواه يهودانه..)(١) ﴿ لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ﴾ نشته له سره بدلول پيدا ينبت (دين) دالله ته ابن جوزي رحمه رحمه الله وايې چي لفظ يې دنفى اومعنا يې دنهى ده يعني دالله پيدا ينبت مه بدلوئ چې خلك له فطرت څخه اړوي كوم چي الله ورباندي پيدا كړي دي ﴿ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ ﴾ همدغه مستقيم دين دى (چي هيڅ كوږوالى نلري) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ليكن زياتره خلك (په توحيد) نه پوهېږي دخپل معبود او خالق په هكله سوچ نكوي ﴿ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ وَاتَّقُوهُ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ﴾ حال داچي رجوع كونكي ياست دغه (الله) ته او وېرېږئ(له عذابه د) الله او قائموئ لمنځونه يعني اى خلكو پردين باندي استقامت وكړئ پداسي حال كي چي خپل رب ته په اخلاص دعمل اوپه توبه رجوع كونكي ياست له الله جل جلاله څخه پخپلو كړوړوكي ووېرېږئ اولمنځونه اداكوئ داسي چي الله رضاكړى ﴿ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ اومه كېږئ تاسي له مشركانو، بيايې دهغه تفسيرداسي وفرمايوچي: ﴿ مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا ﴾ له هغو(مشركانو) چي تارپه تاركړى يې دى دين خپل اودوى ډلي ډلي شوي وو(هرچاد خپلي خوښي اوخواهش سره سم عبادت كاوو) ﴿ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴾ (هره يوه ډله په هغه (دين) چي له دوى څخه دى خوشحاله دي) يعني هره ډله تپله پخپل له خانه جوړكړي دين باندي خوښ دي خپل باطل لكه حق داسي ورته برېښي ابن كثيروايې معنا داچي دهغو مشركانوپه شان مه كېږئ چي خپل دين يې بدل اوتغيركړى ووپه ځيني يې ايمان درلود اوپه ځيني نوربياكافران وولكه يهودان اونصرانيان ، مجوسيان اوبت پرستان او نوركافران پرته له مسلمانانونوددغوباطلودينونوپلويانو پخپلوكي سره اختلاف درلودهري ټولى به خان برحق گانه (٢) ﴿ وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُم مُّنِيبِينَ إِلَيْهِ ﴾ اوكله چي ورسېږي خلكوته څه ضرر (فقرناجوړي اونور څه)نوبولي دوى خپل رب په داسي حال كي چي رجوع كونكي وي خاص الله ته ترڅويې له دې ضرر څخه وژغوري داوخت دوى خپل بتان پرېږدي څكه دوى پوهېږي چي هغه دوى ته له ضرره ژغورنه نشي وركولاى نوددوى رجوع فقط همدااوخت وي ﴿ ثُمَّ إِذَا أَذَاقَهُم مِّنْهُ رَحْمَةً إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴾

(١) متفق عليه .

(٢) مختصرابن كثير ٣/ ٥٥

بیاکله چي الله وروخکي له خپله لوري کوم رحمت ناڅاپه يوه ډله له دوی نه خپل رب سره شريکان نيسي
دآيت شريف مقصد دمشرکانو بدي ښودل دي چي دوی هغه کسان دي چې دکړاو اومصيبت په وخت کې
الله مني اوکله چي سوکالي اونعمت الله ورکړي بياله الله سره شريکان نيسي ﴿ لِيَكْفُرُوا۟ بِمَآ ءَاتَيْنَٰهُمْ
فَتَمَتَّعُوا۟ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ دپاره ددې چي ناشکري وکړي (اوکافرشي) په هغونعمتونو ) چي الله دوی
ته ورکړي دي پس ګټه اخلئ (ای کفارو) پس ژربه معلوم کړی تاسي (دخپل عمل عاقبت چي په فاني
دنياکي مودژوندانه له خپلوخوښيومزې اخيستي) ﴿ أَمْ أَنزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوا۟ بِهِۦ
يُشْرِكُونَ ﴾ آيانازل کړی دی موږپردوی کوم برهان (علمي سند ) پس هغه خبري کوي په هغه چي وو دوی
په هغه سره شريک پيداکوی (له الله سره دوی ،بلکه نه مودی نازل کړی استفهام دانکاراوتوبيخ لپاره
دی ﴿ وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوا۟ بِهَا ﴾ (کله چي ورو څکو موږو خلګوته څه رحمت نودوی په هغه
باندي خوشحاله شي ﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ ﴾ اوکه ورسېږي هغوی ته څه
سختي په سبب دهغو (اعمالو ) چي پخوالېږلي دي لاسونوددوی ناڅاپه به بيادوی نااميده شي (داالله له
رحمت اوخلاصون څخه ) ابن کثيروايي چي دغه دانسان په خته کي شته هرچاته چي نعمت ورسېږي
خوښ شي اووغوړېږي اوچي کله ورته سختي ورسېږي نوبياناهيلی شي مګرهغه چي الله ژغورلی وي
([1]) ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ ﴾ آيانه ويني (نه دي خبر) دوی چي ببشکه الله پراخوي
رزق هرهغه چاته چي اراده وکړي اوتنګوي يې (هغه چاته چي ويې غواړي ؟ (نودوی دي دفقر اوتنګ
لاسي په وخت کي داالله له رحمته نه نااُميده کېږي) ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ ببشکه په دغه
(پراخي اوتنګي) کي خامخادلائل (دقدرت ) دي لپاره دهغه قوم چي ايمان راوړي (په حکمت داالله چي
خالق اورازق دی) ﴿ فَـَٔاتِ ذَا ٱلْقُرْبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلْمِسْكِينَ وَٱبْنَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ پس ورکړه (ای مؤمنه!) خاوند
دخپلوي (قرابت) ته حق دده (چي نېکي اوصله رحمي ده) اومحتاج ته اومسافرته صدقه اواحسان.
قرطبي وايې چي کله الله مخکي ذکرکړل چي پراخي اوتنګي داالله له جانبه ده نوبيې شتمنوته امر وکړ چي
فقيرانوته دهغوی کفايت ورکړئ ترڅودبدايي شکر وازمويي خطاب رسول الله صلی الله عليه وسلم ته
اومقصدورڅخه دهغه امت دی ([2]) ﴿ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ ٱللَّهِ ﴾ دغه (ورکول دحقوقو ) خير
غوره دی (له إمساک اوبخل څخه) لپاره دهغوکسانوچي اراده لري دثواب (رضا ) داالله (تعالی)
﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ اوهمدغه (ورکونکي) دحقوقو ) هم دوی دي په مراد رسېدونکي برياليان.
﴿ وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَا۟ فِىٓ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ فَلَا يَرْبُوا۟ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ (اوهغه څه چي تاسي يې له سود نه ورکوی لپاره

---

([1]) مختصرابن کثير ۳/ ۵۵
([2]) القرطبي ۱۴/ ۳۵

ددې چي زيات شي په مالونو دخلگو کي پس نه زياتېږي هغه په نزد (دالله) يعني ای بدايانو کوم مالونه چي تاسي دسودلپاره ورکوی چي ستاسي مالونه ورباندي زيات اوتکثيرشي هغه نه زياتېږي اونه پاکېږي څکه دغه ناولی پليت کسب دی الله برکت پکي نه اچوي زمخشري وايي: دغه آيت کټ مټ لکه هغه بل آيت غوندي چي فرمايي: ﴿ يَمْحَقُ ٱللَّهُ ٱلرِّبَوٰاْ وَيُرْبِي ٱلصَّدَقَٰتِ ۗ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ ﴾ (البقره ٢٨٦) دی(١) ﴿ وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن زَكَوٰةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ ٱللَّهِ ﴾ اوهرهغه چي ورکوی يي تاسي له زکات څخه چي اراده لرئ تاسي په هغه سره ثواب (اورضاء) دالله) يعني هغه چي تاسويي دصدقې اواحسان په توگه محض دالله دخوښي اورضالپاره ورکوی ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُضْعِفُونَ ﴾ پس همدغه (محضاًلله ورکونکي) همدوی دي زياتونکي (دحسناتوخپلو) ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ﴾ (الله هغه (مطلق قادردی) چي پيدا کړي يې يی تاسي بيايې روزي درکړي ده تاسي ته ) يعني الله جل وعلاهغه دبندگانو خالق اورازق ذات دی چي انسان دمورله گېډي بربندلوڅ لغړ پداسي حال کي پيداکوي چي نه علم اوپوهه لري اونه اورېدل ليدل (پخپل واک ) کوي بياالله روزي ورکوي مال، متاع او دولت ورسپاري ﴿ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ﴾ بيامړه کوي تاسي بيابه ژوندي کړي تاسي (په بعث) سره (ترڅوستاسي دکړو جزآء درکړي) ﴿ هَلْ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَفْعَلُ مِن ذَٰلِكُم مِّن شَيْءٍ ﴾ آياشته له دغو شريکانوستاسي داسي څوک چي کولای شي هغه له دغوکارونو څخه کوم شی ؟ بلکه يوازي الله دخپل واک خاونددی په پيداکولو ، روزي ورکولو ، مړه کولو اوبيرته راپاڅولوکي ﴿ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ (پاکي ده الله ته اوډېرلوی پورته دی شان دالله له دې نه چي شريک پيداکوي دوی له الله سره ) يعني الله لره پاکي ده چي ده لره دي شريک ، هم مثله، ولداويااوالدوي

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنديزيې دا:

١- دطباق صنعت د ﴿ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾ او ﴿ يَبْدَؤُاْ .... يُعِيدُهُۥ ﴾ او ﴿ يَبْسُطُ ....وَيَقْدِرُ ﴾ او ﴿ يُمِيتُكُمْ .... يُحْيِيكُمْ ﴾ ترمينځ.

٢- اشتقاقي جناس لکه دا: ﴿ دَعَاكُمْ .... دَعْوَةً ﴾ او ﴿ فِطْرَتَ ٱللَّهِ ٱلَّتِي فَطَرَ ﴾ په کلماتوکي.

٣- مقابله چي فرمايي: ﴿ وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُواْ بِهَا ﴾ اود ﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ ترمينځ چي راغلي ده

٤- مرسل مجازپدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ فَأَقِمْ وَجْهَكَ ﴾ دلته راوړل دجزء اومرادڅني کل دی يعني الله ته ټول برابرشه .!

(١) الكشاف ٣ / ٣٧٩

۵ - مرصع سجع لکه پېلي ملغلري غوندي چي فرمايي: ﴿ اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ یُمِیْتُكُمْ ثُمَّ یُحْیِیْكُمْ ﴾ ترپايه پوري.

الله تعالی فرمايي:

﴿ ظَهَرَ الْفَسَادُ فِی الْبَرِّ وَ الْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ اَیْدِی النَّاسِ لِیُذِیْقَهُمْ بَعْضَ الَّذِیْ عَمِلُوْا لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ (۴۱) قُلْ سِیْرُوْا فِی الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِیْنَ (۴۲) فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّیْنِ الْقَیِّمِ مِنْ قَبْلِ اَنْ یَّاْتِیَ یَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ یَوْمَىِٕذٍ یَّصَّدَّعُوْنَ (۴۳) مَنْ كَفَرَ فَعَلَیْهِ كُفْرُهٗ ۚ وَ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ یَمْهَدُوْنَ (۴۴) لِیَجْزِیَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا یُحِبُّ الْكٰفِرِیْنَ (۴۵) وَ مِنْ اٰیٰتِهٖۤ اَنْ یُّرْسِلَ الرِّیَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّ لِیُذِیْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَ لِتَجْرِیَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ وَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ (۴۶) وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا اِلٰی قَوْمِهِمْ فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَیِّنٰتِ فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِیْنَ اَجْرَمُوْا ؕ وَ كَانَ حَقًّا عَلَیْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِیْنَ (۴۷) اَللّٰهُ الَّذِیْ یُرْسِلُ الرِّیٰحَ فَتُثِیْرُ سَحَابًا فَیَبْسُطُهٗ فِی السَّمَآءِ كَیْفَ یَشَآءُ وَ یَجْعَلُهٗ كِسَفًا فَتَرَی الْوَدْقَ یَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ فَاِذَاۤ اَصَابَ بِهٖ مَنْ یَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖۤ اِذَا هُمْ یَسْتَبْشِرُوْنَ (۴۸) وَ اِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ یُّنَزَّلَ عَلَیْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِیْنَ (۴۹) فَانْظُرْ اِلٰۤی اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَیْفَ یُحْیِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْیِ الْمَوْتٰی ۚ وَ هُوَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ (۵۰) وَ لَىِٕنْ اَرْسَلْنَا رِیْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ یَكْفُرُوْنَ (۵۱) فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰی وَ لَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِیْنَ (۵۲) وَ مَاۤ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْیِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ یُّؤْمِنُ بِاٰیٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ (۵۳) ۞ اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضَعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضَعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضَعْفًا وَّ شَیْبَةً ؕ یَخْلُقُ مَا یَشَآءُ ۚ وَ هُوَ الْعَلِیْمُ الْقَدِیْرُ (۵۴) وَ یَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ یُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ۙ۬ مَا لَبِثُوْا غَیْرَ سَاعَةٍ ؕ كَذٰلِكَ كَانُوْا یُؤْفَكُوْنَ (۵۵) وَ قَالَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَ الْاِیْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِیْ كِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰی یَوْمِ الْبَعْثِ ؗ فَهٰذَا یَوْمُ الْبَعْثِ وَ لٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (۵۶) فَیَوْمَىِٕذٍ لَّا یَنْفَعُ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَ لَا هُمْ یُسْتَعْتَبُوْنَ (۵۷) وَ لَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِیْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَ لَىِٕنْ جِئْتَهُمْ بِاٰیَةٍ لَّیَقُوْلَنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْۤا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُبْطِلُوْنَ (۵۸) كَذٰلِكَ یَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِ الَّذِیْنَ لَا یَعْلَمُوْنَ (۵۹) فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّ لَا یَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِیْنَ لَا یُوْقِنُوْنَ (۶۰) ﴾ الروم: ۴۱ - ۶۰

مناسبت:

کله چي الله تبارک وتعالی د مشرکينو بدي څرګنده کړه چي دوی د غير الله عبادت کوي نو د لته يې د محنت او ابتلاء سببونه وښودل چي هغه کفر، د ګناهونو خپرېدا او د فسق او فساد ډېروالی دی چي برکتونه ټولوي

اوعذابونه رابولي نوبې دتېرو اُمتونو دهلاکتونو مثالونه راوړل چي قريش تنبيه شي اوهغوی ته يې وفرمايل ترڅودرومبنيو مشرکانوڅخه عبرت واخلي چي هغوی څرنګه الله ددوی دطغيان اوسرغړوني له امله پوپناکړل ؟!

## لغتونه:

(يصدعون) جلاجلاتارپه تارکېدل او(صداع) هم له دغي مادې څخه دی اوځکه يې صداع بولي چي دسربرخي يوله بله بېلوي (يمهدون) پرځای کول غوړول له (مهاد) څخه اخيستل شوی هغه (فراش) ته وايي (کسفًا) د(کسف) جمع اوټوټې ته وايي (الودق) باران (مبلسين) نااُميده چي غمګين ورباندي معلومېږي (يؤفکون) اړول کېږي (افک) دروغوته وايي (يستعتبون) دالله درضاترلاسه کولوډپاره غوښتل شوي

## تفسير:

﴿ ظَهَرَ ٱلْفَسَادُ فِي ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي ٱلنَّاسِ ﴾ څرګنده شو(آثارد) فسادپه وچه اولمده کي په سبب دهغې (ګناه اوشرک) چي کړي دي لاسونو دخلګو) بيضاوي وايي چي مقصدله فسادڅخه کاختي ,سوځېدل ، ډوبېدل ، بې برکتي اوتاوانونه دي چي دخلګودګناهونو له شامته پېښېږي (١) ابن کثيروايي چي مرادپه مېوو دانوکي نقصان دی چي دګناه په وجه رامينځ ته کېږي ځکه دآسمان اوځمکي سم والی ، ښه والی په طاعت سره دی (٢)﴿ لِيُذِيقَهُم بَعْضَ ٱلَّذِي عَمِلُوا۟ ﴾ لپاره ددې چي (الله) وروڅکوي دوی ته څه (سزا ) دهغو(عملونو ) چي دوی کړي دي) يعني لپاره ددې چي ددوی دعملونوځيني سزاپه دنياکي ورکول شي پخوادآخرت له سزانه ﴿ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ دپاره ددې چي دوی واوړي ( له دغوګناهونواوبديوڅخه) ﴿ قُلْ سِيرُوا۟ فِي ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَـٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلُ ﴾ ووايه (ای محمده! مشرکانوته ) چي وګرزئ په ځمکه کي (دتېرو اُمتونو) پس وګورئ څرنګه شوه خاتمه دهغوکسانوچي پخواله دوی څخه وو (آياالله هغوی دهغه تکذيب له کبله چي دخپلو نبيانويې کاووهلاک نکړل ؟ چي دپنداخيستونکو لپاره عبرت شي) ﴿ كَانَ أَكْثَرُهُم مُّشْرِكِينَ ﴾ ووزياتره د دوی مشرکان (نوهلاک شول) ﴿ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ ٱلْقَيِّمِ ﴾ پس برابرکړه مخ (وجود ) خپل دين سم (معتدل داسلام) ته (٣)﴿ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ ﴾ (پخواله هغه چي هغه ورځ راشي چي نشته هيڅ بيرته ګرځېدل هغې ته له (جانبه د ) الله ) يعني ترپخواله راتلودهغې ورځي چي الله تاکلي راځي به اوهيڅوک نشي کولای هغه وګرزوي ځکه دادالله فيصله ده ﴿ يَوْمَئِذٍ يَصَّدَّعُونَ ﴾ په دغه ورځ کي به دغه

---

(١) البيضاوي ٢ / ١٠٢

(٢) مختصرابن کثير ٥٧

(٣) القرطبي ١٤ / ٤٢

(مخلوق) تارپه تارشي يوه ډله به په جنت کي اوبله به دوزخ ته درومي ﴿ مَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُۥ ﴾ هرڅوک چي کافرشوپس په هغه ده (سزا) دکفردهغه (اوتل به په اورکي وي) ﴿ وَمَنْ عَمِلَ صَٰلِحًا فَلِأَنفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ ﴾ اوهرڅوک چي هغه نېک عمل وکړي پس خاص لپاره دځانونو خپلو فرشونه غوړوي اوپه زړه پوري ساماني جوړوي. قرطبي وايي چي ﴿ يَمْهَدُونَ ﴾ معناداچي دوی پخپل دغه ښه عمل کولو سره دځان لپاره په آخرت کي فرشونه غوړوي(¹) د(مهد الفراش) معناغوړول دفراش دي ﴿ لِيَجْزِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِن فَضْلِهِۦٓ ﴾ لپاره ددې چي (الله) جزاورکړي هغو کسانوته چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه (عملونه) له فضله خپله (هغه چي له متقيانوسره يې وعده کړي ده) ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ بېشکه چي الله نه خوښوي کافران (بلکه الله يې بدګني نوهغوی ته پخپل عدل سزاورکوي اومؤمنانوته پخپل فضل سره جزاء ورکوي) ﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن يُرْسِلَ ٱلرِّيَاحَ مُبَشِّرَٰتٍ ﴾ (اوځيني له نښانود(قدرت) دالله دادي چي رالېږي بادونه زېری ورکونکي) يعني ځيني له هغو نښوچي دالله په بشپړقدرت دلالت کوي دادي چي بادونه راالوزوي اوهغه وريځي راشړي اودبارانو داورښت اودځمکي دزرغونوالي اوروزي زېري ورکوي ﴿ وَلِيُذِيقَكُم مِّن رَّحْمَتِهِۦ ﴾ اولپاره ددې چي وڅکوي په تاسي (په سبب ددغوبادونو) ځيني (مزې) درحمت خپل (چي بارانونه دي اوبلادعباد وربانديژوندي کوي) ﴿ وَلِتَجْرِيَ ٱلْفُلْكُ بِأَمْرِهِۦ ﴾ اوبل لپاره ددې چي بېړۍ پرې روانه شي په حکم دالله (اواراده يې) ﴿ وَلِتَبْتَغُواْ مِن فَضْلِهِۦ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ اولپاره ددې چي طلب کړي (په چلولو دبېړۍ له ځينو) له فضل دالله څخه (په سوداګري دبحر) اوددې لپاره چي تاسي شکر وباسی(په دغو سترو نعمتونوباندي) ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ ﴾ اوخامخاپه تحقيق لېږلي وو موږپخواله تا(ای محمده ! نور) رسولان په لوري دقومونو ددوی (په دې کي رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ډاډينه اوتسلاده چي نصرت اوفتح نژدې راتلونکي ده) ﴿ فَجَآءُوهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَٱنتَقَمْنَا مِنَ ٱلَّذِينَ أَجْرَمُواْ ﴾ پس راغلل (دغه رسولان) دوی ته په ښکاره معجزوسره (چي ددوی تصديق يې کاوو) پس بدل واخيست موږله هغو کسانوچي کافران شول (نوهلاک موکړل) ﴿ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اودی حق (واجب) پرموږنصرت دمؤمنانو) دغه آيت معترض واقع شوی دی چي دبادونو داحکاموپه مينځ کي رامخته شوی اومقصدپکي درسول الله صلی الله عليه وسلم ډاډينه اوتسليت دی ابوحيان وايي چي دغه آيت دالله جل جلاله ددې ويناچي ﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن يُرْسِلَ ٱلرِّيَاحَ مُبَشِّرَٰتٍ ﴾ اوددې قول چي ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِى يُرْسِلُ ٱلرِّيَٰحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا ﴾ ترمينځ راغلی دی مقصدورڅخه درسول

---

(¹) القرطبي ۱۴/ ۴۲

الله زره ته د ادورکول او ورته زیری اورول دي او همداسي د کفارو لپاره تهدیداو وعیددی وروسته الله تعالی د بادونو له الوتلو څخه حکمت بیانوي چي هغه دوریځو راپاڅول او له هغوی څخه د باران اورول دي فرمايي: ﴿ اللَّهُ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا ﴾ الله هغه (مطلق قادر) ذات دی چي رالېږي بادونه پس پورته کوي (په هواکي ) وریځي ﴿ فَيَبْسُطُهُ فِي السَّمَاءِ كَيْفَ يَشَاءُ ﴾ پس خپروي دغه وریځي په آسمان کي چي څرنګه يې خوښه شي (د الله پندي اویانزی ، یو د بل د پاسه او یا یوستوي) ﴿ وَيَجْعَلُهُ كِسَفًا ﴾ اوګرزوي دغه (وریځي ) ټوټه ټوټه لاندي باندي ﴿ فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ ﴾ پس وينې به ته څاڅکي د باران چي راوزي له مینځه ددغي (وریځي) ﴿ فَإِذَا أَصَابَ بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴾ پس کله چي ورسوي دغه باران هغه چاته چي اراده وکړي (الله) له بندګانو خپلو ناڅاپه دوی پرې خوشحالېږي اوزیری کوي ﴿ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلِ أَنْ يُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِنْ قَبْلِهِ لَمُبْلِسِينَ ﴾ او (بېشکه چي وو(دوی پخوا له دې چي نازل کړی شوی وو په دوی باران) پخوا له دې (ظهورد ) وريځي او باران) خامخا ناامیده (له اورښته ) يعني که څه هم دوی ترپخوا له اورښته د بارانه ناهیلي وو بیضاوي وايي چي تکرار د تاکید لپاره راغلی ترڅو پدې دلالت وکړي چي پر دوی اوږدې وچکالۍ تېري شوي او له بارانه ښخي ناامیده وو(۱) ﴿ فَانْظُرْ إِلَى آثَارِ رَحْمَتِ اللَّهِ كَيْفَ يُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ وګوره (ای مخاطبه !) نښي د رحمت (باران) د الله ته چي څرنګه ژوندۍ کوي ځمکه په باران د(وښو ، ګلانو ، ونو ، مېوو اوکښتوپه زرغونولو) وروسته له مړيني اووچوالي دهغې؟ ﴿ إِنَّ ذَلِكَ لَمُحْيِي الْمَوْتَى وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ بېشکه دغه (ژوندي کونکي دځمکي) خامخا ژوندی کونکي د مړوهم دی او هغه (الله) په هرشي باندي (چي اراده وکړي) ښه قادردی (هيڅوک الله مغلوب بولای نشي) ﴿ وَلَئِنْ أَرْسَلْنَا رِيحًا فَرَأَوْهُ مُصْفَرًّا ﴾ (اوکه ولېږو موږ باد(په شنه کښت اوفصل) پس وبه وينې دوی دا(کښت) تک ژیړ) يعني که چېري موږ ددوی په شنو کښتونو باندي ورانونکی تاواني باد راوالوزوو اوددوی کښتونه ورتک ژیړ کاندي ﴿ لَظَلُّوا مِنْ بَعْدِهِ يَكْفُرُونَ ﴾ خامخا دوی به وروسته له دغه ژیړ والي کافران وګرزي (څکه دوی په نعمت خوشحالېږي اوچي کله مصیبت ورته راشي بیانو دپخواني نعمت څخه انکارکوي ددوی څخه دپوهي او منلوتمه مه کوه بیاالله فرمايي چي دوی لکه مړي غوندي دي نصیحت ورته ګټه نه رسوي ﴿ فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَى وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴾ پس بېشکه ته مړي نشې اورولای اونشې اورولای کڼوته غږ (دبللو) کله چي وګرزي دوی په داسي حال کي چي شاګرزوونکي وي) يعني ای محمده ! (ص) ته مړي نشې اورولای او نه هغه څوک چي کوڼ وي په خانګړي توګه کله بیاچي کوڼ مخ هم اړولی وي نو دغه کافران همداسي دي نه اوري او نه په اورېدلي نصیحت باندي غوږ ګروي او نه ګټه ترې اخلي. مفسرین کرام وايي داهسي متل

---

(۱) البيضاوي ۲/ ۱۰۸

دی چي الله دکافرانولپاره ویلی دوی بې له مړو او کڼوسره مشابه کړي دي ﴿ وَمَآ أَنتَ بِهَٰدِ ٱلۡعُمۡيِ عَن ضَلَٰلَتِهِمۡۖ ﴾ اونه یې ته سمه لاره ښوونکی (دړونو) ړندوته له ګمراهي ددوی نه ﴿ إِن تُسۡمِعُ إِلَّا مَن يُؤۡمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا فَهُم مُّسۡلِمُونَ ﴾ نشې اورولای ته (دپوهي اومنلوپه توګه ) مګرهغه چاته چي ایمان یې راوړی دی په آیتونوزموږپس دوی مسلمانان غاړه ایښودونکي دي یعني ته پرته له هغو مؤمنانوچي زموږ په آیتونو یې باور دی نورڅوک نشې اورولای همدغه مؤمنان دي چي له وعظ نصیحت څخه ګټه اخلي څکه الله ته غاړه ایښودونکي دي ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَكُم مِّن ضَعۡفٖ ﴾ الله هغه ذات دی چي تاسي یې پیداکړي یاست (ای خلګو ) له کمزوړي (شي څخه چي نطفه ده اوبیاپه مختلفو مراحلواړوي چي یوځل دموږپه نس کي ماشوم بیازېږېدلی مولودبیاتی رودونکی وروسته بیاله تي جلاشوی (مفطوم) یاست چي دغه ګرددکمزوري اوضعف مرحلې دي لکه چي کمزوري ستاسي د پیدایښت ماده وي ﴿ ثُمَّ جَعَلَ مِنۢ بَعۡدِ ضَعۡفٖ قُوَّةٗ ﴾ بیایې درکړي ده وروسته له ضعف (طفولیت) څخه قوت د(ځواني ) ﴿ ثُمَّ جَعَلَ مِنۢ بَعۡدِ قُوَّةٖ ضَعۡفٗا وَشَيۡبَةٗۚ ﴾ بیایې درکړیدی وروسته له قوت(ځلمیتوبه) ضعف اودوېښتوسپین والی (بوډاتوب) ﴿ يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُۚ ﴾ پیداکوي (الله) هرهغه چي اراده وکړي (دپیدایښت یې) له کمزوري ، قوت ، ځواني او بوډاتوبه څخه) ﴿ وَهُوَ ٱلۡعَلِيمُ ٱلۡقَدِيرُ ﴾ اوهمدغه (الله) ښه عالم دی ، ښه قادردی(په هرڅه) یعني الله دخلګوپه تدبیرښه پوه دی اوڅه چي غواړي په هغه ښه قدرت درلودونکی دی. ابوحیان وایې چي دانسان پیدایښت له کمزوري څخه دده دوړکتوب ددوري کمزوري دبوډاتوب په وخت کي اوپه دغو وختونو کي ګرزول راګرزول دیوپوه جوړونکي پیداکونکي په قدرت سره کېږي (١) ﴿ وَيَوۡمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يُقۡسِمُ ٱلۡمُجۡرِمُونَ مَا لَبِثُواْ غَيۡرَ سَاعَةٖۚ ﴾ اوپه هغه ورځ کي چي قیامت قائم شي نومجرمان (کافران) به قسمونه خوري پدې چي نه دی پاتي شوی (په دنیاکي) غیرله یوه ساعته ، بیضاوي وایې دوی به دغه لږ موده یاخوپدې وګڼي چي عذاب یې په آخرت کي تل ترتله دی اویابه ځني هېروي (٢) ﴿ كَذَٰلِكَ كَانُواْ يُؤۡفَكُونَ ﴾ همدارنګه وو دوی چي ګرزول کېدل به (له حق څخه باطل ته اوله رښتیانه دروغوته په دنیاکي) ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ وَٱلۡإِيمَٰنَ لَقَدۡ لَبِثۡتُمۡ فِي كِتَٰبِ ٱللَّهِ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡبَعۡثِۖ ﴾ او وایې به دوی ته) هغه کسان چي ورکړی شوی وو دوی ته علم اوایمان درد اوتکذیب په توګه چي ولي دروغ وایاست ؟) خامخاپه تحقیق دېرپاتي شوي یې په دنیاکي (چي هغه لیکلي دي په کتاب دالله (لوح محفوظ) کي ترورځي دبعث پوري) ﴿ فَهَٰذَا يَوۡمُ ٱلۡبَعۡثِ وَلَٰكِنَّكُمۡ كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ﴾ پس دغه ده ورځ دبعث (چي تاسي ترې منکروی) ولیکن تاسي وې په دنیاکي (چي دجهل اوغفلت له امله) نه پوهېدی

---

(١) البحر ٧/١٨٠

(٢) البیضاوي ٢/١٨

(اوانکارموکاوو تاسودحق اودحق دپلویانوسره جفاکوله الله فرمایي: ﴿ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنفَعُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مَعْذِرَتُهُمْ ﴾ پس په دغي ورځي کي به گټه نه رسوي هغوکسانوته چي ظلم يې کړى دى (په خپلو ځانونوپه کفرسره) عذرددوى ﴿ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴾ اونه به دوى دالله راضي کولوته وبللى شي (چي توبه وکاږي اوطاعات عبادات وکړي ځکه چي دتوبې وخت تېرشويدى ﴿ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ مِن كُلِّ مَثَلٍ ﴾ اوخامخاپه تحقيق بيان کړي موړلپاره دخلگوپه دغه قرآن کي له هرډول مثال(ځکه چي انسانان ورته اړوي لکه وعظونه ، پندونه اواخبار چي دچاشک اوشبه پاتي نشي ﴿ وَلَئِن جِئْتَهُم بِـَٔايَةٍ لَّيَقُولَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُبْطِلُونَ ﴾ (اوقسم دى اى محمده!) که راوړې ته دوى ته کوم آيت (دقدرت معجزه) نوخامخاهرومرو به ووايې هغه کسان چي کافران شويدي چي نه ياست تاسي (اى محمده اومؤمنانو) مگردروغجنان (باطل ويونکي ) يعني که چېرې ته ددوى دوړانديزپه شان هغوى ته دموسى ﷺ دهمسا ، يدبيضاء ، يادصالح ﷺ داوښې اونوري معجزې راوړې هم دوى به له ډېره عناده ووايې چي ته اوستاملگري دروغجنان اوتېرايستونکي ياست ﴿ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ همدارنگه (لکه چي مهر مولگولى دى) مهرلگوي الله په زړونودهغوکسانوچي نه پوهېږي (په توحيد اوصفاتودالله باندي) ﴿ فَٱصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ ٱلَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ ﴾ پس صبرکوه (اى محمده په تکذيب اوضرردوى!) دالله دنصرت وعده رښتياده (چي دين ته به غلبه ورکوي ) اونه دي پورته کوي تا(پرېشاني اوخفگان ته دي نه اړباسي) هغه کسان (چي په آخرت) يقين نه راوړي (ته خپل صبراوزغم له لاسه مه ورکوه اوپخپل دعوت کي ثابت قدم اوسه!).

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوې شته لنديزيې دادى:

۱-دطباق صنعت چي فرمايي: ﴿ ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ﴾.

۲-مرسل مجازچي جزء راوړل شي او دکل اراده ترې وشي لکه ﴿ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي ٱلنَّاسِ ﴾.

۳-داشتقاقي جناس صنعت چي کله فرمايي: ﴿ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ ٱلْقَيِّمِ ﴾.

۴-باريکه استعاره پدې کلام کي چي ﴿ فَلِأَنفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ ﴾ هغه څوک چي نيک اوښه عملونه يې له مخه استوولي دي دهغه چاسره يې تشبيه کړل چي دخوب لپاره ځاى غوړولي ترڅويې خوب اوآرام کوم تاواني شى ورتريخ نه کړي

۵ - داطناب اسلوب دالله تعالى پدې كلام كي چي ﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن يُرْسِلَ ٱلرِّيَاحَ مُبَشِّرَٰتٍ وَلِيُذِيقَكُم مِّن رَّحْمَتِهِۦ ﴾ دآيت ترپايه دادې لپاره چي زيات نعمتونه ورپه ګوته کړي که نه دغه کافي وو چي الله فرمايلي واى (لتبتغوا من فضله ) خوالله په تفصيل سره ددې لپاره راوړل چي بندګانو ته دنعمتونو يادونه وکړي

۶ - اشتقاقي جناس لکه ﴿ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ رُسُلًا ﴾.

۷ - ايجازبالحذف چي كله وايي ﴿ فَجَآءُوهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَٱنتَقَمْنَا ﴾ دلته يې هغه څه حذف کړل چي ويلي بې واى نودوى تکذيب استهزآء وکړه بيا موږ بدل ترې واخيست.

۸ - تصريحي استعاره پدې كلام کي ﴿ فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ كفاريې له مړو سره او همداسي له کڼو سره تشبيه کړل چي دوى احساس نلري مواعظ نه اوري او براهين نه مني.

۹ - طباق د﴿ ضَعْفٍ ...قُوَّةً ﴾ په کلماتو کي.

۱۰ دمبالغې صيغې لکه﴿ ٱلْعَلِيمُ ٱلْقَدِيرُ ﴾ چي راغلى دى.

۱۱ - تام جناس چي كله فرمايي ﴿ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يُقْسِمُ ٱلْمُجْرِمُونَ مَا لَبِثُوا۟ غَيْرَ سَاعَةٍ ﴾ په لومړي ساعت سره مراد د قيامت ورځ او په دوهم سره ګړى (موده) چي دغه کامل جناس دى اوله بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

تنبيه:

سمه خبره داده چي مړي اوري څکه چي رسول الله ﷺ يووخت وفرمايل: تاسو تردوى ښه نه اوری.)

او بيا فرمايي چي(مړي دخلګو دپښو غږ اوري) او دا چي الله تعالى فرمايي: ﴿ فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ له دې څخه مراد د تدبر او پند اخيستلو او رېدل دي والله اعلم.

دالله تعالى په مرسته دالروم سورت تفسير بشپړ شو.

***

## دلقمان سورت مکي او څلور دېرش آيتونه لري

### دسورت په وړاندي:

* دلقمان سورت له مکي سورتونو څخه يودی اولکه نورمکي سورتونه دعقيدې موضوع څېړي اودهغې بنسټيزدرې اصول رااخلي چي وحدانيت ، نبوت اوبعث نشوردی.

سورت په پيل کي دکتاب حکيم يادونه کوي هغه چي درسول اکرم ﷺ تلپاتي معجزه کتاب دی څوداجهان وي دامعجزه به وي بيادالله په وحدانيت باندي دلائل اوبراهين راوړي اوقدرت څرګندي نښې اوپدغه پراخوکائناتو کي دابداع عجائبات اومحکم متناسق نظام چي په ځمکه ، آسمان ، لمر، سپوږمۍ ،شپه ، ورځ ، غرونو ، دريابونو ، څپو ، بارانونو ، وابښو ، ونواونوروهغه څه چي سړی يې خواوشاويني اوڅرګندي يادونه کوي چي څرنګه دسړي زړه ته دالله قدرت لاره مومي اوعقل څرنګه ورته حيرانېږي چي پرته له دې چي ددې ستر خالق قدرت ته تسليم شي بل لوری نه مومي.

* لکه چي سورت دمشرکانوپام دالله دقدرت اووحدانيت هغو دلائلوته چي په دغه عجيبه کائناتو کي ليدل کېږي رااړوي کله چي فرمايي: ﴿ هَٰذَا خَلْقُ ٱللَّهِ فَأَرُونِى مَاذَا خَلَقَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦ ۚ بَلِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ .

* په پای کي سورت دهغې سختي ورځي يادونه کوي چي هلته مال اولادچاته ګټه نه رسوي نوداسي فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُوا۟ رَبَّكُمْ وَٱخْشَوْا۟ يَوْمًا لَّا يَجْزِى وَالِدٌ عَن وَلَدِهِۦ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِۦ شَيْـًٔا ﴾ دآيت ترپايه

### تسميه اونومول يې:

دغه سورت ته ځکه دلقمان سورت وايي چي دحکيم لقمان ﷺ کيسه پکي راغلي ده هغه چي دحکمت ،فضيلت اودالله دمعرفت رازپکي نغښتی دی دالله صفات بيانوي دشرک بدي اوذم وايي له قبائحو اوګناهونو څخه نهی کوي اودښوخويونو اومکارم الاخلاق په هکله ماړښينه فرمايي پدې کيسه کي قيمتي وصيتونه شته چي الله ﷻ دلقمان ﷺ په ژبه بيان کړي دي اودحکمت اولارښووني په هکله غوره ځای لري.

### الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ الٓمٓ ﴿١﴾ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ﴿٢﴾ هُدًى وَرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِينَ ﴿٣﴾ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشْتَرِى لَهْوَ ٱلْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٦﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِىٓ أُذُنَيْهِ وَقْرًا ۖ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٧﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُمْ جَنَّٰتُ ٱلنَّعِيمِ ﴿٨﴾ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۖ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقًّا ۚ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٩﴾ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ۖ وَأَلْقَىٰ فِى

ٱلْأَرْضِ رَوَٰسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ ۚ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿١٠﴾ هَٰذَا خَلْقُ ٱللَّهِ فَأَرُونِي مَاذَا خَلَقَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦ ۚ بَلِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿١١﴾ ﴾ لقمان: ۱ - ۱۱

**لغتونه:**

(الحكيم) محكم چي پكي خلل اوتناقض نه وي (يوقنون) يقين بشپړباور(جازم تصديق) ته وايي (لهوالحديث) له خيراوعبادت څخه ګرزونكى مشغول كونكى باطل( وقرا) دروندوالى چي له اورېدلو څخه منع كونكي وي (عمد) دعمادجمع اوستني ته وايي (رواسى) ټينګ غرونه اوويل كېږي (رست السفينة) كله چي ودرېږي اوقرار ونيسي (تميد) ښوروېدل خوځېدل(بث) خپرېدل اوتيت اوپرك كېدلوته وايي.

**دنزول سبب:**

وايي چي نضربن الحارث به سندرغاړي مينځي رانيولې اوكله به يې يوڅوك پيداكړچي هغه به داسلام دراوړلواراده درلوده نوبه يې هغه راووست هغې مينځي ته به يې وسپاراو ورته ويل به يې خواړه وركړه اوشراب وربانديي وڅښه سندري ورته وبوله اوبيابه يې هغه ته ويل چي دغه ترهغه څه بهتر دى كوم چي محمد ﷺ دى هغه ته بولي چي لمونځ ، روژه اودده په وړاندي جنګېدل دي نوالله ﷻ داآيت نازل كړچي:

﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ ٱلْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ [1]

**تفسير:**

﴿ الٓمٓ ﴾ دغه له مقطعاتو توروڅخه دى چي دقرآنكريم په اعجاز تنبيه وركوي اودې ته اشاره كوي چي دغه معجزكتاب چي دده دآيتونو په شان بل منظوم كلام علمآء ، فصحاء بلغاء اوادبيان هدو راوړى نشي هغوى ته چيلنج وركول شوى دى مګرله توانه يې بهردى سره له دې چي هغوى په عربي ګړېږي هغه چي له دي تورو ﴿ الف ,لام , ميم ﴾ څخه جوړشوي همدغه له خورا څرګندودلائلو او براهينو څخه دى چي دغه دحكيم اوعليم ذات له لوري راغلى كتاب دى ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ داآيتونه دكتاب حكمت لرونكي دي دهغه چي په ټولوكتابونوباندي په بيان، تشريع اواحكاموكي لوړدى ) دحكيم معنادلوړحكمت خاوند اوداچي ورته په بعيداشاره شوي ددې لپاره چي دهغه منزلت په فضل اوشرف كي ليري او اوچت دي ﴿ هُدًى وَرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِينَ ﴾ هدايت اورحمت دى لپاره دنېكوكارانو دهغوى چي په دنياكي يې نېک عملونه كړي اوداچي دوى يې ځانګړي يادكړل ددې لپاره چي دوى وربانديي نفع اخيستونكي دي وروسته يې الله صفتونه داسي ستايي ﴿ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ هغه كسان چي قائموي (سم اداكوي سره له ټولو حقوقو ) لمونځ او وركوي دوى زكات (مستحقينوته په اخلاص داالله درضآء لپاره ﴿ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ اودوى په آخرت باندي هم دوى يقين كوي) چي هيڅ شک اوشبه پكي نلري د(هم) ضميريې ددې لپاره مكرر راووړچي حصرافاده كړي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَىٰ

(1) وګوره اسباب النزول دواحدي ليكنه همداراز دقرطبي اوبحرمحيط تفسيرونه.

﴿هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ﴾ دغه (ستايلي شوي كسان) په سمه لاره دي له (لوري) د رب ددوی او دغه (كسان) همدوی په مراد رسېدلي دي، په دنيا او آخرت كي نېكمرغه دي. ابوحيان وايې چي په ﴿أُوْلَٰٓئِكَ﴾ سره تكراري اشاره ددې لپاره شوي چي ددوی لوړ قدر او فضيلت څرګند كړي (١) كله چي الله تعالی دهغه نېكمرغه كسانو حال وښود چي په كتاب الله يې سمه لاره موندلي اودهغه په اورېدلوېې نفع اخيستي ده اوس دهغو بدمرغانو یادونه كوي چي دوی دالله دكتاب له اورېدلو څنګ كړي ګټه يې وربانديې نه ده اخيستي اودغنا او موسيقي لورته يې مخه كړي ده نو فرمايې: ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشْتَرِى لَهْوَ ٱلْحَدِيثِ﴾ او ځيني له خلكو څخه هغه څوک دي چي پېرې (اخلي) عبث خبري (اړونكي له طاعته دالله راګرزونكي له لاري دهغه كومي چي نه پكي خيروي اونه كومه ګټه زمخشري وايې لهو هر باطل ته چي له خيرڅخه سړی مشغولوي وايې لكه په كيسونكلونوشپې رنول او په ټوكوټكالو مجلسونه كول يابې فائدې اوناښايسته كلام (٢) ابن جرير له عبدالله بن مسعود څخه روايت كوي چي هغه له دې آيت شريف څخه وپوښتل شو هغه ورته په ځواب كي وويل: والله الذي لا اله الا هو درې ځله يې دغسي لوړه وكړه اوبيايې وويل چي: دغه غناء (سندري) دي (٣) حسن بصري وايې چي دغه آيت دسندرو او موسيقي په هكله نازل شوی دی (٤) ﴿لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ دپاره ددې چي وښويوي (خلګ) دالله له لاري بې له علمه (دليل او برهانه) ﴿وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا﴾ او چي ونيسي دا (آيتونه دكتاب الله) په ټوكو مسخرو؛ او دغه په بدي كي زيات او ګمراهي كي ژوردي ﴿أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ دغه (كسان) شته دوی ته عذاب سپک كونكی (سخت سره له ذلت او خواري) ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا﴾

او كله چي ولوستل شي په ده باندي آيتونه (دقرآن) زموږ نو مخ ترې وګرزوي حال داچي متكبر سرغړونكی وي داسي چي ګواكي له سره يې نه دي اورېدلي دا آيتونه ﴿كَأَنَّ فِىٓ أُذُنَيْهِ وَقْرًا﴾ ګواكي په دواړو غوږونو دده كي دروندوالی كوڼوالی دی (چي نه يې اوري) ﴿فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ پس ده ته زېری وركړه (ای محمده!) په عذاب دردناک سره، دلته يې دتهديد پرځای بشارت دتهكم او مسخرې په توګه راوړی دی په البحرالمحيط كي وايې چي دلته داخيستونكي (پېرودونكي) بدي له څوجوهاتو وښودل شوه يو داچي له حكمت څخه مخ اړوي بل له حق څخه تكبر كوي او بيايې اورېدلو ته التفات او پاملرنه نه كوي دومره زيات په څنګ كولوكي ډوب وي چي دده حال له هغه چا سره تشبيه كېږي چي ښخي يې اورېدلي نه وي ځكه هغه ښخي دې لوري ته توجه نكړي وروسته بيا هغه ته دتهكم په

---

(١) البحر ٧٠/ ١٨٣

(٢) الكشاف

(٣) الطبري ٢١ / ٣٩

(٤) ابن كثير ٣ / ١٧٣

اسلوبو دسخت عذاب زیری ورکول کیږي ([1]) کله چي الله کفاروته ددردناک عذاب تهدید واوراوه دلته بې ورپسي دمؤمنانو هغه وعده چي ورسره په جنات النعیم شوي راوړه چي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ ﴾ بېشکه هغه کسان چي ایمان يې راوړی اوکړي يې دي ښه (عملونه) یعني ایمان اونېک اعمال يې يوځای کړي اوښه نیت په عمل کي اخلاص يې ترسره کړی) ﴿ لَهُمْ جَنَّـٰتُ ٱلنَّعِيمِ ﴾ شته دوی لره جنتونه دنعمتونو (هستوګنځی چي ډول ډول خوندونه مزې اوپه ښایسته خوراک، څښاک، پوښاک کي همداسي په مېرمنو حورالعین اونورو هغوانعامونو چي پاک الله تبارک وتعالی له خپل فضل اومرحمت څخه ورباندي لورولي (پېرزو کړي) کوم چي نه سترګو لیدلي، نه غوږو اورېدلي، نه دچاپه زړه تېرشوي به مشتمل وي ﴿ خَـٰلِدِينَ فِيهَا ۖ ﴾ حال داچي تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کي (هیڅکله به ځني نه وزي) ﴿ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقًّا ۚ ﴾ وعده دالله حقه رښتیاده (خلاف پکي نشته ان الله لایخلف المیعاد) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ اوهم دی ښه غالب قوي (چي هیڅوک يې مغلوبولای نشي چي له خپلي وعدې يې تېرکړي) ښه حکمت لرونکی هغه چي هرکارپه حکمت اومصلحت کوي بیاالله تعالی دخپل قدرت دلائل اوعظمت اوجلال آثارڅرګندوي چي دهغه ﷻ په وحدانیت برهان شي فرمايي: ﴿ خَلَقَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ۖ ﴾ پیداکړي دي (الله) آسمانونه بې له ستنوچي تاسي يې وینی) یعني آسمانونه سره دهغوی له لويوالي پراخوالي ټینګوالي بې ستنوپیداکړي حال داچي تاسويې همداسي بې ستنوولاړ وینی چي پرته دقادر مقتدر الله له قدرته يې بل څه نه تکیه کوي ﴿ وَأَلْقَىٰ فِى ٱلْأَرْضِ رَوَٰسِىَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ ﴾ اوغورځولي (پیداکړي يې دي) په ځمکه کي غرونه دپاره ددې چي ځمکه په تاسي باندي ونه خوځېږي (چي هلاک به موکړي وداني به مووراني شي. امام فخر رازي وايي: پوه شه چي دځمکي ثبات په دروندوالي دی که داسي نه وای داوبو په واسطه به له خپله ځایه خوځېدله اوبادونوبه هرلوري ته وړه اوکه چېري الله لکه شګي غوندي پیداکړي وای بیابه دکښت اوزراعت لپاره سمه نه وه لکه چي موږ وینو شګلنه ځمکه بوټي نه زرغونوي اوله يوځایه بل ځای ته يې شګي لېږدي همدغه دالله ﷻ حکمت دی چي غرونه يې ورباندي غورځولي دي فسبحان الله المتعال ﴿ وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ ۚ ﴾ اوويې شیندل (خواره واره يې کړل) په دغه ځمکه کي له هرډول (ساکښو) خوځېدونکو حیواناتو څخه اوهغه چي ځيني يې دخوړلو لپاره ځيني يې دسپرلی لپاره اوځيني نور دنورو کارونو اومنافعو لپاره چي شمېر اوشکل يې يوازي الله تعالی ته معلوم دی پیداکړي دي ﴿ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ اونازلي کړي دي موږ له (لوري) دآسمانه اوبه (ستاسي او ستاسي دچارپايانو دساتني لپاره) ﴿ فَأَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴾ پس زرغونه کړي دي موږ په دغه ځمکه کي له هرقسمه ګیاوي ښې (ګټوري خاصي جوړې غذاوي

---

([1]) البحرالمحیط ۱۸۴/۷

اودواوي([1]) ﴿ هَٰذَا خَلْقُ ٱللَّهِ ﴾ دغه ټول مذکوره شيان ) دالله مخلوق دی) يعني ای مشرکانوداچي وينی ګرددالله تعالی مخلوقات دي وګورئ آسمانونو اوځمکي ته ,انسان ته ,نبات ته , حيوان ته اوټولومخلوقاتو ته بيادالله دقدرت اوبديع صنعت آثارپکي ولټوئ اوسوچ پرې وکړئ ﴿ فَأَرُونِي مَاذَا خَلَقَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦ ﴾ پس وښيئ (ای مشرکانو) ماته هغه شی چي دغوبتانوپرته له الله پيداکړي دي؟! دغه داسي پوښتنه ده چي تهکم اواستهزاء پکي ده وروسته له دې تبکيت څخه يې بيادوی ښکاره ګمراهي داسي په ډاګه کړه چي ﴿ بَلِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ بلکه دغه ظالمان (مشرکان) په ښکاره ګمراهي کي دي يعني ددوی خسران ببخي ځرګنداوګمراهي يې ښکاره ده ځکه دوی عبادت هغه چاته کوي چي هغه يې اهل نه دی دهسي چاعبادت کوي چي نه اوري ، نهويني ، نه ګټه رسوي نه تاوان دفع کوي دوی ترڅلوربولو څاروېولابې لاري دي ځکه څوک چي دجامد بت عبادت کوي اوسترخالق چي دتدبيرخاوندوي پرېږدي هغه ترحيوان لاپه مرتبه کي ټيټ دی.

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

١ - دمصدرراوړل دمبالغې لپاره لکه ﴿ هُدًى وَرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِينَ ﴾ .

٢ - په بعيدسره اشاره کول چي ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ﴾ اوداسي يې ونه فرمايل چي: ( هذه) ځکه چي هغه دستري مرتبې اولوړشان اومقام خاونددی.

٣ - اطناب دضميراواسم اشارت په تکرار سره لکه ﴿ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ أُو۟لَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ لپاره دزياتي ستايني اوتکريم همداسي دغه جمله حصر افاده کوي يعني دوی په مرادرسېدلي دي نه بل څوک.

٤ - تصريحي استعاره پدې کلام کي چي ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشْتَرِى لَهْوَ ٱلْحَدِيثِ ﴾ ددوی حال يې له هغه چاسره مشابه کړچي يوداسي څيزرانيسي چي په هغه کي تاواني وي اوهمداراز يې اخيستل (شراء) دتبديل په ځای استعاره کړه چي تصريحي استعاره ورته ويلای شو.

٥ - مرسله مجمله تشبيه پدې کلام کي ﴿ كَأَنَّ فِىٓ أُذُنَيْهِ وَقْرًا ﴾ دلته يې دتشبيه ادات اوتوري يې راوړل خودشبهي وجه يې حذف کړه نومرسله مجمله تشبيه ده.

---

([1]) سيدقطب رحمه الله پخپل تفسيرفي ظلال القرآن کي وايې چي قرآنکريم دابښيي چي نباتات جوړه جوړه پيداشوي ﴿ مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴾ اودايوسترحقيقت دی چي همداوس علم هغه ته لاره وموندله هربوټی (نارينه والی اوښځينه والی خانته خانته خليې لري ياپه يوګل بوټي کي اوياپه جلاجلاګلانوکي په يوه ښاخ کي ياپه جلاجلاونوکي اوهيڅ مېوه ترهغونه پيداکېږي څوچي نارينه اوښځينه تلقيح يې سره نه وي شوې لکه داسي چي انسان اوحيوان توالدکوي

٦- د تهکم اسلوب چې فرمايي ﴿ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ ځکه بشارت او زيرى خو د خير نېښکني په باب وي او په شرکي استعمال يې استهزآء او تهکم دى.

٧- التفات له غيبت څخه تکلم ته چې ﴿ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ وروسته له ﴿ خَلَقَ ..... وَأَلْقَىٰ وَبَثَّ ﴾ څخه راغلى او هغه گرد د غائب ضمائر وو وروسته يې ﴿ وَأَنزَلْنَا ﴾ واوړى چې د رحمن د شأن تعظيم او د نعمتونو د امتنان بشپړتيا و ښيي او دا هم له بديعي محسناتو څخه گڼل کېږي

٨- په اسم مفعول باندې د مصدر اطلاق د مبالغې په توگه لکه ﴿ هَٰذَا خَلْقُ ٱللَّهِ ﴾ يعني دغه د الله مخلوق دى.

٩- استفهام د توبيخ او تبکيت لپاره لکه ﴿ مَاذَا خَلَقَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦ ﴾.

١٠- د ضمير پر ځاى د ظاهر راوړل چې زيات توبيخ افاده کړي او د دوى زښته زيات جهل او گمراهي وښاکي لکه دا چې ﴿ بَلِ ٱلظَّٰلِمُونَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ او د ود داسي وو چې ويلى شوي واى (بل هم في ضلال مبين)

١١- په وروستي توري کي د فواصلو مراعت کول لکه ﴿ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ..... بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ..... جَنَّٰتُ ٱلنَّعِيمِ ..... زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴾ دغه ډول ته په بديع کي سجع وايي او غوره يې هغه دي چې فقرې يې برابري ، له تکلف څخه آزاده او بې له تکراره وي او دا په قرآنکريم کي ډېره شته

فائده او گټه:

الله ﷻ پدې سورت کي دغه کتاب ته د حکمت خاوند وو وايو چې ﴿ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ ځکه چې د سورت له آب و هوا سره برابره ده او د حکمت موضوع پکي څو ځلي تکرار شوي چې ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا لُقْمَٰنَ ٱلْحِكْمَةَ ﴾ نو له کتاب سره دا صفت مناسب وو چې دده له نورو صفاتو څخه غوره او راوړل شي او دا هم د قرآنکريم دود ، دستور دى چې د الفاظو او د هغوى د استعمال د ځايونو تنسيق او ښه او بد تل په پام کي نيسي

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا لُقْمَٰنَ ٱلْحِكْمَةَ أَنِ ٱشْكُرْ لِلَّهِ ۚ وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَنِىٌّ حَمِيدٌ ﴿١٢﴾ وَإِذْ قَالَ لُقْمَٰنُ لِٱبْنِهِۦ وَهُوَ يَعِظُهُۥ يَٰبُنَىَّ لَا تُشْرِكْ بِٱللَّهِ ۖ إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴿١٣﴾ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُۥ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ وَفِصَٰلُهُۥ فِى عَامَيْنِ أَنِ ٱشْكُرْ لِى وَلِوَٰلِدَيْكَ إِلَىَّ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٤﴾ وَإِن جَٰهَدَاكَ عَلَىٰٓ أَن تُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۖ وَصَاحِبْهُمَا فِى ٱلدُّنْيَا مَعْرُوفًا ۖ وَٱتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَىَّ ۚ ثُمَّ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٥﴾ يَٰبُنَىَّ إِنَّهَآ إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُن فِى صَخْرَةٍ أَوْ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ أَوْ فِى ٱلْأَرْضِ يَأْتِ بِهَا ٱللَّهُ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴿١٦﴾ يَٰبُنَىَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَأْمُرْ بِٱلْمَعْرُوفِ وَٱنْهَ عَنِ

ٱلْمُنكَرِ وَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَآ أَصَابَكَ ۖ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ ﴿١٧﴾ وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِى ٱلْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴿١٨﴾ وَٱقْصِدْ فِى مَشْيِكَ وَٱغْضُضْ مِن صَوْتِكَ ۚ إِنَّ أَنكَرَ ٱلْأَصْوَٰتِ لَصَوْتُ ٱلْحَمِيرِ ﴿١٩﴾ ﴾

لقمان: ١٢ - ١٩

مناسبت:

کله چي الله تعالی دمشرکانو عقیدوي فساددوی دعناداو شرک له وجهي وښود چي هغوی هغه بتان چي دهيڅ څيزپيداکونکي نه دي له الله سره چي دهرڅه خالق دی شريکان نيولي نودلته يې دحضرت لقمان وصيتونه چي خوراقيمتي ملغلري دبشپړحکمت په تول تللي دبلني اودعوت دسمي لاري بل مثالونه دي اولومړی پيل يې له شرک څخه دځان ژغورني په وصيت شوي راوړل هغه شرک چي ترټو ګناهونو دالله په نزدبداوستردی.

لغتونه:

(الحكمة) په کرو وړوکي سموالی په اصل کي حکمت هرڅيزپه خپل ځاي ايښودلوته وايي په اللسان کي وايي چي د(أحكم الامر) معناداچي چاره يې په ښه توګه سرته‌ورسوله چي کله وويل شول (رجل حكيم) معنايي دادی چي په چارو ښه پوهېدونکی داتقان خاوندد‌ی (١) (يعظه) ورته وعظ اونصيحت يې کاوو‌پنديې ورکاوو (وهنا) ضعف ته چي بل ځای الله فرمايي ﴿ وَهَنَ ٱلْعَظْمُ مِنِّى ﴾ (مريم ۴) يعني ضعيف شوهډوکي مي (فصاله) داهسي لفظ دی چي يوازي دتي رودلو (رضاع) په هکله خانګړي استعمالېږي او فصل بياعام دی اوکله چي وايي (فصلت المرأة ولدها) يعني هغه يې له تي څخه جلاکړ (أناب) په توبه اواستغفارسره رجوع کولوته وايي (تصَعّر) صعر په دوو,زورونوباندي يودول ناروغي ده چي اوښانوته رسېږي اوغاړې يې کږې وي بياوروسته په کبراووياړسره له يوچاڅخه مخ اړولوته وويل شو (مرحا) خوښي اونازنخروته وايي (مختال) په کبراوغرورتګ کونکی بولي (أقصد) درميانه تګ کول چي نه ډېرګرندي ي اونه ډېرآرام (أغضض) ټيټ کړه.

تفسير:

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا لُقْمَـٰنَ ٱلْحِكْمَةَ ﴾ اوخامخاپه تحقيق موږلقمان ته حکمت (عقل ،علم) ورکړی وو يعني هغه ته مود رايي ، وينا سموالی رښتنولي ورکړي وه چي له حق سره سمه ويناب يې کوله مجاهدوايي حکمت يعني فقه اوعقل اوپه ويناکي صواب، لقمان نبي نه وو بلکه هغه حکيم وو(٢) ﴿ أَنِ ٱشْكُرْ لِلَّهِ ﴾ (چي الله ته شکرکوه) يعني هغه ته مو وويل چي الله ﷻ دانعامونوشکر اداکړه چي تاته يې حکمت درکړی اوستاپه ژبه يې جاري کړی دی قرطبي وايي چي دجمهوروعلماوو رايه داده چي حضرت لقمان پيغمبرنه وو اوپه حديث شريف کي راغلي چي: لقمان نبي نه وو بلکه دالله يوبنده وو چي زيات تفکريي کاوو دښه يقين خاوندوو ده له الله سره ښه ګمينه درلوده نوالله ته محبوب شو نو ورباندي يې دحکمت پېرزوينه وکړه

---

(١) لسان العرب مادة حكم

(٢) الطبري ٢١ / ٤٣

(۱) ﴿ وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِۦ ﴾ اوهرچاچي شکروکړ پس بېشکه همدا خبره ده چي شکرکوي دپاره (دښېګڼي) دځان خپل(فائده اوثواب يې ده ته راجع ده ځکه الله ته دشاکرشکرڅه ګټه نه رسوي اونه هم ورته دکافرکفرڅه تاوان رسولای شي ځکه نو وروسته فرمايي ﴿ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴾ اوهرڅوک چي کافرشوپس بېشکه الله غني دېرېې پرواد ګردو محامدوخاونددی (مستحق دثنادی چي په ذات اوصفاتويې وويله شي. امام رازي وايې چي معناداچي دچاشکرته اړنه دی چي ديوچاکفرالله ته تاوان ورسوي الله پخپله ستايلی شوی ذات دی که خلګ يې شکرپرځای کړي اوکه نه (الله بي پروا نلري)

(۲) وروسته الله تعالی دلقمان څه نصيحتونه خپل زوی ته داسي بيانوي چي لومړی يې له شرک څخه وېروي ځکه هغه ترټولو ګناهونو بده ګناه ده ويې فرمايل چي: ﴿ وَإِذْ قَالَ لُقْمَٰنُ لِٱبْنِهِۦ وَهُوَ يَعِظُهُۥ يَٰبُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِٱللَّهِ ﴾ اويادکړه (ای محمده هغه وخت) چي وويل لقمان خپل زوی ته پداسي حال کي چي ده پند ورکاووهغه ته ای زمازوی ګوتيه له الله سره شريک مه نيسه (هيڅوک نه بت ، نه بشراونه زوی ) ﴿ إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ بېشکه چي شرک خامخاډېرلوی ظلم دی؛ ځکه چي يوڅيزله خپله ځايه پرته بل ځای اېښودل دی چي يوڅوک خالق اومخلوق سره مساوي ګڼي اوالله اوبت يوډول مني دغه (بېشکه) چي ترګردوخلګواحمق اوناپوه دی دعقل اوحکمت له منطقه ډېرليري دی او ورسره ښايې چي ظالم وبلل شي اودحيواناتوپه کتار کي ودرول شي ﴿ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ ﴾ اوموږ وصيت امرکړی دی انسان ته (داحسان کولو) له مور اوپلارسره (په ځانګړي توګه له مورسره ) ﴿ حَمَلَتْهُ أُمُّهُۥ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ ﴾ (چي په نس کي) ګرزاووده لره مور دده په سستي سره له پاسه دبلي سستي) چي دحمل له وخته بياترزېږېدلوپوري يې کړاوونه ګاللي خومره چي دموږپه ګېډه کي جنين لوئېږي هغومره دمور ضعف زياتېږي ﴿ وَفِصَٰلُهُۥ فِى عَامَيْنِ ﴾ اوبېلول دده دی له تي څخه (په پوره کېدلو) ددوو کالوکي ﴿ أَنِ ٱشْكُرْ لِى وَلِوَٰلِدَيْكَ إِلَىَّ ٱلْمَصِيرُ ﴾ (او ورته ويلي مودي داچي) شکرکوه ماته اوخپل مور اوپلارته خاص ماته ستاسي راتله دي ) يعني دخپل رب دايمان اواحسان شکراداکړه اودمور اوپلار دروزني شکرپرځای کړه ماته ستاسي راتله دي زه به نېکوکارته دنېکي اوبدکارته دبدي بدله ورکړم ابن جزي وايې چي داوينا ﴿ أَنِ ٱشْكُرْ لِى ﴾ دوصيت تفسيردی اودده اوتفسيرترمينځ داآيت چي ﴿ حَمَلَتْهُ أُمُّهُۥ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ وَفِصَٰلُهُۥ فِى عَامَيْنِ ﴾ معترضه راغلی چي داوښيي موردزوی ډېرکړاوونه ګاللي چي دهغې سترحق ښکاره کوي اوترپلاريې حق دمخه دی(۳) ﴿ وَإِن جَٰهَدَاكَ عَلَىٰٓ أَن تُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ

---

(۱) القرطبي ۱۴ / ۵۹
(۲) التفسيرالكبير ۲۵ / ۱۴۵
(۳) التسهيل ۳ / ۱۲۲

﴿ فَلَا تُطِعْهُمَا ﴾ اوکه کوښښ وکړي دامور اوپلارپه تاپدي چي شريک کړې ته له ماسره هغه شی چي نه وي تاته په هغه سره څه علم نوددوی دواړو اطاعت مکوه (چي لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق) ﴿ وَصَاحِبْهُمَا فِي ٱلدُّنْيَا مَعْرُوفًا ﴾ اوله دوی سره په دنياکي ښه غوره ملگرتياکوه (ورسره احسان اومعروف کوه څکه چي د دوی کفرهغه ددوی کړاوونه چي له تاسره يې کړي له مينځه نه وړي اوپه نېکيو بې ستړگي پښتول په کارنه دي ﴿ وَٱتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ﴾ اومتابعت کوه دهغه چاچي بيرته ماته راگرزېدلي دي (په توحيد، طاعت اونېکواعمالو) ﴿ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ بيا(خاص) ماته ستاسي راتله دي (په قيامت کي) پس زه به خبرکړم تاسي په هغوعملونوچي تاسي به کول اوحکمت په وصيت کولوداحسان له مور اوپلارسره دلقمان دوصيتونو په ترڅ کي دادی چي دلومړي آيت تاکيدوښيي چي هلته دشرک بدي راغلي وه ﴿ إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ لکه چي الله تعالی وايې چي سره له دې چي موړله مور اوپلار سره داحسان کولو امرفرمايلی اودهغوی دسترحق په وجه موددوی اطاعت وريانديلازم کړی له دې گردوسره بياهم موږهغه ته پداسي حال کي چي شرک ته يې بولي دنه منلو اواطاعت نه کولو ويلي دي چي شرک خوراستره گناه اوډېره بده اونهايته شنيع عمل دی وروسته بيا کلام دلقمان وصيت ته راگرزي چي ﴿ يَٰبُنَيَّ إِنَّهَآ إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ ﴾ ای زمازوی گوته بېشکه دا(گناه) که کوم شی دی په اندازه ددانې د(ړدن) اوړي څخه (په کوچنيوالي کي) ﴿ فَتَكُن فِي صَخْرَةٍ أَوْ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ أَوْ فِي ٱلْأَرْضِ يَأْتِ بِهَا ٱللَّهُ ﴾ پس وي دادانه په کومي تېږي کي ياوي په آسمانونو کي ياپه ځمکي کي الله به يې راوړي (حساب کتاب ته) غرض له دې څخه يوتمثيل دی چي له الله تعالی څخه هيڅ شی پټ نه دی که هرڅومره ووړوي اوهرڅومره خوندي اوگوښه شوی وي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴾ بېشکه الله ښه باريک ليدونکی (او) ښه خبردارد ی (په پټو رازونو) ﴿ يَٰبُنَيَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَأْمُرْ بِٱلْمَعْرُوفِ وَٱنْهَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ﴾ ای زمازوی گوته لمونځ قائموه (پخپلووختونو او خشوع آدابوسره له ټولو حقوقو) اوامر کوه (خلگوته) په نېکي اومنع کوه (خلگ) له بدونه ﴿ وَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَآ أَصَابَكَ ﴾ اوصبرکوه په هغه سختي چي تاته رسېږي (له تکاليفواومحنتونوڅخه (څکه چي دعوتگرته ارومروخلگ ربړونهوررسوي. ابوحيان وايې چي کله يې لومړی خل له شرک څخه منع کړ دوهم خل يې ورته وښودل چي الله څومره دقدرت خاوندا وپوهه يې څومره زياته ده نوبيايې دطاعاتو اوعباداتو ورته امر وکړ اوترټولوغوره طاعت ته يې متوجه کړچي هغه لمونځ دی وروسته يې امربالمعروف اونهی عن المنکرورپه لاس کړ ورپسي يې په هغه لاره کي دزغم اوصبرحوصلې مارېينه ورته وکړه څکه چي په عمومي توگه دغسي کسان له کړاوونو، ازمويښتونوسره مخ په مخ کېږي[1] ﴿ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ ﴾

---

(1) البحرالمحيط ۷ / ۱۸۸

بېشکه دغه (ذکرشوي نصيحتونه) له مهمو مقصودي کارونو څخه دي) ابن عباس رضي الله عنه وايي چي دايمان حقيقت دادی سړی به په کړاوونو صبرکوي امام رازي وايي معناداچي دغه له واجبي امورو څخه چي لازم دي ګڼل کېږي (عزم) مصدر د مفعول په معنادی (۱) ﴿ وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ ﴾ اومه ګرزوه مخ خپل خلګوته (له ډېره کبره اوغروره) قرطبي وايي چي له دوی نه دکبرپه وجه چي پرځان وياړي اودوی سپک ګڼي مخ مه کږوه اودغه دابن عباس وينا ده ﴿ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ﴾ اومه کوه تګ په ځمکه کي په ناز اونخرو ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴾ بېشکه الله نه خوښوي هرکبر کونکی فخر کونکی (په خلګو) دغه دپورتني نهي لپاره تعليل دی يعني دکبرجنو خلګو تګ مکوه ځکه چي الله کبرجنان نه خوښوي هغه چي خپل ځان په خلګولوړګڼي دالله په بندګانو مستي کوي په ناز اومکيز روان وي وروسته کله چي يې له بدوخويونوڅخه منع کړ دښوخويونو يې ورته تلقين وفرمايو چي: ﴿ وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ وَاغْضُضْ مِن صَوْتِكَ ﴾ اوميانه روځه پخپل تګ کي (مه ډېر وروځه مه ډېر ګړندی) او وروکړه غږ خپل (مه يې لوړوه چي هوښيارسړي په ډېر لوړ آواز ګرېدل ښه نه اېسي) ﴿ إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ ﴾ بېشکه چي ډېربد دټولو غږونو خامخاد خروغږ دی (نو څوک چي غږ لوړوي نوهغه به داسي ښکارېږي حسن بصري رحمه الله وايي مشرکانو به په لوړ آواز فخرکاوو نودا آيت ددوی ترديد کوي چي که چېري لوړ آواز ښه وای دخرو خوترهرچاآواز لوړدی قتاده وايي چي بدآواز دخرودی لومړی پيل يې (زفير) او وروستی يې (شهيق) دی.

**بلاغت:**

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱ - دطباق صنعت چي د ﴿ يَشْكُرْ... كَفَرَ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۲ - دمبالغې صيغه چي فرمايي ﴿ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴾ او ﴿ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴾ او ﴿ فَخُورٍ ﴾ ځکه چي فعيل اوفعول حميد اوفخور دمبالغې صيغې دي اومعنايې زيات حمدويلی شوی اوزيات فخر کونکی دی.

۳ - ذکردخاص وروسته له عام څخه لکه: ﴿ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ ﴾ اودادې لپاره چي دخاص په هکله زياته پاملرنه او اهتمام وشي.

۴ - رومبی راوړل دهغه چي دتأخيرور او مستحق وي لکه ﴿ إِلَيَّ الْمَصِيرُ ﴾ او ﴿ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ ﴾ يعني خاص ماته نه بل چاته ددې لپاره چي دحصرافاده وکړي.

۵ - دتمثيل صنعت چي فرمايي: ﴿ إِنَّهَا إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُن فِي صَخْرَةٍ ﴾ دغه يې دالله جل جلاله دپراخ علم اودهغه داحاطې لپاره مثال راوړی چي ګردشيان که واړه دي اوکه غټ سپک دي اوکه درانه اوچت دي ، که ښکته الله پاک په ډېر وروکي چي که ډېرپټ ځای کي هم وي پوهېدونکی اوعالم دی.

(۱) التفسيرالکبير ۲۵ / ۱۴۹

۶- تتميم (بشپړاوی) چي کله فرمايي: ﴿فَتَكُن فِي صَخْرَةٍ﴾ يوځل يې دخپل وروکوالی خفا بيا په تېره کي چي ځای يې هم پټ وي نو دغه دبديع له صنائعو څخه يو بل صنعت دی.

۷- مقابله چي د ﴿وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ﴾ بيا فرمايي ﴿وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ د دواړو لفظونو ترمينځ مقابله شته.

۸- تمثيلي استعاره داسي چي ﴿إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ﴾ هغه څوک چي په لوړ آواز کوکاري وهي له خروسره تشبيه شول اوغړونه يې دخروله هنګاروسره ،دتشبيه ادات يادشوي نه دي بلکه داستعارې په توګه يې راوړل چي دلوړغږونو څخه کرکه وښيي.

تنبيه:

کله چي الله تعالی دمور اوپلار دشکرپرځای کولو امر وکړنو يې دخپل ځان شکر ترهغوی دمخه کړ اوويې فرمايل ﴿أَنِ اشْكُرْ لِي﴾ وروسته يې زياته کړه چي ﴿وَلِوَالِدَيْكَ﴾ اوداددې لپاره چي دالله حق ترمور اوپلار دمخه دی پدې چي الله پاک جل جلاله وعم نواله دانسان دپيدا ابنبت اوخلقت حقيقي سبب دی اومور اوپلار دپيدا ابنبت ظاهري اوصوري سبب جوړېږي نوځکه يې الله پاک هغه وخت چي مور اوپلار خپل اولاد کفرته رابولي هغوی اطاعت منل حرام وګڼل اوويې فرمايل: ﴿فَلَا تُطِعْهُمَا﴾.

الله تعالی فرمايي:

﴿أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ ﴿٢٠﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ ﴿٢١﴾ ۞ وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ﴿٢٢﴾ وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ كُفْرُهُ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٢٣﴾ نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٢٤﴾ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٥﴾ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٢٦﴾ وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ وَالْبَحْرُ يَمُدُّهُ مِن بَعْدِهِ سَبْعَةُ أَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمَاتُ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٧﴾ مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٢٨﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى وَأَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِ الْبَاطِلُ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٣٠﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللَّهِ لِيُرِيَكُم مِّنْ آيَاتِهِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٣١﴾ وَإِذَا غَشِيَهُم مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُورٍ ﴿٣٢﴾ يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِ شَيْئًا

إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِٱللَّهِ ٱلْغَرُورُ ﴿٣٣﴾ إِنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ ٱلْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِى ٱلْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِى نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِى نَفْسٌۢ بِأَىِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴿٣٤﴾ ﴾ لقمان: ۲۰ – ۳٤

**مناسبت:**

کله چي الله ﷻ له شرک څخه تحذیر وفرمایو او دهغه د تائید لپاره يې د حضرت لقمان وصیتونه د ایمان او ښو اخلاقو په هکله راوړل وروسته دلته د خپل وحدانیت په باب ښکاره دلائل راوړي او د صنعت له مخي په صانع باندي برهان او هغه نعمتونه چي شمېرېې نشي کېدای چي هغه د آسمانونو تسخیر او هغو شیانو چي په همدې آسمانونو کي دي لکه لمر، سپوږمۍ، ستوري، وریځي او نور او همداسي د ځمکي او د ځمکي په مخ او تل کي چي څه شیان دي لکه حیوانات، نباتات کانونه، سمندرونه او نور چي د انسان لپاره يې تابع، او تسخیر کړي دي او دغه گرد د الله په وحدانیت گواهي ورکوي د سورت پای کي د پنځو مغیباتو په بیان سره کېږي

**لغتونه:**

(اسبغ) بشپړ کړي يې دي (استمسک) منگولي يې لگولي دي (نفدت) خلاص او تمام به شي (یولج) ننی باسي لکه چي الله فرمايي ﴿ حَتَّىٰ يَلِجَ ٱلْجَمَلُ فِى سَمِّ ٱلْخِيَاطِ ﴾ (الاعراف ۴) (الفلک) بېړی (کالظلل) لکه وریځي د ظل جمع ده او د اهر هغه څه ته وايې چي پرتاسیوری کوي هغه که غروي، که وریځ او که بل څه (ختار) مکرجن غدار (الغرور) خطا ایستونکی شیطان او انسان لکه چي وايې (غره الامل) آرزو تېرایستلی وو.

**تفسیر:**

﴿ أَلَمْ تَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ آیا نه وینی تاسي (ای انسانانو) چي بېشکه الله مسخر کړي (په کار اچولي دي) تاسي ته هرهغه چي په آسمانونو کي دي او هرهغه چي په ځمکه کي دي، لکه لمر، سپوږمۍ، ستوري څو وربانديي گټه واخلی او لکه غرونه وني، مېوې، رودونه (نهرونه) دا ټول ستاسي د خیر ښېگڼي لپاره دي ﴿ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُۥ ظَٰهِرَةً وَبَاطِنَةً ﴾ (او پوره کړي دي الله پرتاسي خپل نعمتونه په ښکاره او په پټه) یعني او بشپړ کړي يې دي پرتاسو ای خلکو خپل ښکاره لیدونکي نعمتونه لکه اورېدل، لیدل، روغتیا او اسلام او ناڅرگند نعمتونه لکه زړه، عقل، فهم او پېژند گلوي، یانور. بیضاوي وايې: معنا دا چي درکړي يې دي محسوس او معقول نعمتونه هغه چي پېژنی يې او هغه چي نه يې پېژنی[1] ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِى ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَٰبٍ مُّنِيرٍ ﴾ او ځیني له خلکو هغه څوک دي چي جگړه کوي په (حق د) الله چي بې له پوهي (د توحید او صفاتو) او بې له (لاري د هدایت او بې له روښانه کتابه (چي د الله له لوري رانازل شوی وي. قرطبي وايې: دغه آیت د یهودو په باب رانازل شوی چي پیغمبر ﷺ ته راغی ورته ویل يې ماته ستا د رب خبر راکړه هغه له څه شي څخه (جوړشوی) دی

---

[1] البیضاوي ۲/ ۱۰۹

نوتند رورباندي راپربووت اودى يې هلاک کړ(۱) دروښان معنا ژغورونکى له تاريکي دجهل اوبېونکى رڼا ته ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّبِعُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ﴾ اوکله چي ورېل شي دوى ته چي متابعت وکړئ په صدق سره دهغه (قرآن) چي الله نازل کړى دى (پخپل استازي) اوپه هغه باور وکړئ ځکه هغه دحق اوباطل هدايت اوضلالت ترمينځ جلاوالى کوي ﴿ قَالُواْ بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآ ﴾ نووايې دوى نه! بلکه دهغه شي متابعت کووچي موږپلرونه په هغه موندلي وو (چي دبتانو عبادت يې کاوو) ﴿ أَوَلَوْ كَانَ ٱلشَّيْطَٰنُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ ﴾ (نوالله وايې) آيا (د پلرونو متابعت کوى) اگرکه وي شيطان داسي چي بولي دوى په لوري ددوزخ (عذاب؟) استفهام د انکار لپاره دى يعني آيادوى دهغه متابعت کوي که څه هم هغه گمراه اودوى دسخت عذاب طرف ته بيايي؟ بلکه متابعت دي نه کوي ﴿ وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ اوهرڅوک چي وسپاري مخ (ځان) خپل الله ته (طاعات يې کوي حکمونوته يې غاړه ايږدي) ﴿ وَهُوَ مُحْسِنٌ ﴾ حال داچي دى نيکوکاروي (موحد مؤمن وي) قرطبي وايې چي عبادت پرته له احسان اوقلبي معرفته گټه نه رسوي(۲) اومثال يې دغه آيت دى ﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ ﴾ (طه ۱۱۲) ۱۱۲) نوايمان ته ارو مرو اړتياشته ﴿ فَقَدِ ٱسْتَمْسَكَ بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ ﴾ نوپه تحقيق ده منگولي ښخي کړې په کړه مضبوطي (چي پرې کېدل نلري . کشاف وايې دغه دمثال په ډول راوړل شوى دى چي دتوکل کونکي حال يې له هغه چاسره تمثيل کړچي له لوړي ځخه راکوزېږي اوپه مضبوطه رسۍ يې منگولي ټينگي کړي وي امام رازي وايي ترگردوټينگه کړه دالله ﷻ لورى دى اوهرڅه له الله ﷻ پرته شلېدونکي اوفاني دي(۳) يوازي الله باقي اوتلپاتي ذات دى ﴿ وَإِلَى ٱللَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلْأُمُورِ ﴾ اوخاص الله ته دي دټولو کارونو خاتمه نه بل چاته نوالله به عمل کونکوته ښه جزاورکړي ﴿ وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ كُفْرُهُۥٓ ﴾ اوهرڅوک چي کافرشو پس تادي خفه نکړي کفردده) دغه د رسول الله ﷺ لپاره تسليت دى چي اى محمده! ﷺ تاته دي دکفارو کفراودگمراهانو ضلالت خواشيني اوغم پېښ نکړي چي موږبه ارومروله دوى څخه انتقام اوکسات واخلو که ژروي اوکه وروسته ﴿ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوٓاْ ﴾ (ځکه چي) خاص موږ ته دي بيارا تله ددوى په قيامت کي پس موږ به دوى خبرکړو په هغوأعمالوچي دوى کړي دي (په دنياکي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ ببشکه چي الله ښه عالم دى په هغو خبرو چي (ددوى ) په

---

(۱) القرطبي ۱۴ / ۷۴. اوچاببياويلي چي دنضربن حارث اوأبى بن خلف اونورو کسانو چى له رسول الله سره يې دالله دوحدانيت اوصفاتوپه هکله بې له عقلي علمه اوشرعي دليله مجادله کوله راغلى دى

(۲) التفسير الکبير ۲۵ / ۱۵۴

(۳) الکشاف ۳-۳۹۵

سینوکي دي (له مکره ، کفره، اوتکذیب څخه په هغوبه جزاورکړي) ﴿ نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴾ نفع به ورکړو موږ دوی ته (په دنیاکي )لږشاني بیااولودوی په ډېره ناچاري سره په لوري دسخت عذاب (دجهنم) بیاالله تعالی ددوی استحقاق دعذاب لپاره څرګندوي چي دوی څرنګه په دنیاکی متناقض اودوه مخي کړنلاره درلوده هغه داچي الله یې پدې پېژاندوچي ځمکي آسمانونه یې پیداکړي خوله دې سره سره به یې د بتانو عبادت کاوو اوهغه یې ورسره شریکان نیول اوپدې یې اعتراف کاوو چي الله ﷻ مالک دی اودانور ګردیې مخلوقات دي نو الله فرمایې: ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ ﴾ اوقسم دی که وپوښتې ته ای محمده !) دغه (کفاردمکې مشرکان) چي چاپیداکړي دي دغه آسمانونه او ځمکه نوخامخاوبه وایې دوی هرومرو چي الله (ځکه چي دابېخي روښانه خبره ده نودوی مجبور دي په دې به اقرارکوي ﴿ قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ﴾ ووایه (ای محمده !) ټوله ثناء خاص الله لره ده) یعني کله چي دوی مقرشول نوته دوی ته و وایه چي الحمدلله پرتاسودلیل ثابت شواوپردې ثناءووایه ,دایمان دلائل ظاهره ، عیان اوڅرګند دي ﴿ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (بلکه زیاتره ددوی نه پوهېږي) یعني زیاتره ددې مشرکانونه سوچ کوي اونه فکرځکه نونه پوهېږي بیاالله فرمایې ﴿ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ خاص الله لره دي هرهغه څه چي په آسمانونوکي دي اوپه ځمکه کي دي (ملکًا، خلقًااو تدبیرًا )﴿ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْغَنِيُّ ٱلْحَمِيدُ ﴾ بېشکه چي الله دی همدی دی بې پرواډېره ثناورته ویلي شوي (په صنعت اونعمتونویې) ﴿ وَلَوْ أَنَّمَا فِي ٱلْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ أَقْلَٰمٌ ﴾ او که چېري هغه څه چي په ځمکه کي دي له ونوڅخه (هغه ټول ) قلمونه شي ﴿ وَٱلْبَحْرُ يَمُدُّهُۥ مِنۢ بَعْدِهِۦ سَبْعَةُ أَبْحُرٍ ﴾ (اوسیاهي شي)بحر مرسته وکړي له ده سره پس له تمامېدوده او وروسته له ده اوه (نور) دریابونه (او وربانديې ولیکلي شي کلماتي دالله چي دالله په عظمت ، صفاتو اوجلال دلالت کوي ﴿ مَّا نَفِدَتْ كَلِمَٰتُ ٱللَّهِ ﴾ پس خلاص به نشي کلمات دالله ) اودغه دریابونه او قلمونه به خلاص اوتمام شي ځکه وني اوسیندونه متناهي اودالله کلماتي غیرمتناهي دي قرطبي وایې کله چي الله ددې یادونه وکړه چي الله آسمانونه اوځمکي مسخرکړې اونعمتونه یې بشپړکړي نویې ددې تنبیه وفرمایله چي که چېري داګرده وني اوسیندونه سیاهي اوقلمونه شي اودالله دصنعت عجائبات چي دالله په قدرت اووحدانیت دلالت کوي ولیکي دغه عجائبات به تمام نشي([1]) اوابن جوزي وایې چي په کلام کي محذوف شته هغه داچي ولیکلی شي په دغو قلمونواوپدې سیاهیو باندي دالله کلمات دغه قلمونه به مات اوسیاهي به تمامه شي مګربیابه هم دالله کلمات پوره اوبشپړ شوي نه وي یعني منقطع به نشي([2]) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾

---

([1]) القرطبي ۱۴/ ۷۲

([2]) زادالمسیر ۶-۳۲۲

بېشکه چي الله ښه غالب قوي دی (هيڅ څيزيې مغلوبولای نشي) ښه حکمت والادی (چي هيڅ شی اوچاره يې له علم اوحکمت څخه وتلي نه ده) ﴿ مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَٰحِدَةٍ ﴾ نه دی پيداکول ستاسي او بياژوندي راپاڅول ستاسي مگرداسي دی (لکه پيداکول) ديونفس (ځکه کله چي الله ديوڅيزد پيدا کولواراده وکړي د (کن) په حکم (فيکون) شي صاوي وايې معناداچي په الله هيڅ شئ مشکل نشي دگرد عالم پيداکول او بيا راژوندي کول ورته داسي آسانه دي لکه چي يونفس پيداکوي اويايې بياژوندی راپاڅوي [1]) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ ﴾ بېشکه چي الله ښه اورېدونکی (دبندگانو د اقوالو) ښه ليدونکی (په اعمالو د دوی) دی بياالله دخپل قدرت اوخواک ننبانې چي په آفاقوکي تر سترگوکېږي داسي بيانوي ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ وَيُولِجُ ٱلنَّهَارَ فِى ٱلَّيْلِ ﴾ (آيانه وينې (ته ای مخاطبه بلکه وينې يې) چي بېشکه الله ننې باسي شپه په ورځ کي اوننې باسي ورځ په شپه کي) يعني ای مخاطبه ته په بشپړه توگه پدې علم نلرې هغسي علم لکه چي په سترگويې وينې چي لوی الله پخپل کامل قدرت سره دشپې تياره دورځي په رڼا ننې باسي اودورځي رڼادشپې په تيارۀ کي دننه کوي له يوې څخه کموي بله لويوي دغه يې دازلي حکمت سره سمه کړنلاره ده ﴿ وَسَخَّرَ ٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِىٓ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ (اومسخرکړي په کاراچولي يې دي تاسي ته لمر اوسپوږمی هريوله (دغودواړو نه لکه نور سيارات) روان دي (په آسمان کي) ترټاکلي مودې پوري ) يعني تابع کړي يې دي په راختلو اولوېدلوچي دمودوټاکنه وکړي اومنافع گټي بشپړي کړي هريوپخپل فلک کي گرزي ترڅو(چي دقيامت ورځ راځي) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ (اوبېشکه الله په هرهغه څه چي تاسي يې کوی ښه خبردی) يعني الله تعالی ستاسوپه احوالو ، اعمالوخبرداردی هيڅ شی ورڅخه پټ اوالونيانه دی بېشکه يوڅوک چي دغه ښايسته صنعت گوري اودغه لوړتدبيرسنجوي نوبياله دي څخه نه غافله کېږي چي دغه الله ﷻ دده په گردواعمالو محيط اوخبرداردی ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ ﴾ (دغه (شامل معرفت کامل قدرت) له دې سببه دی چي بېشکه الله هم دی حق دی) يعني داچي ومولیدل الله څرنگه دکامل قدرت خاوند اوعجيبه صنعتونو څښتن دی ددې لپاره دی ترڅودرته له ورايه وبرېښي چي الله حق ذات دی اولازم دی چي يوازي دهمده عبادت وکړای شيَ ﴿ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِ ٱلْبَٰطِلُ ﴾ (او بېشکه هغه (بتان) چي دوی يې بولي (عبادت يې کوي) بې له دغه (الله نه) باطل دي) گردهغه چي دوی يې پرته له الله عبادت کوي لکه بتان اونورمعبودان باطل دي حقيقت نلري لکه چي لبيدوايې :( الاکل شئ ماخلا الله باطل) ټول دالله مخلوق اوبندگان دي دالله له حکم نه بغيرڅوک يوه ذره له ځايه خوځولای نشي ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْعَلِىُّ ٱلْكَبِيرُ ﴾ اوبېشکه الله هم دی ښه پورته لوی دی (په صفاتواو ذات کي) ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱلْفُلْكَ تَجْرِى فِى ٱلْبَحْرِ بِنِعْمَتِ ٱللَّهِ ﴾ (آيانه وينې ته چي بېشکه دابېړۍ په بحرکي د الله په نعمت (فضل) تگ

---

[1] حاشية الصاوي على الجلالين ۳ / ۲۵۹

کوي؟) دغه یوه بله دنعمتونو یادونه ده چي ای هوښیاره ته دغه ستري ستري بېړۍ نه وینې چي دالله په قدرت په بحر کي رواني دي او بحرالله ورته مسخر کړی دی څکه که چېري په او بو کي دغه خواک او قوت نه وای چي بېړۍ ورباندي رواني شي تللی به نه وې (۱) څکه نو وروسته فرمایې ﴿ لِيُرِيَكُم مِّنْ ءَايَٰتِهِۦٓ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴾ لپاره ددې چي تاسي ته وښیي له دلائلو د(قدرت وحدانیت) ده، بېشکه پدې (تسخیر دبېړیو اوبارول دخوراکونو، اوروزي اوسوداګري توکوکي ) خامخا ډېر دلائل دقدرت) دي لپاره دهر ډېرصابر ډېرشاکر ﴿ وَإِذَا غَشِيَهُم مَّوْجٌ كَٱلظُّلَلِ ﴾ اوکله چي لاندي کړي دغه (کفار) یوموج لکه وریخي (یوغرغوندي) ﴿ دَعَوُا۟ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ نوبولي دوی الله پداسي حال کي چي دوی خالص کونکي وي خاص الله ته (دین خپل (کله چي وپوهېږي پرته له الله بل څوک ددوی ژغورونکی نشته نو همدغه الله ته زاري جګي کوي ﴿ فَلَمَّا نَجَّىٰهُمْ إِلَى ٱلْبَرِّ فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ ﴾ پس کله چي دوی ته الله نجات ورکړي (راوېې باسي) دوچي لوري ته نو ځیني ددوی په سمي لاري وي. په آیت شریف کي حذف راغلی هغه داچي ځیني په سمه لاري او ځیني نوربیا انکار کوي اودلیل یې دادی چي الله بیافرمایې:

﴿ وَمَا يَجْحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ ﴾ دمقتصد معناپه عمل کي میانه رو. ابن کثیروایې: معناداچي دغسي هیڅ نه ښایې څکه هغه چا چي داسي سترکړاوونه اوهیبت ناکي پېښي یې ولیدې اودالله دقدرت او وحدانیت لویې لویې نښانې ورته څرګندي شوې وروسته بیاچي کله الله ورباندي خپل فضل او مهرباني وکړه اودی یې وژغورو نوداسي ورسره ښاېدل چي بشپړښه عمل وکړي اوطاعاتو، عباداتو ته ملاوتړي اوڅوک چي بیاهم مقتصدوي هغه مقصردی (۲) ﴿ وَمَا يَجْحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُورٍ ﴾ اوانکارنه کوي زمونږ دقدرت له دلائلو مګر هغه چي ډېر عهدماتونکی غدار اونا شکره وي (دنعمتونو دالله) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُوا۟ رَبَّكُمْ ﴾ ای خلکو ووېرېږی (له عذابه) درب ستاسي (په امتثال داوامرو اواجتناب له نواهیو څخه) ﴿ وَٱخْشَوْا۟ يَوْمًا لَّا يَجْزِى وَالِدٌ عَن وَلَدِهِۦ ﴾ او ووېرېږئ تاسي له هغي ورځي چي نه به شي دفع کولای عذاب هیڅ پلار له خپله زویه) ﴿ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِۦ شَيْـًٔا ﴾ اونه هیڅ زوی (داسي دی ) چي هغه دفع کونکی شي له خپل پلار څخه کوم شی (څه عذاب اوګناه یې پخپله غاړه واخلي ). طبري وایې معناداچي نه عذاب دفع کوي اونه کوم شفاعت او سپارښتنه هلته په کار ېږي مګر دنېکو عملونو اوطاعاتو به ورته ګټه رسېږي اودده په ښه به کېږي کوم چي پخوایې له دنیانه استولي وي(۳) ﴿ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ ﴾ بېشکه دالله وعده رښتیاده (وعده د ثواب اوعذاب اوبعث او جزاء) ﴿ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا ﴾

(۱) مختصرابن کثیر ۳ / ۷۹
(۲) الطبري (۲) ۵۵

پس نه دي غره کوي تاسي خامخا دغه ددنیا ژوند(په لذتونو اوخوندونو چي ورباندي تېروزی ) ﴿ وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴾ اونه دي غره کوي خامخا تاسي په الله باندي شیطان) غره کونکی (هغه چي خلگ په چتیاتوله آخرت څخه خطا باسي) ﴿ إِنَّ اللَّهَ عِندَهُۥ عِلْمُ السَّاعَةِ ﴾ (بېشکه خاص له الله څخه علم دقیامت دی ) یعني هغه دغیبو کلیگاني پنځه دي لکه چي په حدیث کي راغي (مفاتح الغیب خمس لایعلمهن الا الله) اودغه آیت یې تلاوت وفرمایو (۱) ﴿ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ﴾ اوالله باران نازلوي ( وخت اوځای دنزول یې ورته څرګنددی ) ﴿ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ ﴾ اومعلوم دی الله ته هغه څه چي دمیندوپه ارحامو کي دي (چي نردی که ښځه ، نېکمرغه سعیددی اوکه بدمرغه شقي) ﴿ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ﴾ اونه پوهېږي هیڅوک چي سبابه څه کار کوي ؟ښه به کوي که بد ) ﴿ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ ﴾ اونه پوهېږي هیڅ نفس چي په کومه ځمکه کي به مري (اوخنبېږي) ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴾

بېشکه الله ښه عالم دی (په دغو څیزونو اونورو اقوالو ) ښه خبردار دی په ټولو احوالوپه ظاهري اوباطني ګردوچارو پوه اوخبردی.

**بلاغت:**

پدې آیتونوکي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې په لاندي ډول دی:

۱-دطباق صنعت لکه ﴿ ظَٰهِرَةً .....وَبَاطِنَةً ﴾ اوداسي د ﴿ الْحَقُّ.....الْبَٰطِلُ ﴾ ترمینځ.

۲-انکاراوتوبیخ سره له حذفه چي فرمایې ﴿ أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَٰنُ يَدْعُوهُمْ ﴾ آیادوی یې پلوی کوي که څه هم شیطان یې ددوزخ اورته بولي ؟

۳-مرسل مجازلکه ﴿ وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُۥ ﴾ جزء یې راوړی اودکل اراده یې ده.

۴-تمثیلي تشبیه لکه ﴿ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ ﴾ هغه څوک چي په اسلام یې منګولي ښخي کړي له هغه چاسره یې مشابه وګاڼه چي لوړغره ته خېژي اوپه مضبوطه رسۍ یې لاسونه ټینګ کړي دي دلته یې دتشبیه ادات حذف کړي چي مبالغه افاده کړي.

۵-مقابله چي فرمایې: ﴿ وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُۥٓ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ ﴾ اود ﴿ وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ كُفْرُهُۥٓ ﴾ ترمینځ.

---

(۱) أخرجه البخاري

۶- استعاره چي فرمايي ﴿ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴾ د غلظت (پنډوالی) کلمه يې د شدت لپاره استعاره کړي که څه هم هغه د اجسامو اجرامو په باب راتله د معنوي څيز لپاره يې استعاره راوړې ده.

۷ - ړومبی راوړل د هغه څه چي د دوروستي راوړلو ور اومستحق وو لکه ﴿ وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ﴾ ترڅو چي حصر افاده کړي يعني يوازي الله ته نه بل چاته.

۸ - د مبالغې صيغې چي ﴿ صَبَّارٍ... شَكُورٍ... خَتَّارٍ... كَفُورٍ... عَلِيمٌ... خَبِيرٌ... سَمِيعٌ..... بَصِيرٌ ﴾ اولکه چي د فواصلو توافق هم پکي څرګند دی او د غه ته سجع وايې چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي

د سورت لقمان تفسير بشپړ شو لله الحمد والمنة.

***

## د السجدة سورت مکي او دېرش آيتونه لري.

### د سورت په وړاندي:

* د غه سورت مکي او د نورو سورتونو په شان د عقيدې موضوع څيړي ايمان په الله، د قيامت په ورځ او په کتابونو او پيغمبرانو او په بعث او نشور د ايې مهم توکي دي او هغه محور چي د غه سورت ورباندي راګرزي د بعث بعد الموت موضوع ده هغه چي مشرکانو به د هر ځله د هغې په هکله جګړې او شخړې کولې او د رسول الله ﷺ د دروغجن ګڼلو لپاره يې واسطه ګرزولې وه.

* د سورت پيل د شک او شبهې په دفع کولو کيږي کوم چي د قرآنکريم په هکله يې درلود هغه مقدس کتاب چي د رسول الله ﷺستره معجزه او په خواوشايې د شک او ترديد ځای نشته کيږي د د غه سپېڅلي کتاب د اعجاز څرګندتيا، د دلائلو روښانتيا، د بيان ځلا او د احکامو لوړتيا او اعتلاء څخه يې هيڅوک انکار نشي کولای خو بيا هم مشرکانو به رسول الله ﷺ په دې تورن کاوو چي د غه يې له خپله ځانه جوړ کړی نو د غه سورت نازليږي او د غه بهتان په خپل کوتلي برهان او دليل له مينځه وړي.

* بيا سورت د قدرت او وحدانيت دلائل بيانوي هغه چي په علوي کائناتو او سفلي کي يې آثار ښکاره دي چي په ترڅ کي يې د واحد قهار ذات ابداع ته پام راواړول شي. ورپسې د مشرکانو هغه بېځايه شک او شبهه چي د بعث او نشور په باب يې لرله رااخلی او په ښکاره اقرار کوي او د غه د قرآنکريم د خواکمن بيان او دليل څرګندوی دی.

* په پای کي سورت د يوم الحساب يادونه کوي او هغه څه بيانوي چي الله پاک د متقيانو مؤمنانو لپاره له نعمتونو څخه تيار کړي چي تل ترتله جنت او د هغه بې شمېره نعمتونه دي همداراز د مجرمينو کفارو تل ترتله عذاب اوکړاوونه چي همېشه به په دوزخ کي ورسره لاس اوګرېوان وي بيانوي

## تسمیه او نو مول یې:

دې سورت ته خکه سورت السجدة وایې چې الله پکې دنېکانو مؤمنانو اوصاف راوړي هغوی چې کله به یې قرآني آیتونه واورېدل نو په سجده به پرېوتل ﴿ خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَسَبَّحُوا۟ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴾

الله تعالی فرمایي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ الٓمٓ ﴿١﴾ تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٢﴾ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۚ بَلْ هُوَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٣﴾ ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ۖ مَا لَكُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِىٍّ وَلَا شَفِيعٍ ۚ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٤﴾ يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ إِلَى ٱلْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِى يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُۥٓ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴿٥﴾ ذَٰلِكَ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٦﴾ ٱلَّذِىٓ أَحْسَنَ كُلَّ شَىْءٍ خَلَقَهُۥ ۖ وَبَدَأَ خَلْقَ ٱلْإِنسَٰنِ مِن طِينٍ ﴿٧﴾ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُۥ مِن سُلَٰلَةٍ مِّن مَّآءٍ مَّهِينٍ ﴿٨﴾ ثُمَّ سَوَّىٰهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِن رُّوحِهِۦ ۖ وَجَعَلَ لَكُمُ ٱلسَّمْعَ وَٱلْأَبْصَٰرَ وَٱلْأَفْـِٔدَةَ ۚ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿٩﴾ وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا ضَلَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍۭ ۚ بَلْ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ كَٰفِرُونَ ﴿١٠﴾ ۞ قُلْ يَتَوَفَّىٰكُم مَّلَكُ ٱلْمَوْتِ ٱلَّذِى وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١١﴾ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ﴿١٢﴾ وَلَوْ شِئْنَا لَءَاتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدَىٰهَا وَلَٰكِنْ حَقَّ ٱلْقَوْلُ مِنِّى لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١٣﴾ فَذُوقُوا۟ بِمَا نَسِيتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَآ إِنَّا نَسِينَٰكُمْ ۖ وَذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلْخُلْدِ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾ إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا۟ بِهَا خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَسَبَّحُوا۟ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۩ ﴿١٥﴾ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ ٱلْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿١٦﴾ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ أُخْفِىَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٧﴾ ﴾ السجدة: ۱ - ۱۷

## لغتونه:

(افتراء) له ځانه جوړول (یعرج) پورته کېږي (یدبر) د نورو خلکو د چارو تدبیر کوي (سلالة) خلاصه[۱] (مهین) سپک خوار (سوّاه) په تکمیل داندامونو یې برابر او سم کړ (ضللنا) چې مور هلاک شو ضائع شو د عربو له دې ویناڅخه اخیستل شوی چې (ضل اللبن فی المآء) شیدې په اوبو کې ورکې شوې (ناکسوا) ټیټ سرونه ښکته اچونکي (الجنة) پېریان او الونیا پټ څیزته وایې.

---

(۱) دسلالة په وضاحت سره معنا دالمؤمنون په سورت کې کتلای شئ.

## تفسير:

﴿ الٓمٓ ﴾ له مقطعاتو تورو څخه دی او د قرآنکريم په اعجاز تنبيه ورکوي (۱) ﴿ تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (نازلېدل د (دغه) کتاب (قرآن) چي نشته هيڅ شک پدغه کي له (جانبه د) رب د عالميانو دی) يعني دغه کتاب چي تاته ای محمده وحی شوی بېشکه چي دغه د الله عزوجل له لوري او د رب العالمين تنزيل دی ﴿ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ﴾ آيا وايي (دغه کفار قريش) له خپله ځانه يې جوړ کړی دی؟ (أم) د بل په معنا دی سره له همزې د (بل أيقولون) معنا دا چي آيا مشرکان وايي چي دغه قرآن محمد له ځانه جوړ کړی دی؟ نه داسي نه ده لکه چي دوی وايي ﴿ بَلْ هُوَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ﴾ بلکه هم دغه (قرآن) حق دی نازل شوی دی) له جانبه د رب ستا. بيضاوي وايي چي لومړی يې د قرآن مجيد اعجاز ته اشاره وفرمايله بيا يې دا وينا ورباندي مرتب کړه چي دغه د رب العالمين له لوري دی او پدې يې د شک او شبهې ليري کول تائيد کړل او بيا يې له دې څخه هغه جانب ته لېږدېدل او انتقال وکړ کوم چي دوی ويل او ددې خلاف به يې خبري کولې ترڅو د دوی د دې وينا ناسوالی او تعجب ښکاره کړي ورپسې يې له راتلو څخه مقصد بيان کړچي ﴿ لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ چي وو ېروې ته (په قرآن سره) هغه قوم چي نه دی راغلی دوی ته هيڅ وېرونکی پخوا له تانه (ای محمده!) مفسرين کرام وايي چي دوی د فترت د زمانې خلګ وو هغه موده چي د محمد ﷺ او عيسی ﷺ ترمينځ وه او تردې د مخه انبيا عليهم السلام راغلي وو لکه ابراهيم، هود او صالح عليهم السلام خو کله چي پر دوی موده اوږده شوه نو بې محمد مصطفی ﷺ را واستاوه ترڅو دوی وو ېروي او دليل ورباندي ثابت شي ﴿ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴾ ددې لپاره چي دوی سمه لاره ومومي او په الله ﷻ ايمان راوړي بيا الله پاک د توحيد دلائل داسي بيانوي ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾ الله هغه (مطلق قادر) ذات دی چي ځمکه او آسمانونه يې پيدا کړي دي او هر هغه چي په مينځ د دغو دواړو کي دي په (اندازه) د شپږو ورځو کي. حسن بصري رحمه الله وايي چي دغه د دنيا د ورځو په اندازه او که الله غوښتي وای د سترګو په رپ کي به يې پيدا کړي وو خو د الله غوښتنه داده چي بندګانو ته په کرار او تأني د چارو سرته رسول ورو ښيي. قرطبي وايي چي الله دوی ته د خپل قدرت بشپړتيا او کمال وروښود ترڅو قرآن واوري او سوچ پرې وکړي او د (خلق) معنا وروسته له نېستي او عدم څخه پيدا ايښت دی (۲) ﴿ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ﴾ بيا يې استواء وفرمايله پر عرش باندي (همغسي چي د الله له شانه سره وړ او لائقه ده بې له تشبيه او تمثيل نه) ﴿ مَا لَكُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِىٍّ وَلَا شَفِيعٍ ﴾ نشته تاسي لره (ای کفارو) غير له الله هيڅ دوست او نه شفاعت کونکی (چي د الله په وړاندي ستاسي شفاعت وکړي مګر په اجازه دده بلکه الله هغه ذات دی چي ستاسي

---

(۱) هغه څه چي د البقره سورت په پيل کي پدې هکله ليکل شوي وګوره.
(۲) القرطبي ۱۴/۸۲

دچاروتدبیرکوي اوستاسي مصلحتونه په پام کي لري ﴿أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ﴾ آیاپس پند نه آخلی؟ (چي ایمان راوړی) ﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ﴾ (تدبیرکوي (اونازلوي) امرکارله آسمانه ځمکي ته) یعني الله دګردومخلوقاتوچاري سمبالوي که په آسمان کي دي اوکه په ځمکه کي دهیچاکارخوشی نه پرېږدي ابن عباس ﷺ وایي معناداچي الله فیصله اوقضاله آسمانه ځمکي ته رالېږي اوهغه څه چي الله یې تدبیراوقضافرمایلي وي رانښکته کوي ﴿ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ﴾ بیابیرته خېژي هغه کارالله ته (ګردپه ورځ دقیامت کي چي ترمینځ یې فیصله صادره کړي) ﴿فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ﴾ چي ده اندازه دهغې (ورځي) زرکاله له هغو (دنیوي وختونو) چي تاسي یې شمېری ﴿ذَٰلِكَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ همدی عالم دی په هرپټ اوښکاره. قرطبي وایې چي په آیت شریف کي دوعیداوتهدیدمعنانغښتي ده لکه چي ویلي یې وي په اخلاص ویناا وعمل کوئ زه وربا ندي جزاء درکوم اود ﴿الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ معناده هغه چي له خلګوپټ اوهغه چي ورته څرګندوي [1] ﴿الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ ښه غالب (په تقدیر) ښه مهربان (په بندګانوچي دچارویې تدبیرکوي ﴿الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ﴾ هغه الله چي ښایسته کړی یې دی هرشی چي پیداکړی یې دی یعني هرڅیزچي یې پیداکړی دی هغه یې ښه محکم اومضبوط جوړکړی. ابوحیان وایې چي دغه دامتنان لپاره ښه ابلغ دی اومعناداچي هرشی یې پخپل ورځای باندي ایښی دی ځکه نوابن عباس ﷺ وایې چي بیزو (شادی) خوښایسته نده مګر هغه جوړښت یې مضبوط محکم دی [2] ځیني علماء کرامو ویلي که بالفرض ته داسي تصوروکړې چي دفیل سر داوښ وي اودسوی سر دي دزمري وي ، یادانسان سردي لکه دخره وي نوپدې کي به دېر نقصان ومومئ اوهیڅ تناسب به پکي نه وي خوکه چېري پدې وپوهېږې چي داوښ اوږده غاړه اوځېرلي شونډي ددې لپاره دي چي هغه وکولای شي دتګ په حال کي خوراک وکړي اویاداچي که چېري دفیل خرطوم نه وای نوبیابه یې نشوای کولای دخوړلو ،ځښلولپاره په پروتو اویاناستي خوراک ،څښاک وکړي ځکه چي خوراغټ بدن لري که پدې ګردووپوهېږې نوبه دي په دې باور شي چي دالله جوړښت خوراپرځای اوپه اتقان پوره دی نوبه بې اختیاره ووایې: ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ [3] ﴿وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنْسَانِ مِنْ طِينٍ﴾ اوشروع کړی یې دی پیداېښت دانسان (یعني آدم) له ختي څخه ﴿ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ مَاءٍ مَهِينٍ﴾ بیایې پیداکړ نسل اولاد دده له خلاصي له خوارو ضعیفواوبو څخه (چي مني دي) ﴿ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِنْ رُوحِهِ﴾ (بیایې برابرکړ (قالب د ) هغه اوپوې کړپه دغه (قالب کي) له روح خپل څخه) یعني کله چي یې اندامونه برابرکړل او دموروپه رحم کي یې خلقت ورکړ وروسته یې پکي روح پوکړه نوهغه په بشپړصورت

---

[1] القرطبي:۱۴/ ۸۹
[2] البحر۷/ ۱۹۹
[3] اوضح التفاسیر

اوښایسته جوړښت څرګندشو ابوالسعودوایې چي دروح نسبت الله تعالی ته کول دانسان دتشریف اوتعظیم لپاره دی اوچي پدې ګواهي ورکړي چي دغه یوعجیب اوبدیع مخلوق دی دسترشان خاوندی چي د حضرت ربوبیت سره مناسبت لري (١) ﴿ وَجَعَلَ لَكُمُ ٱلسَّمْعَ وَٱلْأَبْصَـٰرَ وَٱلْأَفْـِٔدَةَ ﴾ وبې ګرزول (دربې کړل ) تاسي ته (ای بنیادمانو ) غوږونه اوسترګي (چي پرې اوری اووینی ) اوزړونه (چي عقل اوفکرپرې کوی حق اوهدایت وربانديې پېژنی ) ﴿ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴾ خوسره له دغونعمتونوبښخي تاسي (خپل رب ته ) لږشکرکوی د (ما )کلمه دلږوالي دتاکید لپاره راوړل شوي ده ﴿ وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا ضَلَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ اووایې (دمکې کفارچي له بعث نه منکردي ) آیاکله چي موږپه ځمکه کي ورک شو(هډوکي موایرې شي اوغوښې موخاوري آن تردې چي ببخي ورک شو ) ﴿ أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍۭ ﴾ آیاببشکه موږخامخاپه نوي پیداینبت کي یو؟ (بلکه نه یودغه استبعاد دبعث اونشورپه هکله دی اوبعث بعدالموت ریشخنداوملندي بولي څکه الله فرمایې : ﴿ بَلْ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ كَـٰفِرُونَ ﴾ بلکه دوی له ملاقات درب خپل منکران دي (چي په قیامت ایمان نه راوړي ) ﴿ قُلْ يَتَوَفَّىٰكُم مَّلَكُ ٱلْمَوْتِ ٱلَّذِى وُكِّلَ بِكُمْ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته څواب په دغوباطلوګمانونوددوی ) قبض کوي ارواح ستاسي پرښته دمرګ (عزرائیل ) هغه چي مقرره ده په تاسي (دی اودده مرستندویان ) ﴿ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴾ بیابه خپل رب ته بیرته بوتلل شی (په ورخ دقیامت لپاره دحساب اوجزآء. ابن کثیروایې چي ظاهره دادی چي ملک الموت یومعلوم ذات اوشخصیت دی اوپه ځینو آثارو کي هغه ته عزرائیل نوم ورکول شوی اومشهورهم دی هغه بیامرستیالان لري (لکه چي په حدیث شریف کی راغلی ) هغوی دخلګوساوي له ګرده بدنه راکاږي ترخوبې مری ته راورسوي بیایې ملک الموت قبض کوي(٢) اومجاهدویلي چي ګرده ځمکه لکه یوطشت (لګن) غوندي راونغښتل شي بیا (عزرائیل) هغه ارواحان چي غواړي•قبض یې کړی ترګوتوکوي (٣) وروسته الله تعالی دمجرمانوحال احوال چي له ذلت اوخواري سره به لاس اوګرېوان وي داسي بیانوي ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ اوکه ته ووینې (ای محمده !) کله چي دغه کافران ښکته اچونکي به وي سرونوخپلو په نزددرب خپل(په ورځ دقیامت له شرم اوخجالته ,ندامته نویوډېرسخت هیښوونکی منظربه وي چي اندازه یې په هیبت اوفظاعت کي نشي کېدای (٤) ﴿ رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا ﴾ (وایې به ) ای زموږربه موږ ولیده دحقیقت (چاري)او وامو وریده (وعده ستااو تصدیق دپیغمبرانوهغه چي موږترې منکروو اوموږپخواړانده کانه وو ) ﴿ فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَـٰلِحًا ﴾ پس بیرته بوزه موږ(دنیاته) چي ښه عمل وکړو ﴿ إِنَّا مُوقِنُونَ ﴾ ببشکه چي موږیقین کونکي

(١) ابوالسعود ٤ / ١٩٦
(٢) مختصرابن کثیر ٣ / ٧٣
(٣) الطبري ٢١ / ٢٢
(٤) ابوالسعود ٤ / ١٩٧

يو (په ټينګ باورسره چي ستاوعده حق اوملاقات دي حق دی. طبري وايي: معنا دا چي موږ اوس ستاپه وحدانيت يقين کوو اوله تاپرته هيڅوک دعبادت وړنه دی بېشکه ته ژوندي کوي خلګ اومړه کوي يې

(١) الله تعالى ددوی ترديدهسي فرمايي: ﴿ وَلَوْ شِئْنَا لَآتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدَاهَا ﴾ اوکه موږ اراده کړي وای نوخامخاورکړي به وو موږ هرنفس ته (په دنياکي) هدايت دهغه (خودغه زموږله حکمت سره اړخ نه لګوي ځکه موږله دوی څخه داختياري ايمان غوښتونکي يونه داچي په جبر اواکراه سره يې ايمان ته اړباسو ﴿ وَلَٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّي ﴾ وليکن مقرره شوي ده دغه وينا (حکم) له ما (چي مجرمانوته به عذاب ورکوم) ﴿ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾ خامخاډک به کړم دوزخ (له کفارو نه) له پېريانو اوانسانانوټولوڅخه) ﴿ فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ﴾ پس وڅکئ تاسي (داعذاب) په سبب ددې چي هېرکړی ووتاسي ملاقات ددغي ورځي ستاسي (دغه به دوزخيانوته دتوبيخ په توګه وويل شي چي تاسي په دنياکي په ملذاتواوشهوتونوکي ښخ او ډوب وی نواوس دغه داهانت (سپکتيا) عذاب وڅکئ ﴿ إِنَّا نَسِينَاكُمْ ﴾ بېشکه چي موږ به هم تاسي هېرکړو (په عذاب کي لکه چي تاسوزموږپه آيتونوعمل کول هېرکړی وو) ﴿ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ اووڅکئ تاسي دائمي عذاب په سبب دهغه (کفر او تکذيب چي وی تاسي کاووبه مو (په دنياکي) کله چي يې دبدمرغه کسانوحال ووايو وروسته يې دنېکمرغه کسانوحال اوهغه څه بيان کړل چي الله ﷻ په دار الجزاء کي دائمي نعمتونه مقرر کړي دي ترڅوچي بندګان درغبت اورهبت ترمينځ خپل ژوند عيارکړي ﴿ إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا ﴾ بېشکه همداخبره ده چي ايمان راوړي په آيتونوزموږ هغه کسان کله چي پندورکړی شي دوی ته په دغو (آيتونو) نو پرېوزي پداسي حال کي چي سجده کونکي وي (الله ته لپاره دتعظيم دآيتونويې) ﴿ وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴾ او تسبيح وايي سره له ثنادرب خپل اودوی تکبر لويې نه کوي (له طاعت اوعبادت څخه يې) ﴿ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ ﴾ ليري کېږي ډډي ددوی له ځايونو دخوب څخه (لپاره دتهجد کولو مقصد دا چي خوب يې لږ وي ځکه دوی شپې لمانځه ته پاڅېږي لکه چي الله بل ځای فرمايي ﴿ كَانُوا قَلِيلًا مِنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ الذاريات ١٧-١٨ مجاهد وايي چي ددې څخه مراد قيام الليل دی ﴿ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾ بولي دوی رب خپل له ويرې د (عذابه دالله نه) اوله طمعې (درحمت اوثواب دده نه) ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ ﴾ اوڅيني له هغو مالونو چي موږدوی ته ورکړي دي لګوي يې (په لاره دالله کي چي دخيرښېګڼې کارونه وي) ﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ ﴾ پس نه دی معلوم هيڅ نفس ته هغه شی چي پټ کړی شوی دی دوی ته له يخوالي دسترګونه چي (لاعين رأت ولا أذن سمعت

(١) الطبري ٢١/ ٢٢

ولاخطر علی قلب بشر) ﴿ جَزَآءً بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ جزاء دهغه عمل چي دوی به کاوو (له نېکو اعمالو په دنیا کي).

الله تعالی فرمایي:

﴿ أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا ۚ لَّا يَسْتَوُۥنَ ﴿١٨﴾ أَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَلَهُمْ جَنَّٰتُ ٱلْمَأْوَىٰ نُزُلًۢا بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فَسَقُوا۟ فَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ۖ كُلَّمَآ أَرَادُوٓا۟ أَن يَخْرُجُوا۟ مِنْهَآ أُعِيدُوا۟ فِيهَا وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلنَّارِ ٱلَّذِى كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ ٱلْعَذَابِ ٱلْأَدْنَىٰ دُونَ ٱلْعَذَابِ ٱلْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢١﴾ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِۦ ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَآ ۚ إِنَّا مِنَ ٱلْمُجْرِمِينَ مُنتَقِمُونَ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ فَلَا تَكُن فِى مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآئِهِۦ ۖ وَجَعَلْنَٰهُ هُدًى لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿٢٣﴾ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا۟ ۖ وَكَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا يُوقِنُونَ ﴿٢٤﴾ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٢٥﴾ أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّنَ ٱلْقُرُونِ يَمْشُونَ فِى مَسَٰكِنِهِمْ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ ۖ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴿٢٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا نَسُوقُ ٱلْمَآءَ إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهِۦ زَرْعًا تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَٰمُهُمْ وَأَنفُسُهُمْ ۖ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴿٢٧﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْفَتْحُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٨﴾ قُلْ يَوْمَ ٱلْفَتْحِ لَا يَنفَعُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِيمَٰنُهُمْ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٢٩﴾ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَٱنتَظِرْ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ ﴿٣٠﴾ ﴾ السجدة: ۱۸ ـ ۳۰

مناسبت:

کله چي الله تعالی دمجرمانو حال په آخرت کي بیان کړاو بیا یې ورپسې دمتقیانو مؤمنانو احوال وښودل چي په دارالنعیم کي بې ورته څرنګه کرامتونه اوعزتونه خوندي کړي نودلته یې داپه ډاګه کړه چي دواړه ډلي یوډول اومساوي نه دي یوه ډله دابرارونېکانو اوبله دفجارو بدکردارو. ده څکه چي دالله دعدل دغه غوښتنه او تقاضاده چي دصالح مؤمن اوفاسق فاجر ترمينځ توپیرو کړي

لغتونه:

(فاسقا) دالله له طاعت څخه وتلی اوخارج ته فاسق وایې (نزلا) مېلمستیا اوهغه ورکړه چي د مېلمانه په ویاړ تیاریږي (الجرز) وچه لامزروع چي پکي نبات نه وي (جرز) قطع ته وایې زمخشري لیکي چي (جرز) هغي ځمکي ته وایې چي وابنه یې ربېل شوي قطع شوي وي یادا چي داوبوله نېستي څخه ورک شوي، یاهم لیري شوي اوحیواناتوپرې کړي وي هغي ځمکي ته چي ببخي څه نه شنه کوي (جرز) نشي ویلای (٠)

([۱]) (الفتح) حکم ته ويل کيږي لکه چي حاکم ته فاتح اوفتاح وايي ځکه دخلگو ترمينځ دخلاصون فيصلې کوي (ينظرون) مهلت ورکول شوی ځنډول شوی.

دنزول سبب:

وايي چي دحضرت علی بن ابی طالب او(عقبه بن أبي معيط) ترمينځ دښمني اومنازعه وه وليد بن عقبه حضرت علی کرم الله وجهه ته وويل: چي چُپ شه ته خوکوچنی هلک يې اوپه الله سوگند چي زه ترتا زړه ور اوژب غړانديم ترتاپوه اوښه ليکونکی يم حضرت علي کرم الله وجهه ورته وويل چي: ته چُپ شه ته فاسق يې نوبياداآيت نازل شو:﴿ أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا لَّا يَسْتَوُونَ ﴾ ([۲])

تفسير:

﴿ أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا لَّا يَسْتَوُونَ ﴾ آياپس هغه څوک چي مؤمن (متقي) وي لکه هغه څوک دی چي فاسق دی (خارج له طاعته دی) ؟ ندي برابر دقيامت په ثواب اوکرامت کي لکه چي په دنياکي په طاعت اوعبادت کي نهووسره برابراودغه هغسي ده لکه چي فرمايي:﴿ أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ ﴾ (القلم ۳۵) ابن کثيروايي الله تعالی له خپل عدل اوکرم څخه اخبار فرمايي: چي دقيامت په ورځ دده په حکم کي هغه کسان چي په دنياکي مؤمنان اودانبياوو عليهم السلام تابع وو له هغوکسانوسره چي هغوی فاسقان اومکذبين وو برابرندي ([۳]) بياالله ددوی جزاپه تفصيلي توگه داسي بيانوي چي ﴿ أَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ جَنَّاتُ الْمَأْوَىٰ ﴾ هرچي هغه کسان دي چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه (عملونه) پس شته دوی لره جنتونه دهستوگني (چي هلته يې داوسېدلوځايونه لوړي ودانۍ اوخوني وي بيضاوي وايي چي جنت په حقيقي توگه هستوگنځی دی اودنيادکوچېدلو مېنه ده چي ارو مرو به ځني لېږدي ([۴]) ﴿ نُزُلًا بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (په طريقه دمېلمستياپه سبب دهغو عملونو چي دوی به کول) يعني دغه دجنت ورکول مؤمنانو ته لکه هغه دمېلمانه لپاره چي دسوغاتونو او هداياوو تيارول دود وي څوبې اکرام وشي دوی ته ورکول کيږي ځکه چي دوی نېک اعمال ترسره کړي دي ﴿ وَأَمَّا الَّذِينَ فَسَقُوا فَمَأْوَاهُمُ النَّارُ ﴾ اوهرڅه هغه کسان دي چي فاسقان شوي دي پس ځای د هستوگني ددوی اور (ددوزخ) دی ﴿ كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا أُعِيدُوا فِيهَا ﴾ هرکله چي اراده وکړي چي راووزي له دغه اوره نوبيرته به دوی په دغه اورکي غورځول کيږي. فضيل بن عياض رحمه الله وايي زمادي په الله سوگندوي چي لاسونه به يې

([۱]) الکشاف ۳ / ۴۰۸
([۲]) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ / ۲۲۵
([۳]) مختصرابن کثير ۳ / ۷۲
([۴]) البيضاوي ۲ / ۱۱۲

ترلي اوپښې به يې خولنې وي اوداور لمبې به يې پورته راوخېژوي اوپرښتې به يې په څټكونووهي (۱)

﴿ وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا عَذَابَ ٱلنَّارِ ٱلَّذِى كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ ﴾ اودوى ته به ويل کېږي (دتوبيخ اواهانت په توګه) وڅکئ تاسي عذاب داور (ددوزخ) هغه (عذاب) چي وی تاسي دهغه به موتکذيب کاوو (په دنياکي اومسخرې ملندي به مو وريسي کولې بيايې په ژرترژره عذاب تهديدوي، فرمايي ﴿ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ ٱلْعَذَابِ ٱلْأَدْنَىٰ ﴾ اوخامخاوبه څکوو موږ هرومرو په دوی باندي له هغه عذابه نژدې (په دنياکي له قتل، بندي کېدلو، ازمېښتونو او کړاوونوڅخه حسن رحمه الله وايي چي ﴿ ٱلْعَذَابِ ٱلْأَدْنَىٰ ﴾ ددنيامصيبتونه، رنځونه اونورمشکلات دي چي بندګان ورباندي ازمويلي کېږي ترڅوتوبه وکاږي اوابومجاهدوايي چي مرادله دې څخه قتل اولوږه ده ﴿ دُونَ ٱلْعَذَابِ ٱلْأَكْبَرِ ﴾ (۲) ترپنځواله لوی عذاب نه (چي دآخرت دی ﴿ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ لپاره ددې چي دوی (له کفرګناه نه اسلام ته) وګرزي، وروسته له دې چي دوی يې دعذاب ورا ومستحق وګڼل ويې فرمايل ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِـَٔايَـٰتِ رَبِّهِۦ ﴾ اوڅوک دی ډېر ظالم له هغه چاڅخه چي پندورکړل شي په آيتونودرب خپل (قرآن باندي؟) ﴿ ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَآ ﴾ بيامخ ترې واړوي (اوويې نه مني ايمان ورباندي رانه وړي بلکه له دې لوی ظالم نشته) ﴿ إِنَّا مِنَ ٱلْمُجْرِمِينَ مُنتَقِمُونَ ﴾ بېشکه موږله دغو مجرمانوڅخه غچ اخيستونکي يو، دلته يې اسم ظاهر دضميرپرځای راوور چي دغه جرم اوګناه پردوی تثبيت کاندي ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَـٰبَ ﴾ اوخامخاپه تحقيق موږ موسی ته کتاب (تورات) ورکړی وو ﴿ فَلَا تَكُن فِى مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآئِهِۦ ﴾ پس مه کېږه ته په شک کي له ملاقاته ددغه (موسی) يعني لکه چي هغه ته مو تورات ورکړی ووهغسي مو تاته قرآن درکړی نولکه څنګه چي موسی دتورات تلقی وکړه پس مه کېږه ته په شک کي له تلقی دقرآنه (۳) اومقصد درسول الله ﷺ درسالت تقرير اوتثبيت دی اوداچي کوم کتاب ورکول شوی هغه آسماني وحی دی الهي کتاب دی ﴿ وَجَعَلْنَـٰهُ هُدًى لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ اوګرزولی وو موږ تورات هدايت لپاره دبني اسرائيلو (له ګمراهي څخه) ﴿ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً ﴾ اوګرزولي ووموږځيني له دوی نه امامان (چي دخيرښېګنو پېشوايان وو) ﴿ يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا ﴾ چي لاره به يې ښودله خلګوته زموږپه حکم ﴿ لَمَّا صَبَرُوا۟ ۖ وَكَانُوا۟ بِـَٔايَـٰتِنَا يُوقِنُونَ ﴾ (کله چي دوی صبروکړاو وودوی چي په آيتونوزموږبه يې يقين کاوو)

---

(۱) المختصر ۷۲/۳

(۲) مفسرين کرام وايي چي دمکې خلګوته داسي لوږه اوکاختي راغله اوه کاله يې دوام وکړ اودوی دسپيو، مړزګوغوښې او هډوکي خوړل.

(۳) ځيني مفسرينوليکلي چي ضميرموسی ته راجع دی چي ته دموسی له ملاقات څخه په شک کي مه کېږه اوکوم چي موږليکلي راجح او دبيضاوی او ابو السعودغوره دي.

یعني کله چې یې دالله په لیارکې په تکلیفونوصبروکړ اووو دوی چې زموږپه آیتونویې ټینګ باور اوتصدیق کاوو ابن جوزي وايې چې په دې کې قریشوته تنبیه ده که چېرې تاسواطاعت وکړی اوایمان راوړی له تاسو څخه به امامان وټاکم (۱) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ او بېشکه رب ستاهم دی به فیصله (حکم) کوي په مینځ ددوی کې په ورځ دقیامت کې په هغه شي کې چې وو دوی په دغه شي کې به یې اختلاف کاوو(په دنیاکې له دیني امورو څخه) طبري وايې چې دوی به په دیني امورو کې لکه بعث ، ثواب اوعذاب کې اختلاف کاوو(۲) وروسته الله په خپل مخلوق کې د قدرت په آثارو تنبیه فرمايې اوپه کفارو باندې دپخوانیو اُمتونوهغوی چې کفرېې کاووهلاک شول دلیل راوړي فرمايې ﴿ أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْقُرُونِ ﴾ آیالاره نه ده ښودلې دغو (دمکې کفارو) ته چې څومره (ډېر) هلاک کړي دي موږپخواله دې نه له اهل دزمانودپخوانیوچې د خپلوانبیاوو تکذیب یې کړی وو ) ﴿ يَمْشُونَ فِي مَسَٰكِنِهِمْ ﴾ چې تل تېرېږي دغه (کفار) په(ورانو کنډوالو ) کورونودې (کفارو ) (اوپخپلوسفرونوکې دهغوی ورانې هستوګنځي ویني آیاعبرت نه اخلي؟ ابن کثیروايې چې دغه مکذبین دهغوظالمانوپه کورونوتېرېږي اوله هغوی څخه هیڅوک نه ویني کوم چې به دلته اوسېدل(۳) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ ۖ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴾ بېشکه په دغه (هلاکولو (د پخوانیو ) کې خامخا لوی دلائل دقدرت دي آیاپس دوی نه اوري؟ (دعبرت په غوږنوچې پدې هلاکولوددوی کې زموږ په قدرت باندې ستردلائل موجوددي بیاالله تعالی دوحدانیت دلائل داسې بیانوي چې ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا نَسُوقُ الْمَآءَ إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ ﴾ آیادوی نه ویني چې بهوو موږ(ویالې د ) اوبو طرف دځمکې وچې ته (چې ګیاه پکې نه وي) ﴿ فَنُخْرِجُ بِهِۦ زَرْعًا ﴾ پس راوباسو موږپه هغه سره کښت (فصل ) مېوې دانې) ﴿ تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَٰمُهُمْ وَأَنفُسُهُمْ ﴾ چې خوري له دغه کښته چارپایان ددوی (وابنه پانې) اونفسونه ددوی (دانه اومېوه سبزیجات اوفاکهه) ﴿ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴾ آیاپس دوی نه ویني (نښې دقدرت دده چې وپوهېږي هغه څوک چې دځمکې په راژوندي کولوقادردی ددوی په راژوندي کولوهم توانادی ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ (اووايې (کفار) کله به وي دغه فتح (فیصله) که چېرې یی تاسې رښتوني (په دغه فتح کې) یعني دمکې کفاروبه مسلمانانوته دملنډواواستهزاء په توګه ویل چې کله به تاسي په موږ برې مومې اوغالب کېږی به؟ که تاسي پخپله دعوی کې رښتوني یاست صاوي وايې چې مسلمانانو به ویل چې : الله به ژر موږته په مشرکانوفتح اوبرې راپه برخه کړي اوزموږترمینځ به فیصله وکړي اوچې کله به دمکې مشرکانودغه واورېدونوبه یې

---

(۱) زادالمسیر۲/۳۴۴

(۲) الطبري۲۱ /۲۲

(۳) مختصرابن کثیر۳ /۷۷

دتكذيب او استعجال په توګه داسي ويل چي كله به وي دغه فتح؟ بيا دا آيت نازل شو چي ﴿قُلۡ يَوۡمَ ٱلۡفَتۡحِ لَا يَنفَعُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِيمَـٰنُهُمۡ﴾ ووايه (اى محمده! دوى ته دتوبيخ په توګه) چي په ورځ دفتحي (قيامت) كي به هيڅ ګټه ونه رسوي هغو كسانو ته چي كافران شوي دي ايمان راوړل ددوى (اونه عذر وړاندي كول ددوى نوبياولي تلواره كوى) ﴿وَلَا هُمۡ يُنظَرُونَ﴾ اونه به دوى ته مهلت ورکړل شي اونه به ورته انتظار وكړى شي. بيضاوي وايې چي يوم الفتح دقيامت ورځ اودمسلمانانو دبري او فتح ورځ ده چي همدا به دفيصلې ورځ وي چابياويلي چي دغه دبدرورځ ده (١) ﴿فَأَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ﴾ پس له دوى نه مخ وګرځوه (ددوى پروامکوه اى محمده) ﴿وَٱنتَظِرۡ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ﴾ اومنتظراوسه (دالله نصرت ته) بېشكه دوى هم منتظردي (چي پرتاغلبه ومومي) يعني دوى ته دعذاب دراتلو ستركي په لار اوسه اودوى هم پرتادعذاب راتللوانتظاركوي قرطبي وايې چي دوى پرتاسي باندي دزمانې دحوادثو انتظارباسي (٢)

بلاغت:

په پخوانيو اوپه دې آيتونو كي چي دبيان اوبديع كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادى:

١- اشتقاقي جناس لكه: ﴿لِتُنذِرَ... نَّذِيرٍ﴾ همداسي ﴿وَٱنتَظِرۡ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ﴾

٢- دطباق صنعت چي ﴿ٱلۡغَيۡبِ... وَٱلشَّهَـٰدَةِ﴾ ترمينځ اود ﴿خَوۡفًا ... وَطَمَعًا﴾ ترمينځ دى.

٣- له غيبت څخه خطاب ته التفات لكه ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ﴾ چي په اصل كي (وجعل له) دى اونكته داده چي خطاب له ژوندي سره كېږي نوكله چي الله پكي ساپوه كړه نويې له اولادې سره خطاب كول ښه اېسي

٤- انكاري استفهام چي مقصديې استهزاء وي لكه ﴿وَقَالُوٓاْ أَءِذَا ضَلَلۡنَا فِي ٱلۡأَرۡضِ أَءِنَّا لَفِي خَلۡقٍ جَدِيدٍۭ﴾.

٥- داضمار صنعت لكه ﴿أَبۡصَرۡنَا وَسَمِعۡنَا﴾ يعني (يقولون ربنا أبصرنا وسمعنا).

٦- اختصاص اوځانګړتيا لكه چي فرمايې: ﴿ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمۡ تُرۡجَعُونَ﴾ يعني يوازي هغه ته، نه بل چاته په ورځ دقيامت كي رجوع كونكي ياست.

---

(١) البيضاوي ٢/ ١١٣

(٢) القرطبي ١٤/ ١١٢

۷- حذف دځواب د(وَلَوْ) دتهويل اوهيبت لپاره چي کله يې فرمايلي دي: ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ يعني که چېري دي وليدنو يو هيښنوونکی هيبتناک منظربه وي.

۸- دمشاکلت صنعت هغه چي په لفظ کي يو رنګه او په معنا کي مختلف وي لکه ﴿ نَسِيتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَآ إِنَّا نَسِينَٰكُمْ ﴾ ځکه چي الله تعالی خوهېرول نه کوي معنادا چي په عذاب کي به موهسي پرېږدم لکه چي يو څوک کوم هېرکړی شی پرېږدي.

۹- لطيفه مقابله چي دابرارواوفجارودجزاترمينځ راځي ﴿ أَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَلَهُمْ جَنَّٰتُ ٱلْمَأْوَىٰ... وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فَسَقُوا۟ فَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ﴾ اودغه له بديعي محسناتو څخه يو صنعت دی.

۱۰- کنايه له زيات عبادت اودشپې رنولو څخه چي فرمايي: ﴿ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ ٱلْمَضَاجِعِ ﴾.

۱۱- استفهام دتوبيخ اوتقريع لپاره کله چي راځي ﴿ أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ ﴾ ؟ ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا نَسُوقُ ٱلْمَآءَ ﴾ ؟ ﴿ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴾ ؟ ﴿ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴾ ؟.

۱۲- دفواصلواودآيتونودپيل دسجع مراعات هلته چي فرمايي: ﴿ إِنَّا مُوقِنُونَ... لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ...أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴾ اودغه هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي اودا په قرآنکريم کي زيات شته

دالله په مرسته دالسجدة سورت تفسيربشپړشو

***

## دالاحزاب سورت مدني اودرې اويا آيتونه لري.

### دسورت په وړاندې:

دالاحزاب سورت دمدني سورتونوڅخه دی هغه چي داسلامي اُمت دژوندانه تشريعي اړخ ته پاملرنه کوي اوهغه لکه نور مدني سورتونه دمسلمانانوعمومي اوخصوصي ژوندڅېړي اوپه ځانګړي توګه دکورنۍ چاري پداسي توګه سمبالوي چي دنېکمرغي اوسوکالي ضمانت يې وکړي ځيني دودونه اودستورونه غندي اوهغه رواجي موروثي عادات لکه زوی نيول (تبني) (ظهار) اوداچي دچاپه سينه کي دوه زړونه کېدای شي باطل اعلانوي اواسلامي ټولنه دجاهليت له پېڅه اوناولو دودونوڅخه پاکوي اوهغه خرافات اوباطل سوچونه چي په هغه وخت کي تيت اوخپاره وو راټولوي اوله مينځه يې وړي کولای شوچي ددغه سورت سترموضوعات په درېوټولګيو کي خلاصه کړو:

لومړی: اسلامي آداب اوتوجيهات.

دوهم: الهي احکام اوتشريعات.

دريم: داحزاب اوبني قريظه له غزاګانوڅخه يادونه.

ړومبی له اجتماعي آدابوڅخه غږېږي لکه دوليمې آداب دستراوحجاب مسئله اوله بې حيايې او تبرج څخه ځان ژغورنه همداسي درسول الله ﷺ سره دآدابومعامله اونوروټولنيز آداب اواخلاق په ګوته کوي.

دوهم: دلته تشريعي ځيني حکمونه لکه دظهار ، تبنی ، مېراث اودمتبنی زوی دطلاق شوي مېرمني سره نکاح کول او درسول الله ﷺ دزوجاتوتعدد اوپه هغه کي حکمت په رسول الله ﷺ باندي درود لوستل ، شرعي حجاب اوهغه دوليمې په بلنه کي اړوند اُمور اوداسي نورحکمونه راځي.

دريم: دغه سورت په تفصيل سره دخندق دغزاء هغه چي داحزاب غزوه يې هم بولي بيانوي اودهغې دهرباريک انځورکاږي چي څرنګه ګردي دکفراوشر قواوي په مسلمانانوچاپېر راوګرځېدې اوپه دې ترڅ کي دمنافقانوله پټورازونوڅخه پرده پورته کوي اومسلمانان ددوی له دوکو،چلونواو نيمګړتياووېروي چي منافقين مسلمانان کمزوري کوي ، عزمونه يې سستوي اودسورت په پيل اوپای کي ددوی په هکله تفصيلي خبري کوي آن تردې چي هيڅ رازيې پټ نه پاتي کېږي اوداسي يې رسواکوي چي هيڅ چل، مکر اودوکه يې پټه نه پرېږدي او مؤمنانو ته هغه الهي سترنعمت اونصرت وريه يادوي چي ددښمنانوزوريې اوبه کړ اوملائکي اوباد يې ددوی دمرستي لپاره ورته راواستولو لکه چي دبني قريظه غزاهم راآخلي اوديهودانو پېمان شکني اوبدعهدي چي له رسول الله ﷺ سره يې کړي وه غندي.

### تسميه اونومول يې:

ځکه ورته سورت الاحزاب وايې چي مشرکانوله ټولوخواوو په مسلمانانوراودانګل اوټول کفار لکه غطفان ، بني قريظه ،دمکې مشرکان اوعربي لنډغر يوموټي دمسلمانوجګړې ته تيارشول مګرالله پاک

هغوی تورمخ شرمېدلي په شا وتمبول او مسلمانان يې دجګړې له ناتار څخه په دغې څرګنده معجزې سره وژغورل.

الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱﴾ وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ
مِن رَّبِّكَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿۲﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿۳﴾ مَّا جَعَلَ اللَّهُ لِرَجُلٍ مِّن
قَلْبَيْنِ فِي جَوْفِهِ وَمَا جَعَلَ أَزْوَاجَكُمُ اللَّائِي تُظَاهِرُونَ مِنْهُنَّ أُمَّهَاتِكُمْ وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم
بِأَفْوَاهِكُمْ وَاللَّهُ يَقُولُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ ﴿۴﴾ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ فَإِن لَّمْ تَعْلَمُوا
آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُم بِهِ وَلَٰكِن مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ
وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۵﴾ النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ
بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ إِلَّا أَن تَفْعَلُوا إِلَىٰ أَوْلِيَائِكُم مَّعْرُوفًا كَانَ ذَٰلِكَ فِي
الْكِتَابِ مَسْطُورًا ﴿۶﴾ وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَأَخَذْنَا
مِنْهُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿۷﴾ لِّيَسْأَلَ الصَّادِقِينَ عَن صِدْقِهِمْ وَأَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿۸﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا
نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ﴿۹﴾ إِذْ
جَاءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا ﴿۱۰﴾
هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا ﴿۱۱﴾ وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ
إِلَّا غُرُورًا ﴿۱۲﴾ وَإِذْ قَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ
بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴿۱۳﴾ وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا
بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ﴿۱۴﴾ وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ مَسْئُولًا ﴿۱۵﴾ قُل لَّن يَنفَعَكُمُ
الْفِرَارُ إِن فَرَرْتُم مِّنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ وَإِذًا لَّا تُمَتَّعُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿۱۶﴾ قُلْ مَن ذَا الَّذِي يَعْصِمُكُم مِّنَ اللَّهِ إِنْ أَرَادَ بِكُمْ
سُوءًا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿۱۷﴾ ۞ قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الْمُعَوِّقِينَ مِنكُمْ وَالْقَائِلِينَ
لِإِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ إِلَيْنَا وَلَا يَأْتُونَ الْبَأْسَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿۱۸﴾ أَشِحَّةً عَلَيْكُمْ فَإِذَا جَاءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ
كَالَّذِي يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ أُولَٰئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا فَأَحْبَطَ

ﭐللَّهُ أَعْمَٰلَهُمْۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴿١٩﴾ يَحْسَبُونَ ٱلْأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوا۟ۖ وَإِن يَأْتِ ٱلْأَحْزَابُ يَوَدُّوا۟ لَوْ أَنَّهُم بَادُونَ فِى ٱلْأَعْرَابِ يَسْـَٔلُونَ عَنْ أَنۢبَآئِكُمْۖ وَلَوْ كَانُوا۟ فِيكُم مَّا قَٰتَلُوٓا۟ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٢٠﴾ ﴾ الأحزاب: ۱ - ۲۰

**لغتونه:**

(أدعياءكم) متبنی زوی ته وايې هغه چي دبل چازوی وي اوځان ته يې نسبت وکړی شي په لسان العرب کي وايي چي (دعّی) هغه چاته وايې چي له پلاره پرته بل چاته منسوب شي (أقسط) بنه عادلانه او ويل کيږي (اقسط الرجل) کله چي عدل وکړي اوبيا(قسط الرجل) کله چي ظلم وکړي (مسطوراً) ليکلی شوي چي نه ورکيږي (ميثاقهم) په قسم سره مؤکد شوی عهداوپيمان (الحناجر) د حنجره جمع اوحلق ستوني ته وايي (يثرب) دمدينې منورې پخوانی نوم اورسول الله ﷺ طيبه ونوموله (عورة) ناخوندي هغه ځای چي پکې نارينه نه وي ويل کيږي (دارمعورة) يعني ناخوندي سرای هغه چي ورننوتل آسانه وي جوهري وايي چي (عورة) هرهغه ځای ته ويل کيږي چي انسان له دښمن څخه وربااندي وېرېږي هغه که کنډو وي يابل دننوتلوغار (۱)(اقطار) دقطرجمع اولوري طرف ته وايي (يعصمکم) ژغوري مو،منع کوي مو(المعوقين) په شاکونکي ،ګرزونکي له(عاق) څخه اخيستل شوی دی

**دنزول سبب:**

أ – روايت کيږي چي په قريشوکي يوتن چي جميل بن معمرنوميدو خوراهوښياراودحافظې خاوند وواوقريشوبه ويل چي دغه ډير څه يادوي ځکه دوه زړونه لري نو الله ﷻ داآيت نازل کړ﴿ مَّا جَعَلَ ٱللَّهُ لِرَجُلٍ مِّن قَلْبَيْنِ فِى جَوْفِهِۦ ﴾ (۲)

ب – روايت کيږي کله چي نبي ﷺ دتبوک دغزاليپاره چمتووالی اعلان کړځيني خلګوويل مونږ به له مور اوپلار سره مشوره وکړو نو الله تبارک وتعالی داآيت نازل کړ﴿ ٱلنَّبِىُّ أَوْلَىٰ بِٱلْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْۖ ﴾ (۳)

**تفسير:**

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ ٱتَّقِ ٱللَّهَ ﴾ ای نبي (محمده !) وويرېږه (تل) له الله څخه ، نداء دتشريف اوتعظيم لپاره شويده ځکه چي دنبوت منصب دتعظيم اوتکريم ګواهي ورکوي يعني په تقوی باندي تل ترتله ثابت اوسه . ابوالسعود وايي چي رسول الله ﷺ ته دنبوت په عنوان نداکول دهغه دشان سترتوب ښيي او مرادله تقوی څخه د هغې زياتوالی اوپه هغې باندي ثبات اوټينګارد ی ځکه چي هغه خوراپراخه ساحه

---

(۱) الصحاح د(عور) ماده

(۲) زادالمسير۲ / ۳۴۹

(۳) الالوسي۲۱ / ۱۵۱

لري په تېوله ساحه يې څوک نشي رسېدلای (١) ﴿ وَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ ﴾ اومه منه (حکم) د کافرانو اومنافقانو (کله چي تانرمي اوتساهل ته بولي چي ددوی خدايانو ته بد ونه وايې اوددوی خبروته غوږمه نيسه که څه هم دوی داسي درته ښکاره کړي چي دغه نصيحت اوخيرخواهي ده مفسرين کرام وايې مشرکانوبه رسول الله ته ويل چي ددوی معبودان دي په بدونومونو اوصفتونونه ستايې اوداسي دي وايې چي دغه معبودان شفاعت کولای شي خورسول الله ﷺ دغه بده وګڼله اوکرکه يې تربې وکړه چي دغه آيت نازل شو (٢) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ ببشکه چي الله ښه عالم دی (په هرشي) ښه حکمت والادی ) يعني الله دخپلوبندګانو په عملونو اوکړو وړو عالم دی اوڅه چي يې په زړونوکي دي ورته معلوم دي ددوی چاري په تدبيرد حکمت سره سرته رسوي ﴿ وَٱتَّبِعْ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ﴾ اومتابعت کوه (ای محمده !) دهغه حکم چي درلېږل کېږي تاته له جانبه درب ستا (له شريعت اودين حکيم څخه په قرآنکريم منګولي ولګوه هغه چي تاته رانازل شوی دی ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴾ ببشکه چي الله دی په هغوکارونو چي تاسي يې کوی ښه خبردار (ستاسي د چارو هيڅ څيز ورڅخه پټ نه دی په هرڅه به جزادرکړي ) ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ﴾ اوتوکل وکړه په الله (هغه ته په ګردوأمورو کي پناه يوسه) ﴿ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴾ اوکافي بس دی الله کارجوړونکی (مرستندوی اوساتونکی ستا اوملګرودی بياالله تعالی دجاهليت ګمانونه دحق په رښتوني بيان داسي باطلوي چي ﴿ مَّا جَعَلَ ٱللَّهُ لِرَجُلٍ مِّن قَلْبَيْنِ فِى جَوْفِهِۦ ﴾ نه دی پيدا کړی الله لپاره د هيڅ سړي دوه زړونه په دننه دده کي. مجاهدوايې دغه آيت دقريشودهغه تن په باره کي نازل شوی چي دوی به ورته له ډېره زهرکتيااوهوښياري (ذاقلبين) وايواوده به هم دعوی کوله چي زماپه سينه کي دوه زړونه دي په هريوه باندي دمحمد ترعقل زه زيات عاقل يم (٣) ﴿ وَمَا جَعَلَ أَزْوَٰجَكُمُ ٱلَّٰٓـِٔى تُظَٰهِرُونَ مِنْهُنَّ أُمَّهَٰتِكُمْ ﴾ اونه دي ګرزولي الله ښځي ستاسي هغه چي ظهارکوی تاسي له هغوڅخه ميندي ستاسي. ابن جوزي (رحمه الله) وايې الله داسي اعلانوي چي مېرمن مورنشي کېدای اوپه جاهليت په دغه خبره ښځه طلاق کېدله چي کله به يې هغې ته وويل (ته په ماباندي لکه دمور شاغوندي يې )(٤) ﴿ وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَآءَكُمْ أَبْنَآءَكُمْ ﴾ اوندی ګرزولی الله هغه په زامنوبلل شوی ستاسي (واقعي) زامن ستاسي ﴿ ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم بِأَفْوَٰهِكُمْ ﴾ دغه (ګردي چتې) خبري ستاسي دي په خولوستاسي (چي هيڅ حقيقت نلري) ﴿ وَٱللَّهُ يَقُولُ ٱلْحَقَّ ﴾ اوالله حق وايې (هغه چي له واقعيت سره سمون لري اوله هره لوري سره مطابق وي ) ﴿ وَهُوَ يَهْدِى ٱلسَّبِيلَ ﴾ اوهمدغه (الله) سمه

---

(١) ابوالسعود ٤/ ٢٠١

(٢) القرطبي ١٤/ ١١٥

(٣) القرطبي ١٤/ ١١٢

(٤) زادالمسير ٦/ ٣٥٠

صافه لاره ښيي ، غرض او مقصد په آيت شريف کي د جاهليت د دورې غلط ګمانونه او بې ځايه انګېرني دي چي ورباندي د بطلان کرښه راکاږي لکه چي ديو چا په سينه کي دوه زړونه نشي کېداى همداسي نشي کېداى چي ديو چا ښځه دي د هغه مورشي او يادي (متبنى) زوى بلل شوى د هغه رښتونى حقيقي زوى وګرزي نو دوى څرنګه هغه مېرمني چي ظهار ورسره کوي خپلي ميندي وبولي ؟ او يا څرنګه هغه زامن بلل شوي کسان چي د بل چا اولادوي د دوى زامن کېداى شي؟ سره له دې چي د دوى له نسله څخه نه دي .

بيا الله تعالى فرمايي چي دوى د خپلو پلرونو په نامه يادوي فرمايي: ﴿ ٱدْعُوهُمْ لِآبَآئِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ او وبولئ تاسي دغه (أدعياء) پلرونو د دوى ته دغه (نسبت) اصلي پلرونو د دوى ته) ډېر برابر (او غوره ) دى د الله په نزد سره (١) ابن جرير وايي معنادا چي د دوى منسوبول خپلو پلرونو ته د الله په نزد خور ابرابر او رښتوني او غوره دي تردې چي تاسو يې له پلرونو پرته بل چا ته نسبت کوى(٢) ﴿ فَإِن لَّمْ تَعْلَمُوٓاْ ءَابَآءَهُمْ فَإِخْوَٰنُكُمْ فِى ٱلدِّينِ ﴾ پس که نه پېژنئ تاسي پلرونه د دوى (اى مؤمنانو) پس دوى ستاسي ورونه دي په دين کي ﴿ وَمَوَٰلِيكُمْ ﴾ او دوستان ستاسي دي (په دين او اسلام کي) نو بايد يو څوک داسي ورته ووايي اى وروره ! اى دوسته اچي ديني وروروولي او دوستي مقصدوي ابن کثير وايي الله تعالى امر کړى ترڅو نسبتونه د أدعيا و خپلو اصلي پلرونو ته وکړى شي او که يې پلرونه نه پېژندل بيا دي ورونه او دوستان و پېژني پر ځاى د دې چي ځان ته يې په زوى ونوموي اوله دې کبله رسول الله ﷺ زيد بن حارثه ته وويل چي (أنت اخونا ومولانا ) (٣) ابن عمر رضي الله عنه وايي چي موږ به زيد بن حارثه زيد بن محمد بالو ترڅو چي دا آيت نازل شو چي ﴿ ٱدْعُوهُمْ لِآبَآئِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ (۴) ﴿ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَآ أَخْطَأْتُم بِهِۦ ﴾ او نشته پر تاسي (هيڅ) ګناه په هغه څه کي چي تاسي پکي خطا شوي يى (پرته له خپله پلاره موبل چاته منسوب کړي وي لکه چي وايې (زيد بن محمد ) ﴿ وَلَٰكِن مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ ﴾ وليکن شته ګناه په هغه شي کي چي قصد يې وکړي زړونه ستاسي (او بې له خپله پلاره يې قصدا بل چاته نسبت وکړي) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ او دى الله ښه ښونکى ډېر رحم لرونکى (چي له خطاکار څخه عفو کوي او په مؤمنانو رحم فرمايي وروسته الله ﷻ د رسول الله ﷺ شفقت او نصيحت پخپل امت باندي داسي ستايي ﴿ ٱلنَّبِىُّ أَوْلَىٰ بِٱلْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ ﴾ ((د الله ) نبى (محمد ) ډېر وړ لائق دى له مؤمنانو سره ترځانونو د دوى) يعني رسول الله پر خلګو مؤمنانو د دوى ترخپلو ځانونو لاهم مهربان دى او د دى حقدار دى چي په ټولو ديني او دنيوي چاروکي يې حکم ته غاړه کښېښودل شي طاعت يې

(١) تفسير آيات الاحكام للصابوني ٢ / ٢٥۴
(٢) الطبري ٢١ / ٧٢
(٣) مختصر ابن کثير ٣ / ٨٢
(۴) أخرجه البخاري

واجب اولازم دی ﴿ وَأَزْوَٰجُهُۥٓ أُمَّهَٰتُهُمْ ﴾ او ښځي ددغه (نبي دالله) ميندي ددوی دي (تعظيما وتحريما) ابوالسعود وايي دهغوی منزلت دميندو منزلت دی په حرمت او استحقاق دتعظيم کي اوله دي پرته بیا هغوی لکه اجنبياتي دغسي دي (۱) ﴿ وَأُولُوا۟ ٱلْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِى كِتَٰبِ ٱللَّهِ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُهَٰجِرِينَ ﴾ اوخاوندان د خپلوي ځيني ددوی د ډېرو لائق دي پرځينو نورو (په ميراث کي) په (حکم د) کتاب دالله کي له مؤمنينو (انصارو) اوله مهاجرينو څخه ﴿ إِلَّآ أَن تَفْعَلُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَوْلِيَآئِكُم مَّعْرُوفًا ﴾ مګرخوداچي وکړي (پخپل ژوند کي) له دوستانو خپلوسره (چي انصار او مهاجرين دي) څه احسان (يا ورته دمرګ په وخت کي وصيت وکړي دغه جائزدي څکه چي الله تعالی خپل بندګان داحسان اوښېګني لوري ته هڅولي دي مفسرين کرام وايي چي دادهغه حکم ناسخ دی کوم چي پخوا به مسلمانانو په ايماني اخوت او هجرت باندي يوله بله ميراث وړ (۲) ﴿ كَانَ ذَٰلِكَ فِى ٱلْكِتَٰبِ مَسْطُورًا ﴾ دی دغه (توارث په مينځ دذوی الارحامو خپلوانو کي) په کتاب (عزيز) کي ليکلی شوي (چي تغير او تبديل نه مومي قتاده وايي معنا دا چي دالله په نزد ليکلی شوي چي کافر له مسلمان څخه ميراث نشي وړلای ﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ ٱلنَّبِيِّۦنَ مِيثَٰقَهُمْ ﴾ او (يادکړه ای محمده!) کله چي واخيست موږ له ټولو انبياوو څخه عهد (ټينګ په قسم) ددوی (چي په درباندي لازم شوي حکمونو به وفاکوی او ځيني به دځينونورو تصديق کوی او درسول الله محمد ﷺ او نورو نبيانو په رسالت به ايمان راوړی ﴿ وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ وَإِبْرَٰهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ٱبْنِ مَرْيَمَ ﴾ اوله تانه اوله نوح نه اوله ابراهيم نه او له موسی اوله عيسی زوی دمريمي نه (چي دغه مشهور پيغمبران اولو العزم دي او دا چي رسول الله (محمد) يې ترګردو له مخه يادکړ ترڅو چي مزيد شرف او تعظيم يې بيان شي بيضاوي وايي دغه انبياء عليهم السلام يې په ځانګړي توګه څکه ذکرکړل چي دوی دشريعت خاوندان او مشهور کسان دي او چي ړومبی له ټولو يې محمد رسول الله ﷺ يادکړ چي دشان تعظيم او تکريم يې وشي (۳) او ابن کثير وايي چي له رسول الله خاتم الانبياء څخه يې څکه پيل کړل چي شرافت او سترمقام يې وښيي او بيا يې دمودې او زمانې په ترتيب سره يادکړل (۴).

﴿ وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَٰقًا غَلِيظًا ﴾ او واخيست موږ له دغو (ټولو انبياوو) څخه (په قسم سره) محکم عهد (چي درسالت دتبليغ په لاره کي به پخپلو جائبو وفاکوي ﴿ لِّيَسْـَٔلَ ٱلصَّٰدِقِينَ عَن صِدْقِهِمْ ﴾ دپاره ددې چي وپوښتي (الله) له صادقانو څخه له صدقه (رښتيا) ددوی (چي خپل قوم ته يې درسالت تبليغ کړی دی؟ صاوي وايي چي حکمت له پوښتلو دانبياوو سره له علمه دالله تعالی په رښتنولي دانبياوو دادی چي

(۱) ابوالسعود ۴/ ۲۰۳

(۲) زادالمسير ۲/ ۳۵۴

(۳) البيضاوي ۱/ ۱۱۴

(۴) مختصر ابن کثير ۳/ ۸۳

دکفاروتقبيح اورسوايې دقيامت په ورځ وشي(١) قرطبي وايې چي دلته داتنبيه شته چي کله انبياء عليهم السلام هم پوښتل کيږي نورخلگ به ولي نه پوښتل کيږي ؟ اودپوښتني گټه دکفارو توبيخ دی لکه چي الله تعالی عيسی ﷺ ته فرمايي ﴿ ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾ (المائده١١٦) (٢) ﴿وَأَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ اوالله تيارکړی دی له پاره دکافرانوعذاب دردناک (په سبب دکفرددوی اوپه سبب ددې چي له حق څخه څنگ کوي وروسته الله تعالی داحزاب دغزاپېښي داسي بيانوي چي الله څومره سترنعمت درباندي وکړ ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ ﴾ ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو) يادکړئ تاسي نعمت دالله پرتاسي ﴿ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ ﴾ کله (چي (په غزوه داحزاب کي ) راغلې تاسي ته لښکري (دکفاروا وپرتاسي را وگرزېدې ابوالسعود وايې چي مرادله لښکروهغه گوندونه چي قريش، غطفان ,دقريظه اوبني نضير يهودان وو اوتقريبًا دوولس زره کسان وو کله چي رسول اللهﷺ دغه واورېدل دسلمان فارسي ﷺ په اشاره يې په مدينه منوره دخندق راتاوولو کارپيل کړاودرې زره مسلمانان يې لښکرتيار اودخندق په وړاندي يې مېشت کړل اوسخته وېره خپره شوه ، مسلمانانوډول ډول گمانونه وکړل منافقان راپاڅېدل او(معتب بن قشير) وويل مونږ ته محمد دکسری اوقيصردخزانووعدې راکوي خومونږ اودس ماتي ته نشوتلای(٣) ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا﴾ نوراولېږل مونږ پردوی باد او داسي فوځونه (دملائکو) چي تاسي دوی (هيڅ) نه ليدلې يعني پردوی موسخت باد راوالوزاوو او د پرښتو لښکري مو راواستولې چي نژدې يوزرتنه پوځ وو مفسرين کرام وايي چي الله پاک په سخته توره اوسړه شپه کي وربانديږ دصباباد راوالوزاووچي د دوی دېگونه يې واړول اوخېمې يې له بېخي وايستلې اوسرې يې پرځمکه وويشتل الله پاک ملائکي راواستولې چي ددوی په زړونو کي يې رعب اووېره وراچوله (٤) ﴿وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا﴾ (او دی الله په هغو کارونوچي تاسي يې کوی ښه ليدونکی ) يعني الله تعالی ستاسي په کړو وړوچي خندق کيندی اوله رسول الله سره په دغه وخت کي په مرسته دوام اوثبات کوی ښه ليدونکی دی ﴿ إِذْ جَاءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ ﴾ کله چي راغلې تاسي ته دکفارو لښکري له پاسه (دختيز له لوري چي هغه اسداو غطفان وو ) ﴿ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ ﴾ اوله ښکته (لوري) دتاسي (دلوېديز له لوري چي قريش، کنانه اود عربو لندغر (اوباش) وو مقصدداچي مشرکان له مشرق اومغرب څخه راغلل اوپه مسلمانانو باندي لکه چي لاسوندی په مړوند راتاووي هسي را وگرزېدل اودبني قريظه يهودانو ورسره مرسته وکړه درسول الله عهد يې مات کړاوله مشرکانوسره ملگري شول هغه ووچي وېره زياته شوه اوابتلاء

---

(١) الصاوي على الجلالين ٣ / ٢٢٩

(٢) القرطبي ١٤ / ١٣٢

(٣) ابوالسعود ٤ / ٣٠٤

(٤) الصاوی على الجلالين.

خوراستره شوه څکه الله فرمايي ﴿ وَإِذْ زَاغَتِ ٱلْأَبْصَٰرُ ﴾ اوکله چي سترګي خړي کړې شوې (له هيبت اوويري نه) ﴿ وَبَلَغَتِ ٱلْقُلُوبُ ٱلْحَنَاجِرَ ﴾ او ورسېدل زړونه ستوني ته (له ډېري وېري ) دغه د سختي وېري لپاره تمثيل دی لکه چي دهرچازړه ستوني ته له ډېره کړاو اوهيبته راختلی وي (۱) ﴿ وَتَظُنُّونَ بِٱللَّهِ ٱلظُّنُونَا۠ ﴾ اوګمانونه وکړل تاسوپرالله راز راز ګمانونه. حسن بصري رحمه الله وايي: چي منافقانو داسي ګمان وکړچي مسلمانان به له بېخه وايستل شي اومسلمانانو هسي ګمان وکړچي دوی به بری مومي نو مسلمانانودخيرګمان وکړاومنافقانودشر ګمان ابن عطيه وايي نژدې ووچي مسلمانانوپه دې اضطراب کي هسي ګمان کړی وای چي داځرنګه وعده خلافي وشوه اودغه داسي وسوسې دي چي مؤمنانوته رسېږي اوبنيادم يې دفع نشي کولای اومنافقانوتلواروکړه اوويې ويل چي موږ ته الله اوپيغمبردوکه راکړه(۲)(العياذبالله) ﴿ هُنَالِكَ ٱبْتُلِيَ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ پدغه وخت کي مؤمنان وازمويل شول (له منافقانو څخه) قرطبي وايي دغه ابتلاء په وېره اوقتال سره وه همداراز په ولږه , محاصره اوجګړه کولو يو سترازموينبت وو(۳) ﴿ وَزُلْزِلُوا۟ زِلْزَالًا شَدِيدًا ﴾ اووخوځول شول په خوځولو سختوسره (لکه چي ځمکه بې ترپښولاندي په زلزله او وخوځېږي ابن جزي وايي چي دزلزلې اصل سخت خوځول دي او دلته مرادځني اضطراب دزړونو او دهغوښورېدل دی (۴) ﴿ وَإِذْ يَقُولُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ ﴾ اوکله چي وويل منافقانو اوهغو کسانو چي ددوی په زړونوکي (دنفاق) ناروغي وه (څکه چي ايمان يې زړه ته ننوتلی نه وو) ﴿ مَّا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ إِلَّا غُرُورًا ﴾ نه ده وعده کړي له موږ سره الله اورسول ددغه (الله) مګرپه تېرايستلو سره (باطله اودوکه صاوي وايي چي دغه ويونکی (معتب بن قشير) ووهغه چي ويل به يې: محمد موږ ته دفارس اوروم دفتحي خبرراکوي اوس داودس تازه کولو لپاره هم له وېري څخه چېرته ګوښه کېدلای نشودغه دتېرايستلو پرته بله وعده نه ده (۵) چي محمد(ص) موتېرباسي ﴿ وَإِذْ قَالَت طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ ﴾ اوکله چي وويل يوې طائفې له دغو(منافقانو ) څخه چي هغوی (اوس بن قيظي) او دده پلويان وو (أبی بن سلول) او دهغه پيروان وو ) ﴿ يَٰٓأَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَٱرْجِعُوا۟ ﴾ ای ديثرب خلګونشته ځای (د هستوګني) تاسي ته پس بيرته وګرزوئ (پرېږدئ محمد او ملګري يې ) ﴿ وَيَسْتَـْٔذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ ٱلنَّبِىَّ ﴾ اواجازه د بيرته تللوغوارې يوه ډله له دوی له نبي څخه (اوغيرمعقول عذرونه وايي چي ) ...

(۱) القرطبي ددغي معناله عکرمه رضی الله عنه څخه رانقل شوي اوځرګند دادی چي زړه يې له ډېره تکانه اواضطرابه ګواکي ستوني ته راختلی وو.
(۲) البحرالمحيط ۷ / ۲۱۷
(۳) القرطبي ۱۴ / ۱۴۲
(۴) التسهيل ۳ / ۱۳۴
(۵) حاشية الصاوي ۳ / ۲۷۲

﴿ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ ﴾ وایې چي بېشکه زموږ کورونه (له سړیو) تش پراته (خالي) دي (وېرېږو چي دښمن یاغل ورته مخه نکړي) ﴿ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ ﴾ (الله یې تکذیب فرمایې) حال داچي نه دي تش پراته کورونه د دوی (لکه چي دوی ګمان کوي) ﴿ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴾ نلري اراده دوی (پدغه تګ سره) مګر د تېښتي (له جنګه اوپه مضارع سره تعبیرکول چي ﴿ وَيَسْتَـْٔذِنُ ﴾ دی لپاره داستحضارراوړل شوی لکه چي اورېدونکي هم دااوس ورته ګوري اودوی خپل عذرونه اوحیلې وړاندي کوي بیایې الله داسي رسوا کوي چي ددوی کذب اونفاق ښکاره کوي: ﴿ وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا ﴾ او که راننني ایستی شي (دغه کفار) پردوی (منافقانو) له اطرافوددغي (مدینې منورې) بیاله دوی څخه دکفر، یاله مسلمانانو سره دجنګ فتنه وغوښتل شي نوخامخابه شي دوی هغي (فتنې) ته (او دکفاروملګرتیابه وکړي) ﴿ وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ﴾ اوځنډبه ونکړي په دغه قبول دفتنې کي مګرلږ (ځکه چي سخت په فساد ککړدي حق ورڅخه تللی ایمان یې بایللی له لږ ویري اوترهي سره هم ایمان ټینګولای نشي (۱) دغه ددوی ترټولوستره بدمرغي ښيي ﴿ وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ ﴾ او خامخاپه تحقیق وو دوی چي له الله سره یې وعده کړي وه پخواله دې نه چي وبه نه ګرزوي (په جنګ کي) شاوي خپلي) یعني دغه منافقان هغه څوک دي چي له الله سره ټینګه وعده کړي وه ترپخواله دې جنګ دخندق اووروسته دبدرله جنګه چي له جګړې څخه به هڅونه تښتي ﴿ وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ مَسْئُولًا ﴾ (اودی عهد دالله پوښتېدلی شوی) یعني دغه وعده په وفاکولو ور اولائقه وه ځکه دوی به له هغې څخه وپوښتل شي اوپدې کي وعیداوتهدیدنغښتی دی. قتاده وایې کله چي منافقان دبدرله غزاڅخه پټ شول اوهغه څه یې ولیدل چي الله ﷻ اهل بدرته له کرامت اومرستي څخه ورکړل نودوی وویل که الله موږته جګړه راولیدله خامخابه وجنګېږو (۲) ﴿ قُل لَّن يَنفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِن فَرَرْتُم مِّنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ ﴾ (ووایه (ای محمده دوی ته) چي له سره به نفع نه رسوي تاسي ته تېښته که چېري تاسي له مرګه اویا قتله وتښتی) یعني ای محمده دغو منافقینوته ووایه هغه څوک چي له جنګه ددې لپاره تښتي چي ژوندي پاتي شي نوستاسي تېښته به ستاسي عمرونه اوږده نکړي اوله سره به مواجل وروسته نکړي اونه به مرګ درڅخه وګرزوي ﴿ وَإِذًا لَّا تُمَتَّعُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ اوکله چي وتښتی نو ژوندي به پاتي نکړی شی مګرلږ وخت (ځکه چي مرګ هرچاته راتلونکی دی اوڅوک چي په توره ونه مري په بل څه مري ﴿ قُلْ مَن ذَا

---

(۱) دغه دقتاده اوابن زیدوینااوابن جریرغوره کړي ده قرطبي وایې چي سدي، حسن اوفرآء وایې معناداچي نه به شي پاتي په مدینه کي وروسته له ملګرتیادکفره مګرلږ کسان چي ګردبه هلاک شي اولومړی وینااکثرومفسرین کراموده اودغه ددوی دکمزوري و نیتونو اوزیات نفاق له مخي که چېري کفار ورته راګډشي نودوی به هم کفر ورسره اعلان کړي. قرطبي ۱۴ / ۱۵۰

(۲) حاشیة الصاوي ۳ / ۲۷۳

﴿ الَّذِي يَعْصِمُكُم مِّنَ اللَّهِ ﴾ ووايه (اى محمده دوى ته!) څوک دى هغه ذات چي وساتي تاسي له (عذاب) دالله تعالى ﴿ إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوءًا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ﴾ كه چېري اراده وفرمايي پرتاسي دبدي (هزيمت)، يااراده وفرمايي پرتاسي درحمت (ژوندي پاتي کېدلواونصرت) ﴿ وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴾ اونه به مومي دوى خپلوخانونوته بې له الله کوم دوست (فريادرس) اونه کوم مددګار (دفع کونکى دضرر) ﴿ قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الْمُعَوِّقِينَ مِنكُمْ ﴾ په تحقيق سره الله ته ښه معلوم دي منع کونکي له (جهاده) له تاسي (هغه منافقان چي دخلکوعزائم سستوي اوله جنګه يې راګرزوي) ﴿ وَالْقَائِلِينَ لِإِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ إِلَيْنَا ﴾ او ويونکي خپلو ورونوته (چي) راشئ په لوري زمونږ (چي آرامي، هوسايي اوراحت وموميئ) يعني اوهغه کسان چي خپلو دکفراونفاق ورونوته وايې چي مونږته راشئ محمداو ملګري يې خوشي کړئ چي هلاک شي تاسي له دوى سره ملګري مه جنګېږئ الله فرمايي: ﴿ وَلَا يَأْتُونَ الْبَأْسَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ اونه راځي دوى جنګ ته مګرلږ (لپاره درياء اوسمعت). صاوي وايې چي شان د همدغوکسانو چي خلک له جنګه منع کوي همداسي دى چي جنګ ته نه راځي مګرلږ کله ناکله هغه هم دناولي او پليت مقصد لپاره وي([1]) په البحر المحيط کي ليکي معنادا چي نه راځي جنګ ته مګر په راتګ لږ سره له مسلمانانوسره راووزي چي ګواکي دوى هم يې ملګري دي جنګ نه کوي مګرلږ کله چي مجبور او اړشي نو ددوى جنګ کول درياء لپاره دى حقيقت نلري([2]) ﴿ أَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ﴾ (بخيلان دي (په دوستي شفقت له تاسي سره اونصيحت پرتاسي (چي خير خواهان مونه دي) ﴿ فَإِذَا جَاءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِي يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ﴾ (پس کله چي راشي وېره (ددښمن) نووبه وينې ته دوى چي ګوري به تاته (ترهور) چي چاپېربه چورلي (ګاتي) دسترګوددوى په شان دهغه چا چي بېهوښي راغلي وي په هغه (دخنکندن) دمرګ) يعني کله چي قتال پېښ شي نوته به دغه منافقان پداسي فوق العاده وېره کي وګورې چي مثال دي کله نه وي ليدلى سترګي به يې رډي بډي راختلي وي لکه چي څوک دمرګ په سکراتوکي وي قرطبي وايې چي دغه ددوى دبې زړه والي اوجبن ستاينه ده څکه چي بې زړه ښي اوکيږ لوري ته ګوري اونېغي سترګي اړوي دېرخله خوله ډېري وېري وربانډي بې هوښي راځي([3]) ﴿ فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ ﴾ کله چي وېره لاړه شي (جګړه پاى ته ورسېږي) نو دوى تاسي ته په تېرو ژبوسره ضرر رسوي (اوپه پېغور اوبدي بيانولو کي مبالغه کوي قتاده وايې کله چي دغنيمتونودوېش وخت وي نو تاسي ته ژبه ور شي اووايې مونږته يې راکړئ مونږ ستاسو سره وو تاسي څوترمونږ وراومستحق نه ياست هود جګړې په وخت ترګردوخلګودوى بې زړه او ډارن وي خود ولجې (غنيمت) دوېش په وخت کي ترټولو ژب غړاند

---

([1]) حاشية الصاوي.
([2]) البحر۷/ ۲۲۰
([3]) القرطبي۱۴/ ۱۵۳

اوبخيلان وي (١) ﴿ أَشِحَّةً عَلَى ٱلْخَيْرِ ﴾ (بخيلان (حريصان) وي په خيركي) يعني دوى تاسي سره هسې مخاطبه كوي چي د بخيلانووي دوى په غنيمت اومال ترلاسه كولوكي ډېرحريصان وي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُواْ ﴾ دغه كسان (دجنگ گيدړان دولجې زمريان) ايمان بې ندى راوړى (په حقيقت سره) كه څه هم په ظاهره ځان مؤمن گني) ﴿ فَأَحْبَطَ ٱللَّهُ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ پس باطل كړل الله عملونه ددوى (ځكه چي ايمان داعمالوپه قبلېدوكي لومړى شرط دى) ﴿ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴾ اودى دغه (ابطال داعمال) په الله باندي آسانه، وروسته الله تعالى هغه څه بيانوي چي ددوى په بې زړه توب دلالت كوي فرمايي ﴿ يَحْسَبُونَ ٱلْأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُواْ ﴾ (گمان كوي دغه (منافقان) په لښكرو (دكفارو) چي تللي نه دي) (بيرته په ماتې) يعني دغه منافقان له ډېري وېري داسي گمان كوي چي دقريشي كفارو اونورودلو ټپلولښكري چي په مدينه راتاو شوي وې تللى نه دي (حال داچي هغه تللى دي) ﴿ وَإِن يَأْتِ ٱلْأَحْزَابُ يَوَدُّواْ لَوْ أَنَّهُم بَادُونَ فِي ٱلْأَعْرَابِ ﴾ او كه چېري بياراشي لښكر (دكفارو جنگ ته) نومنافقان دا دوست گني چي دوى كاشكي په ليري كليو) داعرابو كي واى (وتلي له ښاره) ځكه دوى له جنگه سخت وېرېږي اوپر تاسي باندي دهلاكت انتظار كوي ﴿ يَسْـَٔلُونَ عَنْ أَنۢبَآئِكُمْ ﴾ چي پوښتني به يې كولې (له ليري) له (احوالو) خبرو ستاسي (چي څه ورته پېښه شوه؟) آيامؤمنان هلاک اوابوسفيان برياليى شو؟ ترڅو ستا سي حال په خبرونو ترلاسه كړي نه دا چي په ستر گوموووينې ﴿ وَلَوْ كَانُواْ فِيكُم مَّا قَٰتَلُوٓاْ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ اوكه چېري واى دغه منافقان په تاسي كي نوجنگ به يې نه ووكړى مگرلږ (دريآء لپاره ځكه دوى ډېرداړن اوپه ژوندانه مين خلگ دي

بلاغت:

په دې آيتونو كي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنديزيې دادى:

١- تنكيرداستغراق اوشمول دافادې لپاره لكه چي فرمايي: ﴿ مَّا جَعَلَ ٱللَّهُ لِرَجُلٍ مِّن قَلْبَيْنِ ﴾ او دحرف جر راوړل دتاكيدي استغراق لپاره دى اودنني سينې ﴿ فِي جَوْفِهِۦ ﴾ يادونه دانكار دزيات انځورولو په مقصدراغلى دى.

٢- اشتقاقي جناس كله چي فرمايي ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴾ .

---

(١) زادالمسير ٦ / ٣٦٦

۳ - دطباق صنعت په مینځ د ﴿أَخْطَأْتُم... تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ﴾ او د ﴿رَحْمَةً... سُوٓءًا﴾ ترمینځ ځکه چي مراد له (سوء) څخه شر او له (رحمت) څخه خیر دی.

۴ - بلیغه تشبیه هلته چي فرمایي: ﴿وَأَزْوَٰجُهُۥٓ أُمَّهَٰتُهُمْ﴾ دلته د تشبیه وجه او ادات حذف شوی نو بلیغه تشبیه بلل کېږي او اصلي کلام داسي راځي چي (وأزواجه مثل أمهاتهم) په لزوم د درنښت، تعظیم، اجلال او عزت کي.

۵ - مجاز بالحذف چي وايي: ﴿أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ یعني ور اولائق دی په ورلو د میراث د ځینو کي.

۶ - ذکر د خاص وروسته له عام څخه د تشریف لپاره چي فرمایي: ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ مِيثَٰقَهُمْ وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ﴾ ځکه دغه ګرد ذکر شوي علیهم السلام د انبیاوو په جمله کي راتلل او ځانګړي یې ځکه راوړل چي د شأن لوړتیا او شرافت یې وښیي.

۷ - استعاره چي فرمایي: ﴿مِّيثَٰقًا غَلِيظًا﴾ حسي څېزیې کوم چي د اجسامو لپاره استعمالېږي د معنوي څېز لپاره استعاره کړ چي د مېثاق حرمت عظمت او د روندوالی وښیي.

۸ - د التفات صنعت چي پدې کلام کي دی ﴿لِّيَسْـَٔلَ ٱلصَّٰدِقِينَ عَن صِدْقِهِمْ﴾ او غرض ور څخه تبکیت او د مشرکانو تقبیح ده.

۹ - د طباق صنعت چي د ﴿مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ﴾ ترمینځ دی.

۱۰ - تمثیلي تشبیه د الله په دې وینا کي: ﴿تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَٱلَّذِى يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْمَوْتِ﴾ ځکه چي وجه د شبه له متعدد څخه اخیستل شوي ده.

۱۱ - په تمثیل کي مبالغه چي فرمایي: ﴿وَبَلَغَتِ ٱلْقُلُوبُ ٱلْحَنَاجِرَ﴾ د زړونو تصویر یې داسي وکړ لکه چي په اضطراب او خوځښت کي ستوني ته راپورته شوی وي.

۱۲ - کنایه چي فرمایي: ﴿لَا يُوَلُّونَ ٱلْأَدْبَٰرَ﴾ چي له جګړې څخه د تېښتي کنایه ده.

۱۳ - مکنیه استعاره چي فرمایي: ﴿سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ﴾ ژبه یې له تېرې توري سره تشبیه کړه مشبه به یې حذف او له لوازمو څخه یې یوه ته اشاره وکړه چي (سلق) دی د وهلو په معنا چي دغه مکنیه او لفظ د (حِدَادٍ) یې ترشیح دی.

۱۴- دفواصلو توافق په وروستنیو تورو کي لکه ﴿ كَانَ ذَٰلِكَ فِي ٱلۡكِتَٰبِ مَسۡطُورٗا ﴾ ﴿ مَّا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ إِلَّا غُرُورٗا ﴾ او داسي نور چي د کلام ښایست اورونق زیاتوي او خوندوره آزانګه خپروي او په زړه کي خای پرانیزي (۱)

تنبیه:

الله تعالی پخپل کلام کي انبیآء علیهم السلام ته ددوی په نومونو خطاب کوي وایې ﴿ قِيلَ يَٰنُوحُ ٱهۡبِطۡ بِسَلَٰمٖ مِّنَّا ﴾ (هود ۸۴) ﴿ وَنَٰدَيۡنَٰهُ أَن يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ ۝١٠٤ قَدۡ صَدَّقۡتَ ٱلرُّءۡيَآۚ ﴾ (الصافات ۱۰۵) ﴿ قَالَ يَٰمُوسَىٰٓ إِنِّي ٱصۡطَفَيۡتُكَ عَلَى ٱلنَّاسِ بِرِسَٰلَٰتِي وَبِكَلَٰمِي ﴾ الاعراف ۱۰۴) او رسول الله ﷺ ته یې د خطاب لپاره پرته د نبوت او رسالت له لفظه بله کلمه نه ده کارولې ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ حَسۡبُكَ ٱللَّهُ وَمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ (الانفال ۲۴) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغۡ مَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ ﴾ (المائده ۲۷) ترپایه پدې ټولو کي د رسول الله ﷺ د شان لوړتیا او د مقام تعظیم دی او دې ته اشاره ده چي دغه سترنبي خاتم الانبیاء سید الاولین والآخرین دی امام الانبیاء والمرسلین دی او مورته له هغه ﷺ سره د ادب ښوونه او تعلیم راکوي ترڅو یې په ډېر درناوي او اجلال، عزت سره یاد کړو په ښه صفت سره یې وستایو لکه چي فرمایي ﴿ لَّا تَجۡعَلُواْ دُعَآءَ ٱلرَّسُولِ بَيۡنَكُمۡ كَدُعَآءِ بَعۡضِكُم بَعۡضٗاۚ ﴾ (النور ۲۳) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصۡوَٰتَهُمۡ عِندَ رَسُولِ ٱللَّهِ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱمۡتَحَنَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُمۡ لِلتَّقۡوَىٰۚ ﴾ (الحجرات ۳) (۲)

لطیفه:

که څوک وایې چي رسول الله ته په تقوی امر کول څه فائده لري هغه خو د متقیانو امام دی؟ ځواب دا چي دغه امر د تقوی په ثبات او دوام باندي دی لکه چي الله فرمایي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ءَامِنُواْ ﴾ (النساء ۱۳۶) یعني په ایمان ثابت واوسئ او یا لکه چي مسلمان وایې ﴿ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ﴾ (الفاتحه ۲) او هغه ته د سمي لاري ښودنه شوي مقصد یې دا چي تل ترتله مو په سمه لاره ولري او یا دا چي ورته وایې خطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دی او مراد ورڅخه د هغه اُمت دی.

---

(۱) موږ د بلاغت مثالونه په لنډه ګڼډه تو ګه یاد کړل ترڅو لوستونکي له بیاني ښکلا څخه څه خوند وڅکي او که نه د الله (ﷻ) په معجز کلام کي خو دومره زیات د بلاغت پانګه او د بیان رازونه شته چي انسان یې خوند څکي خو په ژبه ورڅخه تعبیر کول محال وي.

(۲) د ګوره هغه بیان چي ابو حیان په البحر المحیط کي لیکلی او هغه چي قاضي عیاض په شفا کي راوړی دوارو په دې هکله ډېري ښې خوندوري او ښایسته لیکني کړي دي

الله تعالى فرمايي:

﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ ٱللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُواْ ٱللَّهَ وَٱلْيَوْمَ ٱلْآخِرَ وَذَكَرَ ٱللَّهَ كَثِيرًا ﴿٢١﴾ وَلَمَّا رَءَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلْأَحْزَابَ قَالُواْ هَٰذَا مَا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَصَدَقَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ ۚ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّآ إِيمَٰنًا وَتَسْلِيمًا ﴿٢٢﴾ مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُواْ مَا عَٰهَدُواْ ٱللَّهَ عَلَيْهِ ۖ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُۥ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُواْ تَبْدِيلًا ﴿٢٣﴾ لِّيَجْزِيَ ٱللَّهُ ٱلصَّٰدِقِينَ بِصِدْقِهِمْ وَيُعَذِّبَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ إِن شَآءَ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٢٤﴾ وَرَدَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُواْ خَيْرًا ۚ وَكَفَى ٱللَّهُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱلْقِتَالَ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا ﴿٢٥﴾ وَأَنزَلَ ٱلَّذِينَ ظَٰهَرُوهُم مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ مِن صَيَاصِيهِمْ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلرُّعْبَ فَرِيقًا تَقْتُلُونَ وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا ﴿٢٦﴾ وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَٰرَهُمْ وَأَمْوَٰلَهُمْ وَأَرْضًا لَّمْ تَطَـُٔوهَا ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا ﴿٢٧﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴿٢٨﴾ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلدَّارَ ٱلْآخِرَةَ فَإِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَٰتِ مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٢٩﴾ يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ مَن يَأْتِ مِنكُنَّ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُضَٰعَفْ لَهَا ٱلْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾ ۞ وَمَن يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتَعْمَلْ صَٰلِحًا نُّؤْتِهَآ أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾ يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ ٱلنِّسَآءِ ۚ إِنِ ٱتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِٱلْقَوْلِ فَيَطْمَعَ ٱلَّذِي فِي قَلْبِهِۦ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴿٣٢﴾ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ٱلْأُولَىٰ ۖ وَأَقِمْنَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتِينَ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَطِعْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ ٱلرِّجْسَ أَهْلَ ٱلْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ﴿٣٣﴾ وَٱذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ وَٱلْحِكْمَةِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا ﴿٣٤﴾ إِنَّ ٱلْمُسْلِمِينَ وَٱلْمُسْلِمَٰتِ وَٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ وَٱلْقَٰنِتِينَ وَٱلْقَٰنِتَٰتِ وَٱلصَّٰدِقِينَ وَٱلصَّٰدِقَٰتِ وَٱلصَّٰبِرِينَ وَٱلصَّٰبِرَٰتِ وَٱلْخَٰشِعِينَ وَٱلْخَٰشِعَٰتِ وَٱلْمُتَصَدِّقِينَ وَٱلْمُتَصَدِّقَٰتِ وَٱلصَّٰٓئِمِينَ وَٱلصَّٰٓئِمَٰتِ وَٱلْحَٰفِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَٱلْحَٰفِظَٰتِ وَٱلذَّٰكِرِينَ ٱللَّهَ كَثِيرًا وَٱلذَّٰكِرَٰتِ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٣٥﴾ ﴾ الأحزاب: ۲۱ ــ ۳۵

**مناسبت:**

کله چي الله داحزاب غزوه بيانوله په ترڅ کي بيې دمنافقانواومذبذب خلګودريز څرګندکړچي له جهادڅخه يې ښنګ کاوو اونوريې هم راګرزول پدې آيتونوکي الله ﷻ مؤمنانوته امرکوي چي په رسول الله ﷺ پسې اقتداء وکړي دهغه صبر، ثبات ، قرباني اوجهاددخان لپاره سرمشق وګرزوي ورپسې بيادامهات المؤمنين درسول الله ﷺ دميرمنوڅخه غږېږي اوهغوى ته دنبوي زهد اوله دنياڅخه دمخ اړولو ماربينه کوي ترڅودنورو مؤمناتو ميرمنومقتداياني جوړي شي.

لغتونه:

(أسوة) قدوة اوپیشوا ییْ ته وايي په دې کي دوه لغتونه دي يو يې دهمزې زېر اودوهم پېښ دی ویل کېږي: ( ائتسی فلان بفلان) يعني فلاني په فلاني پسي اقتداوکړه (نحبه) نذردده اوعهديې ، ويل کېږي (قضی نحبه) کله چي ومري تعبيرله مرګه څخه په نحب څکه چي هرژوندی بايدومري اودغه يې په غاړه پوردی اوچي ومړ، وفات شوګواکي خپل نذريې پرځای کړ[1] (صياصيهم) برجونه ددوی د(صيصة) جمع دی (امتعکن) متاع هغه توښې ته وايې چي سړی يې له ځانه سره وړي اوله دې څخه دطلاق شوي ښځي دنفعي اخيستلواودزړه دتسکين لپاره هغوجاموته چي دمېړه له خوا ورکول کېږي هم متعه وايي [2] (أسرحکن) اسراح په لغت کي خوشي کولوآزادولو ته وايي [3] اودلته مراد ورڅخه طلاق دی (تبرجن) (تبرجت المرأة) معنازينت يې ځرګند کړاوپردوته يې خپل محاسن وښودل اصل يې له ځرګندولو اوظهورڅخه اخيستل شوی اوبرج ته چي ويلای شي هم څکه چي ښکاره او سترلوي دی (قرن) اصل يې (أقررن) وو راء يې حذف کړه اوفتحه يې ماقبل ته ورکړه دوصل همزه يې دقاف له تحرک څخه وروسته چي ورته اړتيانه ليدل کېده وغورځوله نو(قرن) پاتي شو(الرجس) په لغت کي پليدي اونجاست ته وايي اومراددلته ځني ګناهونه دي څکه ګناهکارپه ګناهونوداسي ناولی اوپليت کېږي لکه په نجاستونو باندي چي تن اوبدن ناولی کېږي [4]

دنزول سبب:

أ – ابن جرير طبري له أنس بن مالک څخه روايت کوي وايي چي زماتره (أنس بن نضر) دبدرپه غزا کي ونډه نه واخيستي اوويې ويل زه له لومړي جنګ څخه چي درسول الله په ملګرتياوو پاتي شوم که الله بياجګړه راوليدله الله به مي ووينې چي زه څرنګه له دښمن سره جنګېږم؟ کله چي دأحد جګړه پېښه شوه اومسلمانانوماتي وخوړه نوهغه وويل: ای الله زه بېزاره يم له دې کاره چي دغووکړ (مقصديې مشرکان وو) اوزه تاته معذرت وړاندي کوم له دې کاره چي دانورو وکړ (مقصديې مؤمنان وو) اوبيامخ په وړاندي توره په لاس روان شوچي سعدبن معاذ په مخه ورغی نويې وويل: ای سعده زمادي په الله سوګندوي چي دجنت خوشبويې دأحدله غره سره احساسوم بيايې په جګړه کولوپيل وکړ ترڅوچي شهيد شو نوسعدوويل: ای رسول الله مادومره ونشوکړای لکه چي ده وکړل (رضی الله عنه وأرضاه) أنس بن مالک وايي موږ هغه دشهيدانوپه مينځ کي بياموندلاوځه دپاسه اتياپرهارونه يې په بدن لګېدلي ووچي ياخودتوري وار وو ، يادنېزې زخم اويادغيشي تپ موږ هغه ونشوپېژندلای ترڅويې خور راغله اودګوتوپه بندونويې وپېژاند أنس رضی الله عنه وايي موږبه ويل چي دغه آيت شريف ﴿ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ

---

[1] القرطبی ۱۴-۱۵۸
[2] المعجم الوسيط ۱/۱۲۷
[3] المصباح المنير ۲/۲۳۲
[4] الکشاف ۳/۴۲۵

صَدَقُوا۟ مَا عَـٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ عَلَيْهِ ۖ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُۥ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ﴾ دده اودده دملګرو په هکله رانازل شوی دی(١)

ب-امام احمدله حضرت جابر ﷺ څخه روایت کوي چي حضرت ابوبکرالصدیق ﷺ راغی اورسول الله ته دورتلواجازه یې وغوښتله چي نورخلګ هم درسول الله په دروازه کي انتظارکوي اجازه ورنکړای شوه اوبیاعمر ﷺ راغی اجازه یې وغوښته ورنکړی شوه اوبیاابوبکراوعمر ﷺ ته دنني ورتلو اجازه ورکول شوه چي راغلل که ګوري رسول الله ﷺ ناست دی اوخواوشایې مېرمني (رضوان الله علیهن) ناستي دي رسول الله ﷺ هیڅ هم نه وایې حضرت عمر رضی الله عنه وویل زه به رسول الله ته څه (مالګیني) خبرې وکړم ښایې چي وخاندي نوبیې وویل: ای رسول الله! که دزیدلور(دعمرمېرمن) له ماڅخه دنفقې غوښتنه وکړي ورمېږبه پرې تاوکړم رسول الله ﷺ موسکی شوچي نواجذیې ښکاره شول اوویې ویل: دوی له ماڅخه دنفقې غوښتنه کوي نوابوبکر ﷺ راولاړشوچي عائشه رضی الله عنها ووهي اوحضرت عمر بیاحفصې رضی الله عنهاته ګواښېدو دواړو وویل: تاسي دواړه له رسول الله ﷺ څخه هغه څه غواړی چي له ده سره نشته؟ اورسول الله ﷺ دوی دواړه منع کول اودوی (مېرمنو) وویل چي: قسم په الله که به وروسته له دې مجلس څخه بیاهغه څه وغواړو کوم چي له رسول الله سره نشته اوالله ﷻ دخیارآیت نازل کړچي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴾ نوله عائشې رضی الله عنهاڅخه یې پیل کړه اوورته ویې ویل: زه تاته دیوکارپه هکله وایم اونه غواړم چي په تلواره سره پرېکړه وکړې ترڅودي مور اوپلار په مشوره کي درسره ګډ کړي نه وي هغې وویل: داڅه کاردی ای رسول الله؟ نورسول الله ﷺ دغه آیت ورته تلاوت کړ. هغې رضی الله عنهاوویل: آیاستاپه باب له مور اوپلارسره مشوره وکړم بلکه زه الله اورسول الله اوآخرت غوره کوم اوله تاڅخه غوښتنه کوم چي خپلومېرمنوته به دي دغه زماغوراوی نه یادوې نورسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه الله پاک مشقت بارونکی نه یم رااستولی بلکه ښودونکی اوآسانونکی استازی یم که له دوی څخه چي هره یوه له مانه وپوښتي زه به یې خبره کړم(٢)

ج-أم سلمة رضی الله عنهاوایې چي دې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل: ای دالله نبي څه خبره ده چي زه اورم سړي په قرآنکریم کي ذکرکېږي اودښځویادونه نه کېږي؟ نوالله ﷻ داآیت نازل کړ: ﴿ إِنَّ ٱلْمُسْلِمِينَ وَٱلْمُسْلِمَـٰتِ وَٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ (٣) دآیت ترپایه

تفسیر:

﴿ لَّقَدْ كَانَ لَكُمْ فِى رَسُولِ ٱللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾ خامخاپه تحقیق دی تاسي ته (ای مؤمنانو) په (کارد) رسول الله کي نېکه (غوره) اقتداء (چي دده په اخلاص ، جهاد ، صبر اوټولو اقوالو ، افعالو ، احوالو کي

---

(١) ابن جریرطبري ٢٠/٨٥

(٢) أخرجه الامام احمد کذافی ابن کثیر ٣/٩٢

(٣) رواه النسائي في سننه عن أم سلمة

ورپسي اقتداء وکړی څکه هغه له ځانه څه نه وايي اونه دخپلو خواهشاتو پيروي کوي هغه گرځولندوحی اوتنزیل تابع دی څکه نودده پیروي اوتګلاره پرتاسوواجب ده ﴿ لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ﴾ لپاره دهغه چاچي وي دی دارہږي له الله اوأمیدلري (درضاء اولقاءبي) او(دثواب دنعمتونود ) ورځي وروستی. (دقیامت) ﴿ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا ﴾ اوالله ډېر يادوي (په زړه اوژبه ابن کثیر وايي الله تبارک وتعالی خلگوته امرکړی چي په رسول الله پسي دهغه په صبر، جهاد، ثبات دالله په لاره کي پیره داري اونوروچاروکي اقتداء وکړي څکه نوهلته چي ځیني کسان داحزاب په جنګ کي پرېشانه متزلزل، مضطرب شول ورته یې وفرمایل: ﴿ لَّقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾ یعني دهغه شمائل په ځان کي راوړئ اوپه هغه پسي اقتداء وکړئ (١) ورپسې الله دصادقانو مؤمنانو دريزپدغه جگړه کي ستايي کله چي دوی دقریشولښکري اوله هغوی سره مل ډلي تپلي وليدې نوله دوی څخه ديقين اواخلاص ويناوي څرګندي شوې چي ددوی په ایمان اوقرباني یې له ورایه شاهدي ویله الله فرمايي: ﴿ وَلَمَّا رَءَا الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُۥ ﴾ اوکله چي وليدلې مؤمنانو لښکري (دکفارو ) نوويل: مؤمنانو داهغه دي چي وعده کړي ده له موږ سره الله اورسول ددغه (الله دنصرت) يعني کله چي مؤمنانو کفار وليدل چي له هره لوري پردوی راچاپېرشول لکه چي لاس وندی په مرونداتاووي نوبې وويل چي دغه دالله اورسول الله هغه وعده ده چي موږته یې راکړي وه چي کړاوونه اوابتلاوي به راځي اوبيابه په دښمنانو بری مومی ﴿ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُۥ ﴾ اورښتياويلي وو الله اورسول ددغه الله (چي کله يې موږته بشارت اوزیری راکاوو مفسرین کرام وايي کله چي مؤمنانو خندق کیندل يوه ستره اوټينگه ډبره يې مخي ته راغله چي ماتول يې له توانه بهروو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې خبرکړ اوهغه بیاکلنګ راواخیست دري ځله يې ووهله چي دکسری اوروم د ماڼيو انځورونه يې په شغلوکي څرګندشول نورسول الله دوی ته وویل په بریالیتوب باندي زیری درکوم ) اوکله چي دوی دمشرکانولښکري وليدلې چي دادي راغلې ويې ويل: ﴿ هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُۥ ﴾ (٢) ﴿ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَٰنًا وَتَسْلِيمًا ﴾ اوزيات نه کړو دغو (کفري لښکرو ) مؤمنانوته مګر ايمان اوتسليم (الهي احکاموته) یعني دغه بې سروپایه لښکرواوسختي تنګسياوا يسارتيا دوی (مومنانو)ته ورزیات نکړ مګرپه الله بې قوي اوژور ایمان اودهغه حکمونوته غاړه اېښودل يې ورزيات کړل ﴿ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَٰهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ ﴾ ځيني له مؤمنانوڅخه داسي دي چي رښتياکړي يې ده هغه خبره چي عهد يې له الله سره په هغه باندي کړی وو (چي ويلي يې ووکه له رسول الله سره یوځای دجنګ کولو موقع راغله دوی به ثبات او استقامت کوي څوچي شهادت ته رسېږي ﴿ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُۥ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ﴾ پس ځيني له دوی هغه دي چي ترسره يې کړ نذر خپل (شهيدان شول لکه أنس بن نضراوسيدنا حمزه رضی الله عنهم )

---

(١) مختصر ابن کثیر ٣-٨٨ (٢) حاشية البيضاوی

او ځيني له دوی هغه دي چي انتظارباسي (د شهادت في سبيل الله) ﴿ وَمَا بَدَّلُوا۟ تَبۡدِيلٗا ﴾ او بدل يې نه کړ (عهد خپل يوه ذره هم) په بدلولو سره (کوم چي له الله سره يې کړی وو ﴿ لِّيَجۡزِيَ ٱللَّهُ ٱلصَّٰدِقِينَ بِصِدۡقِهِمۡ ﴾ لپاره ددې چي جزاء ورکړي الله رښتنيو ته (په سبب د ) رښتيني ددوی (نېکه جزا په آخرت کي ) ﴿ وَيُعَذِّبَ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ إِن شَآءَ أَوۡ يَتُوبَ عَلَيۡهِمۡۚ ﴾ او په عذاب به کړي منافقان که اراده وفرمايې د (تعذيب يې چي په نفاق کي به يې مړه کړي) يا رجوع په رحمت سره ورباندي وکړي (او ورباندي ورحمېږي چي ايمان راوړي)

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾ ببشکه چي الله دی ښه ښنونکی (د خطيئاتو) ښه رحم والا (په بندګانو) ابن کثير وايي: څرنګه چي دالله رحمت اومهرباني پرغضب اوقهرغالبه وه آيت شريف يې ورباندي پای ته ورساوو(¹) ﴿ وَرَدَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِغَيۡظِهِمۡ ﴾ اوبيرته وشړل الله (له مديني نه) هغه کسان چي کافران شوي شوي وو (په ماتي سره له جنګه) سره له قهره خپله (ډک زړونه هغه چي هغه څه ته نه ورسېدل کوم چي يې هيله وه) ﴿ لَمۡ يَنَالُوا۟ خَيۡرٗاۚ ﴾ چي ويې نه موندهيڅ خير(بری پر مسلمانانو) يعني دوی نه په دنياکي خيروليدنه په آخرت کي بلکه ځانونه يې په ګناهونو بارکړل چي د رسول الله (صلي الله عليه وسلم) وژلوته يې لېځي رانغښتي وې ﴿ وَكَفَى ٱللَّهُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱلۡقِتَالَۚ ﴾ اوکفايت وکړ الله مؤمنانوته دجنګ کولو(په امداد داستولودباد اوپرښتوترڅوچي دغه کفاروتښتېدل) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزٗا ﴾ اودی الله قوي ښه زورور دېر زبردست (چي څوک يې مغلوب کولای نشي څکه به رسول الله صلى الله عليه وسلم ويل: لااله الاالله وحده ، نصرعبده وأعز جنده وهزم الأحزاب وحده) (²) ﴿ وَأَنزَلَ ٱلَّذِينَ ظَٰهَرُوهُم مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ مِن صَيَاصِيهِمۡ ﴾ اوراکوز کړل الله هغه کسان چي کومک يې کړی وو له دغو (ډلواحزابو) سره (اووعده يې ماته کړي وه چي بني قريظه وو )له کلاګانوددوی (چي هلته يې پناه اخيستي وه )

﴿ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلرُّعۡبَ ﴾ اوو غورځوله الله په زړونوددوی کي وېره (ترڅوچي ځانونه يې تسليم کړل اوبرجونو څخه راکوز شول. ابن جرير وايې چي دغه آيت دبنی قريظه ديهودو په باب راغلی دی کوم چي له رسول الله سره يې عهد کړی وو(دمسلمانانوددښمنانوملاتړبه نه کوي) بيايې وعده ماته کړه اودقريشوملګرتيايې وکړه اوکله چي قريش له مديني منورې څخه په شاشول نو رسول الله بني قريظه محاصره کړل ترڅوچي د(سعد بن معاذ) په حکم کولو راضي اوراښکته شول نو سعد رضی الله عنه داسي فيصله صادره کړه چي نارينه دي ووژل شي اوښځي ، ماشومان دي په اسارت ونيول شي(³) همدغه دالله جل جلاله وېناده چي فرمايي ﴿ فَرِيقٗا تَقۡتُلُونَ ﴾ يوه ډله تاسي ووژله (چي داتوسوو اونهو سوو ترمينځ

(¹) مختصرابن کثير ۳ / ۸۹
(²) أخرجه الشيخان.
(³) التسهيل فی علوم التنزيل ۳ / ۱۳۲

وو) ﴿ وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا ﴾ اوبندي كوله به تاسي بله ډله چي ښځي او ماشومان ددوى و ﴿ وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَـٰرَهُمْ وَأَمْوَٰلَهُمْ ﴾ اوپه ميراث يې درکړه تاسي ته ځمکه ددوى اوكورونه ددوى اومالونه ددوى ﴿ وَأَرْضًا لَّمْ تَطَـُٔوهَا ﴾ اوهغه ځمكه چي تاسي پائمال كړي نه وه (چي دخيبرځمكه وه ځكه هغه له بني قريظه وروسته دمسلمانانولاس ته راغله اونوري ګردي ځمكي چي له دې وروسته مسلمانانوفتحي كړي پكي راځي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا ﴾ اودى الله په هرڅيزباندي ښه قادر(چي اراده وفرمايې) هيڅ څيزيې له آسماني موجوداتو او ځمكني موجوداتوڅخه مغلوب كولاى نشي ابوحيان وايې چي الله پاک دغه آيت دخپل قدرت په بيانولو پاى ته ورساووا ولكه چي دې ته اشاره وي چي مسلمانانو ته به ډېرفتوحات ورپه برخه كوي يعني لكه چي دغه فتح يې دركړه همداسي نوربنارونه ملكونه به هم ستاسي په واک كي دركړي (١) ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا ﴾ اى نبي ووايه ښځوخپلوته كه چېري يې تاسي چي غواړې همدغه ژوندون (لږ) ددنيا (اورونق ښايست (دهغه) يعني اى نبي ستاهغومېرمنوته چي له تاڅخه دنفقې دلګښتونودزياتوالي غوښتنه كوي ووايه كه چېري ددنيادښايست اونعمتونو غوښتونكي ياستى ﴿ فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ ﴾ پس راشئ چي(طلاق) متعه دركړم تاسى ته ﴿ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴾ اوخوشي كړم تاسي په خوشي كولو نېكوسره ﴿ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلدَّارَ ٱلْـَٔاخِرَةَ ﴾ اوكه يې تاسي چي اراده لرى دالله اود رسول ددغه (الله) (اوبرى په نعمتونودكور دآخرت ) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَـٰتِ مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ (پس بېشكه الله تياركړي دپاره دنېكي كونكو(ښځو) له تاسي څخه اجر ډېر لوى) دغه ثواب دشرط دى يعني نوبياالله دنېكي كونكو(محسناتو ) لپاره ددوى دنېكي په مقابل كي سترثواب چي ستايل يې نشي كېداى تياركړى چي هغه دجنت نعمتونه دي كوم چي نه سترګوليدلي ، نه غوږونو اورېدلي اونه دچاپه زړه باندي تېرشوي دي په البحرالمحيط كي ليكي چي كله الله ﷻ خپل پيغمبرته برى ورپه برخه كړ احزاب وتښتېدل اوبني قريظه اوبني نضيرفتح شول نودرسول الله صلى الله عليه وسلم ازواج مطهراتو خيال كاووچي ديهودوخزانې اوګېڼې دمسلمانانولاس ته ورغلې نودوى هم رسول الله ﷺته وويل اى دالله استازي دكسرى اوقيصرلوڼې په ورېښمينوجامواوګاڼوپسوللي اومونږلكه چي ته مووينې په تنګسيااولوږه كي ژوندكوو !! په رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه خبره شاقه اوسخته شوه چي دوى ورڅخه دمزيدولګښتونواوسامانونو غوښتنه وكړه چي له دوى سره دي همداسي معامله اوچلندوكړي لكه چي پاچهان اولويان يې له خپلو مېرمنوسره كوي نوالله ﷻ ورته وفرمايل چي دوى ته دي هغه څه ولولي كوم چي ددوى په هكله رانازل شوي دي اوپدې وخت كي درسول الله ﷺ (٩) مباركي مېرمني وې (٢)

(١) البحرالمحيط ٧/ ٢٢٥

(٢) البحر ٧/ ٢٢٨

﴿ يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ مَن يَأْتِ مِنكُنَّ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ﴾ اوای دنبي ښځوهرڅوک چي راشي له تاسي په يوه ناكاره كار ښكاره (كبيره گناه له كبائرويا داسي گناه چي په بدي كي له حدنه متجاوزوي ابن عباس ﷺ وايي معناداچي نشوز اوسوء الخلق وكړي (دنبي عصيان )(١) ﴿ يُضَٰعَفْ لَهَا ٱلْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ﴾ نودوچندبه شي هغې ته عذاب په دوچند (دعذاب دنورو ښځو څخه چي زيادت دبدوالي دگناه تابع دزيادت دفضل اومرتبې دی(٢) ﴿ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴾ اودی دغه (دوچندي دعذاب) پرالله آسانه ستاسي وجاهت اودرسول الله دزوجيت نسبت دالله له عقوبت څخه له سره څه ممانعت نشي كولای په آيت شريف كي دخطاب تلوين دی وروسته له هغه چي دوی ته مخاطبه دپيغمبرپه ژبه كېدله اوس دوی ته مستقيمًادالله خطاب متوجه شو ترڅوېې دډې چاري پاملرنه كړي وي اوددوی نصيحت يې مهم گڼلی وي. صاوي وايي چي دغه آيتونه دالله له لوري دنبي الله مېرمنوته خطاب اووېناده چي ددوی دبهتري څرگندونه كوي اوددوی مرتبه اومقام ښكاره كوي څخه ترټنه اوپه خطاب كي تشديدددوی دستري مرتبې تنبيه وركوي چي دوی رسول الله ته نژدې اوپه جنت كي درسول الله صلی الله عليه وسلم مېرمني(ښځي) دي نوپه اندازه دنژدې والي پيغمبرته ددوی قرب اونژدېوالی الله تبارك وتعالی ته دی (٣) ﴿ وَمَن يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتَعْمَلْ صَٰلِحًا ﴾ اوهرڅوك چي (تل) اطاعت وكړي له تاسي الله اورسول الله ته اودنېكيوعمل كوي ﴿ نُّؤْتِهَآ أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ ﴾ نو وربه كړو موږ هغې (ښځي) ته اجردهغې دوه كرته (دوه چنده په ثواب دنوروښځو ) دوه ځلي به ثواب وركړويوځل په طاعت اوتقوی بانديې بل ځل درسول الله صلی الله عليه وسلم دخوښي ترلاسه كولوپه غرض چي په حسن معاشرت يې ورسره دقناعت ژوند خپل كړی دی ﴿ وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا ﴾ اوتياركړی دی موږهغې ته رزق روزي نېكه (په جنت كي دعزت تل ترتله بيايې ددوی فضيلت په نوروښځوهسي بيان كړچي: ﴿ يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ ٱلنِّسَآءِ ﴾ ای دنبي ښځو ! نه ياست تاسي لكه يوتولگی (دمحمدي أمت له ) ښځوڅخه. تاسي ترهغوی افضل اوأشرف مقام لرئ تاسي د خاتم الانبياء زوجاتي ياستی دنورأمت دښځوپه شان نه يی ﴿ إِنِ ٱتَّقَيْتُنَّ ﴾ كه چېري تاسي پرهېزگاري كوله ،دغه شرط دی اوځواب يې حذف شوی څخه چي ماقبل ورباندي دلالت كوي يعني كه مو پرهېزگاري كوله نوبياپه خوراسترو مرتبوكي ياست. قرطبي وايې چي الله داوښوده چي د فضيلت بشپړتوب دتقوی په شرط دی څكه چي الله دوی ته دسيدالاولين والآخرين ملگرتياورپه برخه كړي(٤) ابن عباس وايې: معناداچي پرماستاسو قدر دنورو صالحاتوښځوپه شان نه دی تاسوماته ډېري معززي اوثواب موږ بر ستردی كله چي تقوی يې ورلره شرط كړه څكه چي فضيلت په

---

(١) زادالمسير ۶/ ۳۷۸

(٢) الكشاف ۳/ ۴۲۴

(٣) الصاوي ۳/ ۲۷۲

(٤) القرطبي ۱۴/ ۱۷۷

تقوی تر لاسه کېدای شي په یوازي نبوي پیوستون او اتصال فضیلت نه مومی([1]) ﴿ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ ﴾ پس نرمي مه کوئ په خبرو کې (که مو پسته خبره وکړه له نارینه وو سره ) ﴿ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ ﴾ نو به طمع وکړي هغه څوک چې په زړه کي رنځ وي (د گناه او د ښځو خبري اتري خوښوي ) ﴿ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴾ او وواياست تاسي ښه خبره (تکه سپینه چې پکي نرمي او ماتوالی نه وي کله چې له سړیو سره خبري کوئ([2]) ابن کثیر وایې چې ددې معنادا چې له پردیو نارینه وو سره به داسي خبري نکوئ چې نزاکت او پوستوالی پکي محسوس وي او نه به ورسره داسي غږېږئ لکه چې له خپل خاوند (مېړه ) سره غږېږئ ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ ﴾ (او قراري په کورونو کي کښېنئ ) او پرته له ارتیا بهرمه راوزئ لکه هغه کوڅه ډبی بې معناښځي چې گرده ورځ په بازارونو کي گرزي ﴿ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ ﴾ او مه ښکاروئ (ښایست خپل بېگانه سړي ته ) په شان دا ظهار د جاهلیت د (ښځو ) رومبنیو (چې بازار ته به راوتلې ،ښایست ، گینه به یې لوڅه کړي وه د بدن هغه غړي او اندامونه چې لوڅول یې مناسب نه وو دوی به بربند کړي وو قتاده وایې دهغوی په تگ کي به یو ډول ناز او خرام وو الله تري منع کړي ﴿ وَأَقِمْنَ الصَّلَوٰةَ وَآتِينَ الزَّكَوٰةَ ﴾ او سم دروئ لمونځ او ورکوئ زکات ابن کثیر وایې الله پاک دوی لومړی له شرڅخه منع کړل او بیا یې دخیر ورته امر وکړ چې هغه دلمونځ درول دي چې یوازي الله ته عبادت دی او بل دزکات ورکول دي چې هغه له مخلوقاتو سره نېکي کول دي ([3]) ﴿ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾ او (تل) اطاعت کوئ د الله او درسول دد غه الله په گردو او امرو او نواهیو کي چې دمتقي مېرمنو مرتبې مو په برخه شي ﴿ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چې الله اراده لري ددې چې لیري کړي له تاسي گناه ای اهل بیتو (درسول الله کورنی ) ﴿ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ﴾ او چې پاک کړي تاسي (له گناه ) په پاکوالي سره (په ښه توگه ) ﴿ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ ﴾

او یادوئ تاسي هغه چې لوستی کېږي په کورونو ستاسي کي له آیتونو د الله (چې قرآن دی ) او سنت دنبي علیه السلام دی (څکه چې فلاح او نجاح پکې ده ) زمخشري وایې چې دوی ته یې ورپه یاد کړل چې کورونه یې (مهابط الوحی ) دوحی دراکوزېدلو ځایونه دي او ورته یې وفرمایل چې هېر نکړي هغه کتاب

---

([1]) زادالمسیر ۲ / ۳۷۸

([2]) زه وایم کله چې قرآنکریم مېرمنو ته داسي حکم کوي چې په پسته او زړه وړونکي لهجه دې له پردو نارینه وو سره خبري ونکوي تر څو فاسقان فاجران د زړه رنځوران د گناه هیله من نشي نو بیا هغه چې په ناروا سندرو او سازونو رقصونو شپې رڼوي او رادیو گاني تلویزونان یې نورو ته هم خپروي او په بې حیایي سره یې خلک اوري ،وینې ددوی به څه حال وي ؟ او دا چې له دې سره سره خیني هغه چې خان ته علماء وایې بیا حکم کوي چې دښځي غږ عورت نه دی ؟ الهي ددغي زمانې له شره چې خوانان یې فاسقان ،ښځي بې حیا او معروف ته منکر او منکر ته معروف ویل کېږي مو ږ وساته ولا حول ولا قوة الا بالله (صابوني) رحمه الله

([3]) ابن کثیر ۳ / ۴۹ المختصر

چې دوه څېزه سره جمع کوي يو دا چې د نبوت په رښتنولي دلالت کونکي آيات او بل دا چې آيتونه د حکمت د علومو او آسماني شريعتونو دي([1]) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا﴾ بېشکه چې الله دى ښه عالم الاسرار ښه خبردار. عالم په مصلحتونو د بندګانو او خبردار و رباندي څکه يې نو هغه څه ورته شريعت ګرځولي چې په دنيا او آخرت کي يې د ښېګمرغي لامل ګرزي بيا الله ﷻ داسي څرګندونه کوي چې نارينه او ښځينه په ثواب او جزاء کي سره برابر دي فرمايي: ﴿إِنَّ ٱلْمُسْلِمِينَ وَٱلْمُسْلِمَٰتِ﴾ بېشکه چې مسلمانان نارينه او مسلماناني ښځينه (هغوی چې د اسلام په اوامرو او اخلاقو ښايسته وي) ﴿وَٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ﴾ او مؤمنان نارينه او مؤمناني ښځي (چې د الله او د هغه په آيتونو چې په انبياوو يې نازل کړي تصديق کونکي وي) ﴿وَٱلْقَٰنِتِينَ وَٱلْقَٰنِتَٰتِ﴾ او اطاعت کونکي سړي او اطاعت کونکي ښځي (تل ترتله عبادت کونکي) ﴿وَٱلصَّٰدِقِينَ وَٱلصَّٰدِقَٰتِ﴾ او رښتيني سړي او رښتوني ښځي په ايمانو، نيتونو، اقوالو افعالو کي ﴿وَٱلصَّٰبِرِينَ وَٱلصَّٰبِرَٰتِ﴾ او صبر کونکي سړي او صبر کونکي ښځمني (چې په طاعاتو ثبات او له شهواتو څخه په هر حال ځان راګرزوي) ﴿وَٱلْخَٰشِعِينَ وَٱلْخَٰشِعَٰتِ﴾ او وېرېدونکي عاجزي کونکي سړي او وېرېدونکي عاجزي کونکي ښځي (په زړونو او اندامونو) ﴿وَٱلْمُتَصَدِّقِينَ وَٱلْمُتَصَدِّقَٰتِ﴾ او خيرات کونکي سړي او خيرات کونکي ښځي (د خپلو مالونو په مسکينانو باندي د صدقې او زکات) ﴿وَٱلصَّٰٓئِمِينَ وَٱلصَّٰٓئِمَٰتِ﴾ او روژه نيونکي سړي او روژه نيونکي ښځي (د رمضان د مياشتي او نوري نفلي روژې چې د بدن زکات دی روژه بدن پاکوي) ﴿وَٱلْحَٰفِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَٱلْحَٰفِظَٰتِ﴾ او حفاظت کونکي سړي ځای د شهوت خپل (له پرديو ښځو) او حفاظت کونکي (ښځي ځای د شهوت خپل له پرديو سړيو او لوڅولو) ﴿وَٱلذَّٰكِرِينَ ٱللَّهَ كَثِيرًا وَٱلذَّٰكِرَٰتِ﴾ او ذکر کونکي سړي الله لره (په ذکر) ډېر او ذکر کونکي ښځي (الله لره په ډېر ذکر په خپلو ژبو او زړونو په ګردو وختونو او ټولو ځايونو کي) ﴿أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾ تيار کړی دی الله د غو (متقينو ابرارو ته چې په د غو صفاتو متصف دي) مغفرت او اجر لوی (چې جنت دی سره له بخښلو د ګناهونو يې په سبب د ښېګو اعمالو د دوی.

**بلاغت:**

پدې آيتونو کي چې د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنډېزيې په لاندي ډول دی.

۱- اطناب په تکرار سره د اسم ظاهر لکه ﴿هَٰذَا مَا وَعَدَنَا ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَصَدَقَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ﴾ د غه اسم کريم يې د تعظيم او تشريف لپاره مکرر ياد کړی دی.

---

[1] الکشاف ۳/۴۲۵

۲ - استعاره چي فرمايي: ﴿ قَضَىٰ نَحْبَهُۥ ﴾ نحب نذرته وايي دمرګ لپاره يې استعاره کړی چې دهرڅه پای مرګ او مرینه ده لکه چي دغه مرګ دانسان په غاړه پور اونذروي([1])

۳ - اعتراضیه جمله چي فرمايي: ﴿ وَيُعَذِّبَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ إِن شَآءَ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ ﴾ اودادې لپاره چې پدې تنبیه وفرمايي چي دعذاب اورحمت چاري دالله ﷻ په مشيت پوري اړه لري.

۴ - مقابله چي داسي راغي: ﴿ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتَهَا ﴾.... ﴿ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلدَّارَ ٱلْـَٔاخِرَةَ ﴾

۵ - بليغه تشبيه پدې کلام کي: ﴿ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ٱلْأُولَىٰ ﴾ چي اصل يې دادی (کتبرج الجاهلية) ادات (توری) دتشبيه اووجه دشبه حذف شوي بليغه تشبيه يې بولي.

۶ - دعام عطف پرخاص باندي لکه ﴿ وَأَقِمْنَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتِينَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ وروسته له دې ویناڅخه چي ﴿ وَأَطِعْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ﴾ ځکه چي دالله اورسول اطاعت خوپه ټولو ښو اوامرواونواهي کي شامل اوګڼل.

۷ - استعاره پدې کلام کي ﴿ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ ٱلرِّجْسَ أَهْلَ ٱلْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ﴾ دلته يې رجس دګناهونو لپاره استعاره کړاوپاکي يې دتقوی لپاره ځکه چي ګناهکار په ګناوو ناولی کېږي او تقوی بياسړی پاکوي لکه چي پاکه سوتره جامه وي.

۸ - ایجاز بالحذف دالله پدې قول کي چي ﴿ وَٱلْحَٰفِظَٰتِ ﴾ دمفعول حذف دپخواني دلالت له کبله شوی که داسي نه وای وَالحافظات فروجهن به راوړل کېدو.

۹ - دتغليب صنعت هلته چي فرمايي: ﴿ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُم ﴾ دنارينه ووجمع يې راوړي که څه هم ښځمني ورسره ګډي دي دغه جمع يې تغليبي راوړي ده.

۱۰ - دفواصلو توافق لکه ﴿ قَدِيرًا ... يَسِيرًا ﴾ چي دغه هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي اواغېزمن وي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ۗ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًا مُّبِينًا ﴿٣٦﴾ وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِىٓ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ وَتُخْفِى فِى نَفْسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى ٱلنَّاسَ وَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَىٰهُ ۖ فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَٰكَهَا لِكَىْ لَا يَكُونَ

(۱) البيضاوي ۲/ ۱۱۲

عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ﴿٣٧﴾ مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ
فِيمَا فَرَضَ اللَّهُ لَهُ سُنَّةَ اللَّهِ فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ قَدَرًا مَقْدُورًا ﴿٣٨﴾ الَّذِينَ يُبَلِّغُونَ رِسَالَاتِ اللَّهِ
وَيَخْشَوْنَهُ وَلَا يَخْشَوْنَ أَحَدًا إِلَّا اللَّهَ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا ﴿٣٩﴾ مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ وَلَٰكِنْ رَسُولَ اللَّهِ
وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٤٠﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴿٤١﴾ وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً
وَأَصِيلًا ﴿٤٢﴾ هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَائِكَتُهُ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا
﴿٤٣﴾ تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُ سَلَامٌ وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا ﴿٤٤﴾ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿٤٥﴾
وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجًا مُنِيرًا ﴿٤٦﴾ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ بِأَنَّ لَهُمْ مِنَ اللَّهِ فَضْلًا كَبِيرًا ﴿٤٧﴾ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ
وَالْمُنَافِقِينَ وَدَعْ أَذَاهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿٤٨﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ
طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا فَمَتِّعُوهُنَّ وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴿٤٩﴾
يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَاجَكَ اللَّاتِي آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْكَ وَبَنَاتِ عَمِّكَ
وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ اللَّاتِي هَاجَرْنَ مَعَكَ وَامْرَأَةً مُؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ
أَنْ يَسْتَنْكِحَهَا خَالِصَةً لَكَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ
أَيْمَانُهُمْ لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿٥٠﴾ ۞ تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ
تَشَاءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَنْ تَقَرَّ أَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَا آتَيْتَهُنَّ
كُلُّهُنَّ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي قُلُوبِكُمْ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَلِيمًا ﴿٥١﴾ لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَاءُ مِنْ بَعْدُ وَلَا أَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ
أَزْوَاجٍ وَلَوْ أَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ رَقِيبًا ﴿٥٢﴾ ﴾ الأحزاب: ۳۶ – ۵۲

**مناسبت:**

کله چي الله جل شانه دمؤمنانو صفتونه یادکړل او هغه منزلتونه اورتبې يې وستايلې چي دوی ته ورکول کېږي وزېسي يې وفرمايل چي درسول الله اطاعت دالله جل جلاله اطاعت اودرسول الله ﷺ امر دالله دامرپه شان دی اوبیايې دهغه سترنعمت یادونه وکړه کوم چي د ﷺ سراج منيرذات بعثت وو هغه چي دعالميانو لپاره رحمت دی.

**لغتونه:**

(الخیرة) مصدر اوداختيارپه معنادی دغه مصدرغيرقياسي لکه چي (طيرة له تطير) څخه راغلی ([1]) (مبديه) ښرګندونکی دهغه (أبدی الشئ) ښرګندیې کړ (وطرًا) حاجة ،دنفسي خواهش اړتیازجاج وایې (وطر) هغه حاجت ته وايې چي دترسره کولو په هڅه کي يې وی اوکله چي انسان ته ورسېږي ويل کېږي (قضی

---

([1]) البحرالمحيط ۷/ ۲۳۳

وطره) اومبردبیاوایې (الوطر) شهوت ته وايې مثلاچي وايې (ماقضیت من لقانک وطراً) یعني داسې خوند مي دریاندي وانه خیستل لکه چي زړه مي غوښتل (حرج) تنګسیااوګناه (خلوا) تېرشوي (قدرامقدورا) ازلي فیصله شوي (بکرة) دسهارلومړی وخت (اصیلا) دورځي وروستی موده (ترجی) ځنډوي (۱) (تؤوی) ځان ته درولې لکه چي الله فرمايي ﴿ ءَاوَىٰٓ إِلَيۡهِ أَخَاهُۖ ﴾ (یوسف ۶۹).

## دنزول سبب:

ابن عباس ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ زینب بنت جحش (رضی الله عنها) حضرت زیدبن حارثة ته وغوښتله خوهغې ممانعت کاوواوله دغه نکاح څخه خوښه نه وه نودا آیت نازل شو: ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٍ وَلَا مُؤۡمِنَةٍ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمۡرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلۡخِيَرَةُ مِنۡ أَمۡرِهِمۡۗ ﴾ دآیت ترپایه نوزینب رضی الله عنها دغه الهي حکم ته غاړه کښېښودوه اوهغه یې په نکاح واخیست.

اوپه یوروایت کي راځي چي هغې هم ممانعت وکړ اوورورېې عبدالله هم غوښتل ممانعت وکړی ځکه چي خوربې قریشي نسبه وه اوکله چي آیت شریف نازل شو نوعبدالله دحضرت زینبې ورور راغی رسول الله (ﷺ) ته یې وویل: ای رسوله الله څنګه چي غواړې ماته امروکړه! رسول الله ورته وویل: چي زیدته یې ورنکاح کړه نوهغه راضي شواوله زید (ﷺ) سره یې نکاح وروتړله (۲)

## تفسير:

﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٍ وَلَا مُؤۡمِنَةٍ ﴾ اونه دی (روا) ښائېدونکي هیڅ مؤمن سړي اونه هیڅ مؤمني ښځي ته ﴿ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمۡرًا ﴾ کله چي حکم وکړي الله اورسول ددغه (الله) په یوامرکارکي. صاوي وايي چي دالله تعالی نوم دتعظیم لپاره راوړل شوی اوپدې کي دغه ته اشاره هم شته چي درسول الله فیصله دالله فیصله ده ځکه هغه له خپله هوئ خواهشه څخه نه غږېږي (۳) ﴿ أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلۡخِيَرَةُ مِنۡ أَمۡرِهِمۡۗ ﴾ داچي وي دوی ته اختیارله امره کاره خپله (بلکه دوی بایددالله اورسول الله حکم ته غاړه کښېږدي ابن کثیروايي چي دغه آیت په ګردوامورو اوچارو کي عام دی چي کله رسول الله یوحکم صادرکړي بیایې چاته دمخالفت کولو مجال نشته اونه په یکي خپله رأیه اووینا چلوي (۴) ځکه نوسخت تهدید فرمايي چي:

﴿ وَمَن يَعۡصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلٗا مُّبِينٗا ﴾ هرڅوک چي دالله اودالله درسول اطاعت نه کوي پس په تحقیق ګمراه شوپه ښکاره ګمراهي سره (سمه لاره یې پرېښوده په کږوسرشو) ﴿ وَإِذۡ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنۡعَمَ

---

(۱) نفس المرجع.
(۲) القرطبي ۱۴/ ۱۸۷
(۳) حاشیة الصاوي ۳/ ۲۷۸
(۴) ابن کثیر مختصر ۳/ ۹۷

ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ ﴾ (اویادکړه ای محمده!) کله چي تاوویل هغه (زید) ته چي الله وربانديي (په اسلام) نعمت کړی وواوتا وربانديي د(آزادولو) انعام کړی وو مفسرین کرام وايي چي زیدبن حارثه دجاهلیت دوختونو مریی وو اوخدیجې رضی الله عنهاپېرلی (اخیستی) وو اوبیايي رسول الله (ﷺ) ته وروبانبه اوهغه هم په زویتوب ونیو اودخپلي ترور لور(زینب بنت جحش ) يې ورته په نکاح کړه :

﴿أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ﴾ چي وساته ته په خان ښځه دتا(زینب بنت جحش) اوله الله ووېرېږه (مه يې طلاقوه!) ﴿وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبْدِيهِ﴾ حال داچي پټوله (ای محمده) تاپخپل زړه کي هغه خبره چي الله دهغې ښکاره کونکی وو(چي دهغې دنکاح کولو اراده وه (1) په التسهیل کي وايي چي درسول الله دغه پټول داسي څه دي چي نه پکي ګناه شته اونه عیب خوهغه په دې وېرېدوچي خلک به وايي دخپل متبنی ښځه يې په نکاح کړه نويي دحیاء اوحشمت له مخي دغه خبره پټوله اوالله دغه ښکاره کړه چي دهغې دنکاح فیصله يې له رسول الله سره وکړه. ﴿وَتَخْشَى ٱلنَّاسَ وَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَىٰهُ﴾ او وېرېدې ته له خلکواوالله ډېرلائق دی ددې چي ووېرېږې ته له ده نه) یعني ته له دې وېرېدې چي خلک به وايي: محمدصلی الله علیه وسلم دخپل (متبنی) مېرمن په نکاح واخیسته اولائق خودادی چي ته له الله ﷻ

---

(1) خیني داسلام دښمنان په ضعیفوروایتونوپوري لاس نیسي چي نه سرلري اونه سربند اورسول الله ته وربانديي پېغور ورکوي اودسترمقام اهمیت ته يې نه ګوري ماپه خیني تفاسیروکي ددغوباطلو خبری ولیدي چي دمستشرقینوله خولې څخه يې رااخیستي اودحاطب اللیل په شان يې راټول کړي چي له هغوڅخه یو داچي رسول الله ﷺ زینب بنت جحش ولیدله پداسي حال کي چي دزیدمېرمن وه خودرسول الله په زړه کي يې ځای ونیواوويې ویل (سبحان مقلب القلوب) نوکله چي حضرت زینب دغه واورېدل زید ته يې وویل اوزیدرضی الله عنه وغوښتل چي هغه طلاقه کړي خورسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل ﴿أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ﴾ آن تردې چي قرآنکریم نازل شواورسول الله ته يې عتاب وکړچي ولي يې پټوې ... دغه هغه باطل روایتونه دي چي هیڅ صحت نلري لکه چي علامه ابوبکرابن العربي وايي: اوآیت شریف پدې صراحت کوي چي دغه بهتان دی ځکه الله ورته اخبارکوي چي الله به هغه څه څرګند کړي کوم چي رسول يې پټوي ﴿وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبْدِيهِ﴾ نوالله څه څرګند کړل آیادرسول الله عشق اومحبت يې له زینب سره څرګند کړ؟ اوکه هغه چي رسول الله ته دهغې نکاح کولو امر چي سترحکمت پکي نغښتی وو اوهغه دتبنی(حکم باطلول وو کوم چي په جاهلیت کي مشهور دود ووځکه الله پدې په ښکاره توګه تصریح فرمايي ﴿فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَٰكَهَا لِكَىْ لَا يَكُونَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِىٓ أَزْوَٰجِ أَدْعِيَآئِهِمْ إِذَا قَضَوْا۟ مِنْهُنَّ وَطَرًا﴾ ای خلکوفکرسوچ وکړئ حق دحق لپاره وپېژنئ اووګورئ چي تاسي څه وایاست ؟ دغه غیرمعقول دی چي یوځوک دي په دې وتړل شي چي دګاونډي له ښځي سره مینه نه افشاء کوي اومعاذالله چي دالله پیغمبردي له یوې داسي مېرمني سره زړه وتړي چي هغه دبل په عصمت اونکاح کي وي اوبیادي دغه محبت پټ کړي ترڅو چي قرآن نازل شي اوپدې مینه پټولويې وترټي ځکه دغه خو له یوه عادي سړي سره هم نه ښايي څه خواشرف الخلق محمد (ﷺ) سره اوغایت مافی الامر لکه چي په البحرالمحیط کي له علی بن الحسین څخه راوړي چي هغه وايي: الله پیغمبر (ﷺ) ته خبر ورکړی ووچي زینب به ستامېرمن شي تربخواله هغه چي په نکاح يې واخلې اوچي زیدورته راغی دخپلي مېرمني شکوه ګیله يې کوله نورسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: ﴿أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ﴾ الله رسول الله ته عتاب وکړچي مادرته ویلي ووهغه به ستاپه نکاح کي راځي اوته هغه پټوې چي ستاپه زړه کي دي هغه چي الله به يې څرګندوي !.
ددغي ناروا افتراء بطلان زموږپه کتاب النبوة والانبیاء ص ۹۹ کي وګورئ(صابوني) رحمه الله.

څخه وویرېږي اوهغه څه ښکاره کړې کوم چي الله تاته وحی کړې چې ته به وروسته له هغه چي زید ﷺ زینب ته طلاق ورکړي ورسره نکاح کوي ابن عباس ﷺ وایې چي رسول الله له دې وېرېدو چي منافقین به وایي محمد د خپل زوی (مطلقه) مېرمن پخپله نکاح کي واخیسته ﴿فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَٰكَهَا﴾ کله چي تمام کړ زید له دغي (ښځي) څخه خپل غرض (او طلاقه یې کړه او عدت یې تېرشو) نو په نکاح درکړه موږ تاته دغه (زینب) او دغه قطعي په ډاګه ددې دلالت کوي چې رسول الله دهغې د نکاح کولو اراده پټه ساتلې وه چي دهغې له طلاق کېدلو وروسته به د الهي وحی د تنفیذ په غرض هغه په نکاح اخلي نه داچي دهغې مینه یې پټه ساتلې وه لکه چي دروغجنان وایې اومفسرین کرام وایې چي رسول الله ته دهغې د ورپه نکاح کولو چاري الله ترسره کړي وې اوکله چي دهغې عدت تېرشو نورسول الله ﷺ بې له اذن ، عقد، مهر اوشهودو ورته راغی اودغه درسول الله ﷺ خانګړتیا وه بخاري له انس بن مالک ﷺ څخه روایت کوي چي حضرت زینب به په نورو أمهات المؤمنینو درسول الله ﷺ په مېرمنو باندي ویاړکاووچي تاسو خپلو خپلوانو په نکاح ورکړي یاست او زه الله ﷻ له اووآسمانونو دپاسه دپیغمبر په نکاح تاکلي یم او وروسته الله د دغه زواج حکمت داسي بیانوي چي: ﴿لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِىٓ أَزْوَٰجِ أَدْعِيَآئِهِمْ إِذَا قَضَوْا۟ مِنْهُنَّ وَطَرًا﴾ لپاره ددې چي نه وي په مؤمنانو سختي( اووبال) په (نکاح کولو د) ښځو د أدعیاوو ددوی کله چي تمام کړي دغه أدعیا) له دوی نه غرض خپل ابن جوزي وایې: معناداچي موږ به زینب تاته په نکاح درکړوهغه چي د زید ښځه ده کوم چي تاپه زویتوب نیولی خوچي څوک داسي ګمان ونکړي چي د متبنی ښځه نکاح کول (وروسته له طلاق اوعدت تېرېدلو څخه ) ندی روا ﴿وَكَانَ أَمْرُ ٱللَّهِ مَفْعُولًا﴾ (اودی امرحکم دالله هرو مرو کېدونکی) یعني دالله حکم اووحی داسي ده چي ارومرو به زینب ستا په نکاح کي راځي اوکله چي له مؤمنانو څخه حرج لیري کړ نوله سیدالمرسلین څخه یې په ځانګړي توګه دهغه دتکریم اوتشریف په توګه حرج اوتکلیف نفی کړچي: ﴿مَّا كَانَ عَلَى ٱلنَّبِىِّ مِنْ حَرَجٍ فِيمَا فَرَضَ ٱللَّهُ لَهُۥ﴾ نشته پرنبي هیڅ قدر سختي اووبال په هغه کارکي چي مقررکړی دی الله ده ته (له ورکولو دزوجاتو مطهراتو) ضحاک وایې چي یهودانو به درسول الله عیب پدې وایوچي ډېري نکاح ګاني لري نوالله ددوی دغه عیب داسي باطل کړچي ﴿سُنَّةَ ٱللَّهِ فِى ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلُ﴾ (دغه) طریقه مقرره کړي ده الله په هغوانبیاووچي ترده ړومبی تېرشوي دي ابن کثیروایې معناداچي دغه په نکاح کي پراخي اوزیاتوالی دتېروشویو انبیاوو سنت دی کوم چي الله ﷻ محمد رسول الله ته وربښلی لکه چي دحضرت داوُد ﷺ (۱۰۰) ښځي او د حضرت سلیمان ﷺ بیا دري سوه (۳۰۰) مېرمني وې پرته له مینځو څخه ﴿وَكَانَ أَمْرُ ٱللَّهِ قَدَرًا مَّقْدُورًا﴾ اودی حکم امر د الله یو حکم مقرر کړی شوی (په قطعي توګه په ازل کي چي تغییراوتبدیل به نه مومي وروسته الله (ﷻ) په انبیاء علیهم السلام داسي ثناوایې: ﴿ٱلَّذِينَ يُبَلِّغُونَ رِسَٰلَٰتِ ٱللَّهِ﴾ هغه انبیاء چي رسوي پیغامونه دالله (خپلو امتیانو ته ) یعني دغه کسان چي تاته مي دهغوی خبردرکړای محمده اوستامقتدایان دي هغه

انبیاء دي چي دالله پیغامونه خلگوته رسوي ﴿ وَيَخْشَوْنَهُۥ وَلَا يَخْشَوْنَ أَحَدًا إِلَّا ٱللَّهَ ﴾ اووېرېږي له دغه (الله) نه اونه وېرېږي د بل هيچا نه مګريوازي له الله نوپردوی پسي اقتداء وکړه ﴿ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ حَسِيبًا ﴾ اوکافي دی الله ښه حساب کونکی (دبندګانو) (په ټولو اعمالو، افعالو نوښايي له چاونه وېرېږې ! وروسته الله دتبنی حکم چي په جاهليت کي دود وو داسي باطلوي چي: ﴿ مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ ﴾ ندی محمد (ﷺ) (حقيقي) پلار دهيڅ يوتن له سړيو ستاسي. مفسرين کرام وايې کله چي رسول الله ﷺ زينب رضی الله عنها په نکاح واخيستله نوخلګوويل چي محمد دخپل زوی ښځه په نکاح کړه بيادغه آيت نازل شو. زمخشري وايې: معناداچي محمد ﷺ په تاسوکي دهيچاحقيقي پلار نه دی ترڅو دده اوهغه ترمينځ داسي حرمت لکه دپلار اوزوې دمصاهرت اونکاح په هکله ثابت کاندي (۱) ﴿ وَلَٰكِن رَّسُولَ ٱللَّهِ وَخَاتَمَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ ﴾ ولکن دالله رسول دی (خلګوته) اوخاتم النبيين دی (چي وروسته به بل نبي نه راځي. ابن عباس وايې ګواکي که چېري په ده نبوت ختم شوی نه وای نوبه يې زوی درلود له ده وروسته به هغه نبي وو(۲)) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴾ اودی الله په هرڅېزښه عالم (ستاسي داحوالوهيڅ ورڅخه پټ اوالونيانه دی ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴾ ای هغو کسانوچي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو) يادوئ الله په ډېرويادولو سره (په تهليل) تمجيد، تقديس اوتحميد سره دشپې اوورځي او په سفراوحضرکي) ﴿ وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴾ اوتسبيح وايی (لمونځ کوئ) ده ته په سبااوبېګاه کي علماء کرام وايې دغه وختونه يې ښکه ځانګړي کړل چي پدې دواړو وختونو کي ملائکي راښکته کېږي(۳). ﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُصَلِّى عَلَيْكُمْ ﴾ الله هغه ذات دی چي رحمت رانازلوي په تاسي (اوستاسي چارې ستاسي له مصلحتونوسره سمي پرمخ بيايې ﴿ وَمَلَـٰٓئِكَتُهُۥ ﴾ اوپرښتې ددغه (الله هم دعااواستغفار درته کوي رحمت درته غواړي. ابن کثيروايې دالله له لوري (صلوة) معناپه بنده باندي دپرښتوپه وړاندي ثناويل دي اوچابياويلي چي (صلاة) معنارحمت استول دي اودملائکو (صلوة) بيادعااو استغفارګڼلی شي (۴)) ﴿ لِيُخْرِجَكُم مِّنَ ٱلظُّلُمَـٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ ﴾ دپاره ددې چي (الله) وباسي تاسي له تيارو (دکفره) اودګناه رڼا (داسلام او طاعت) ته ﴿ وَكَانَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا ﴾ اودی الله پرمؤمنانوډېر رحم والا (چي لرښک اعمال يې هم قبلوي اوله ډېرو ګناهونو څخه ورتېرېږي ښکه دوی په ايمان کي اخلاص لري) ﴿ تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُۥ سَلَـٰمٌ ﴾ پېشکش دوی ته (دالله له لوري) په هغې ورځي چي دوی ملاقات وکړي له دغه (الله)

---

(۱) الكشاف ۳/ ۳۰

(۲) زادالمسير ۲/ ۳۹۳

(۳) حاشية الصاوي ۳/ ۲۸۱

(۴) مختصرابن كثير ۳/ ۱۰۱

سره سلام دی او په جنت کي د ملک العلام له لوري اکرام دی لکه چي الله فرمايي ﴿ سَلَٰمٌ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ ﴾ (يس: ۵۸) ﴿ وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا ﴾ او تيار کړی دی الله دوی ته اجر ډېر لوی (جنت) او دهغه تل ترتله نعمتونه ابن کثير وايي چي مراد له اجر کريم څخه جنت او دائمي نعمتونه دي چي هلته د خوراک ،څښاک ،داغوستلو جامې ،خوندونه او ښکلي مناظر دي چي نه ستر ګو ليدلي، نه غوږونو اورېدلي نه د کوم بشر په زړه باندي تېر شوي دي (۱) بيا چي کله الله داو فرمايل چي مؤمنان به د کفر له تيارو ده ايت او ايمان رڼا ته راايستلي نو بيې د روښانه ډېرې اوصاف داسي يادکړل هغه چي کائنات يې رڼا کړي دي فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِنَّآ أَرْسَلْنَٰكَ شَٰهِدًا ﴾ ای نبي بېشکه مونږ لېږلی يې ته شاهد پخپل امت او نورو امتونو چي انبياوو يې هغوی ته رسالت رسولی دی ﴿ وَمُبَشِّرًا ﴾ او زېری کونکی (په نعيم سره مؤمنانو ته) ﴿ وَنَذِيرًا ﴾ او وېرونکی (له جحيم څخه لپاره د کافرانو) ﴿ وَدَاعِيًا إِلَى ٱللَّهِ بِإِذْنِهِۦ ﴾ او بلونکی (د خلکو عبادت ته د) الله په حکم اذن سره (نه له خپله ځانه څخه) ﴿ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا ﴾ (او ډېوه روښانه کونکی) يعني ای محمده ته لکه روښانونکي ډېوه غوندي يې چي له معاندا و منکر څخه پرته بل څوک د رڅخه انکار نشي کولای (۲) زمخشري وايي رسول الله ﷺ يې له بلي ډېوې سره تشبيه کړ ځکه چي د هغه په وسيله الله تعالی د کفر تيارې رڼا کړې او ګمراهانو ته يې ورباندي لاره وښودله لکه چي د توري شپې تيارې په بل مشال او ډېوې رڼا کېږي او لارېکي ليدل کېږي (۳) الله ﷻ په پنځو اوصافو وستايو چي هغه ټول کمال ، جمال او ثنا،جلال دي او په پای کي يې وفرمايل چي ﷺ لکه بله ډېوه غوندي دی چي د ګمراهي تيارې ورباندي خيرلي کېږي (صلوات الله وسلامه عليه في کل حين وآن) ﴿ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ بِأَنَّ لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ فَضْلًا كَبِيرًا ﴾ او زېری ورکړه مؤمنانو ته په دې چي بېشکه شته دوی ته له (طرفه د) الله فضل ډېر لوی (په جنات النعيم کي) ﴿ وَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَٱلْمُنَٰفِقِينَ ﴾ او مه منه (حکم) د کافرانو او منافقانو (چي له تاڅخه غوښتنه کوي چي د دين په چارو کي ورسره مساهله وکړې بلکه څه چي درته وحی کېږي په هغه باندي ثبات کوه ﴿ وَدَعْ أَذَىٰهُمْ ﴾ او پرېږده ضرر د دوی (ورباندي پروا مکوه چي دوی خلک د الله له لاري بندوي ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ﴾ او پر الله توکل وکړه (په ټولو احوالو او چاروکي) ﴿ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلًا ﴾ او کافي دی الله وکيل کار جوړونکی په ټولو أمورو د دنيا او آخرت کي صاوي وای چي په آيت شريف کي دې طرف ته اشاره شوي چي توکل ډېر ستر امر دی څوک چي په الله توکل وکړي نو د دنيا او آخرت چاري به يې الله سمي کړي (۴) څرنګه چي خبره د پيغمبر ﷺ د مېرمنو په هکله وه

(۱) ترمذي له حضرت عائشي نه روايت کوي

(۲) ابن کثير ۳ /۱۰۲

(۳) الکشاف ۳ /۴۳۲

(۴) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ /۲۸۲

اودحضرت زينب رضى الله عنهادطلاق واقعه بيان شوه نواوس الله د مؤمنانو د مېرمنو په هکله اود هغوى دطلاق په اړه سمه لاره داسي ښيي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَكَحْتُمُ ٱلْمُؤْمِنَـٰتِ ﴾ اى هغو کسانو چي ايمان يې راوړى دى (اى مؤمنانو) کله چي په نکاح واخلئ مؤمني ښځي) ﴿ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِن قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ ﴾ بياطلاقي کړى تاسودوى پخواله دې نه چي (صحيحه خلوت وکړى) له دوى سره دلته يې مؤمناتي ځانګړي کړې سره له دې چي کتابياتوهم دغه حکم دى لپاره ددې چي پدې تنبيه وفرمايې چي مؤمنانولره ښايې دخپلي نطفې لپاره غورچاڼ وکړي اوپرته له مؤمني عفيفي ښځه بل څوک په نکاح وانخلي([1]) ﴿ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا ﴾ نونشته تاسي ته پردغو مطلقاتوهيڅ شمېر (دورخو) چي شمېرى يې تاسو هغه ؛ ځکه تاسوورسره مجامعت ندى کړى اوهلته د حمل (اميدواري) احتمال نشته ترڅوچي ښځه دخپل نسب دساتلولپاره په عدت کي وساتى ﴿ فَمَتِّعُوهُنَّ ﴾ نوورکړئ دوى ته څه متعه (فائده) يعني پرتاسوباندي ددوى اکرام واجب دى ددوى د خاطرساتلواو خوښي لپاره څه متعه جوړه اومال ورکړئ چي دطلاق تلخي ورباندي آسانه اودزړه ماتوالى يې يوڅه کوشير اوروغ شي ﴿ وَسَرِّحُوهُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴾ اوخوشي کړئ دوى په خوشي کولوښوسره ؛ بې له اضرار او ياتلف دحقوقويې ابوحيان وايې چي د(سراح جميل) معناداچي په ښه کلمه اووينايې رخصت کړئ پرته له دې چي واجب حق څني منع کړئ([2]) بياالله تعالى درسول الله دزوجاتومتعلق احوال داسي فرمايې ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِنَّآ أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَٰجَكَ ٱلَّـٰتِىٓ ءَاتَيْتَ أُجُورَهُنَّ ﴾ (اى نبي موږ بېشکه حلالي کړي دي تاته ښځي ستاهغه ښځي چي ورکړي دي تادوى ته مهرونه د دوى ) يعني اى پيغمبره موږ تاته قسماقسم ښځي حلالي ګرزولي چي پرتاپراخي اوآساني وي اوله دې څخه ستاهغه مېرمنې هم دي چي تاهغوى په مسمى مهرسره کړي اوستاپه عصمت کي دي([3]) ﴿ وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَيْكَ ﴾ اوهغه ښځي چي مالک شوي دي (دهغو) ښي لاس ستاله هغو (وينځو) چي را ګرزولي دي الله په تا(له کفارو) دغه وينځي يې ځکه ځانګړي يادي کړي چي په کفارو باندي دنصرت اوفتحي په وخت کي لاس ته راغلي اودوى ترهغووينځوچي دمال په بدل کي اخيستل شوي دي غوره دي ځکه ددوى په موندلوکي دېري هلي ځلي شوي کړاوونه اوسختي ګالل شوي کومي چي دمال په بيه وينځوکي نه ليدل کېږي نودغه افضل اوغوره دى ﴿ وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّـٰتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَـٰلَـٰتِكَ ٱلَّـٰتِى هَاجَرْنَ مَعَكَ ﴾ اولوني دتره

---

([1]) الکشاف ۳ / ۴۳۳

([2]) البحرالمحيط.

([3]) دغه دمفسرينويوقول دى اوبل داچي مرادګردي ښځي دي الله پاک رسول الله ته رواکړي چي هره ښځه په نکاح واخلئ اومهريې ورکړئ اودغه ترلومړني قول پراخ دى اوقرطبي غوره کړى دحضرت عائشې رضى الله عنهاپه حديث يې استدلال کړى دى چي هغه فرمايي: (مامات رسول الله حتى احل الله له النسآء) وګوره القرطبي ۱۴/ ۲۰۷

ستا اولوني د ترور يانو ستا او لوني د توري ګانو ستا هغه ښځي چي له تا سره يې هجرت کړی وي ﴿ وَٱمۡرَأَةً مُّؤۡمِنَةً إِن وَهَبَتۡ نَفۡسَهَا لِلنَّبِيِّ ﴾ (او هغه ښځه مؤمنه چي وبښي ځان خپل ،نبي ته (بې له مهره) يعني او هغه مؤمني صالحاني ښځي چي د الله او رسول الله د ميني او محبت له وجي تا ته ځان وبښي هم مود رته روا کړي دي ﴿ إِنۡ أَرَادَ ٱلنَّبِيُّ أَن يَسۡتَنكِحَهَا ﴾ که نبي اراده وکړي ددې چي په نکاح واخلي (بې له مهره) دغه ښځه ﴿ خَالِصَةً لَّكَ مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ خالصه (جائزه ده) تا ته غير له نورو مؤمنانو) يعني هغوی ته پرته له مهر او ولوره دغه نکاح جائزه نه ده او نه هم ښځه ځان وربښلی شي او په دغه سورت کي بيا مهرمثل واجبيږي ﴿ قَدۡ عَلِمۡنَا مَا فَرَضۡنَا عَلَيۡهِمۡ فِيٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ وَمَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ ﴾ (په تحقيق معلوم دی موږ ته هغه حکم چي موږ مقرر کړی دی پر دوی باندي په حق د ښځو ددوی او د هغو وينځو چي مالکان دي (د هغو) نبي لاسونه ددوی ) يعني موږ ته معلوم دي هغه څه چي په مؤمنانو مو واجب کړي لکه نفقه ، مهر ، په عقد کي شاهدان او دا چي له څلورو ښځو به زياتي په نکاح نه اخلي او دا چي روا کړي مو دي وينځي سربيره پر دغو اصيلو ښځو باندي او ای محمده ! هرڅه چي ته يې تاسو ته مو خاص ځانګړي آسانتياوي درکړي دي ﴿ لِكَيۡلَا يَكُونَ عَلَيۡكَ حَرَجٞۗ ﴾ لپاره ددې چي نه وي پر تا باندي هيڅ حرج سختي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾ او دی الله ښه ښښونکی ښه رحم والا ﴿ تُرۡجِي مَن تَشَآءُ مِنۡهُنَّ وَتُـٔۡوِيٓ إِلَيۡكَ مَن تَشَآءُۖ ﴾ بيرته کوې هر هغه ښځه چي ته غواړې او را نژدي کوې هر هغه ښځه (خپله ) چي غواړې ته (له دغو ښځو خپلو ) يعني تا ته اختيار دی چي کومه يوه ښځه طلاقوې ) او يا کومه يوه ځان ته راګرزوې له دوی نه [۱] ﴿ وَمَنِ ٱبۡتَغَيۡتَ مِمَّنۡ عَزَلۡتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكَۚ ﴾ او هغه چي بيا يې غواړې له هغو (ښځو خپلو) چي ليري کړی دي پس نشته هيڅ ګناه پر تا باندي ﴿ ذَٰلِكَ أَدۡنَىٰٓ أَن تَقَرَّ أَعۡيُنُهُنَّ وَلَا يَحۡزَنَّ وَيَرۡضَيۡنَ بِمَآ ءَاتَيۡتَهُنَّ كُلُّهُنَّۚ ﴾ دغه (تفويض د کلي واک اختيار د ښځو خپلو ) تا ته ډېر نژدې دی چي يخي او روښانه شي سترګي ددوی او نه به غمجني کېږي او خوشحالېږي دوی په هغه شي چي ورکوې ته دوی ته ټولي ددوی؛ ځکه دوی ته چي کله معلومات وشي چي دغه د الله او امر دی نو به هيڅکله نه خواشيني کېږي او زړونه به يې خوښ او راضي وي ﴿ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا فِي قُلُوبِكُمۡۚ ﴾ (او الله ته معلوم دی هر هغه څه چي ستاسي په زړونو کي دی) خطاب رسول الله ته د تعظيم له کبله دی يعني الله ته هغه څه چي ستا په زړه او د هر انسان په زړه کي دي ښه معلوم دي چي عدل او مساوات دی که ظلم ، مينه ده او که نفرت او تا ته مو اختيار ځکه درکړی چي درباندي آسانتياوي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَلِيمٗا ﴾ او دی الله ډېر عالم ښه تحمل والا ) يعني الله ته ستاسو پټ او ښکاره معلوم دي الله د حلم خاوند دی د عقوبت په راوستلو کي جلتي نه کوي بلکه مهلت ورکوي او ځنډوي يې امام بخاري له حضرت عائشي رضی الله عنها څخه روايت کوي وايي چي ما به له

---

(۱) دغه د ابن عباس وينا ده او مجاهد او ضحاک بيا وايي معنا دا چي تقسيم ورکړئ هغې ته چي ستا خوښه شي او هغې ته چي نه يې غواړې مه يې ورکوه او ستا اختيار دی چي چاته ډېر تقسيم ورکوې او چاته لږ په تا باندي مشقت نشته کذا في البحر ۷/ ۲۴۷

هغو مېرمنود پيغمبر ښخه غيرت كاووچاچي رسول الله ته خپل ځانونه ببښلي وو اوويل به مې چي آيا ښځه هم خپل ځان چاته ببښي ؟ كله چي داآيت نازل شو ﴿ تُرۡجِي مَن تَشَآءُ مِنۡهُنَّ وَتُـٔۡوِيٓ إِلَيۡكَ مَن تَشَآءُۖ وَمَنِ ٱبۡتَغَيۡتَ مِمَّنۡ عَزَلۡتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكَۚ ﴾ نوماوويل چي ستاپروردګار ستاله خوښي سره سم خپل حكمونه رااستوي بياوروسته الله تعالى فرمايي ﴿ لَّا يَحِلُّ لَكَ ٱلنِّسَآءُ مِنۢ بَعۡدُ ﴾ ندي حلالي تاته ښځي (اى پيغمبره) وروسته له دغو (نهو ښځوچي ستاپه نكاح كي دي ﴿ وَلَآ أَن تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنۡ أَزۡوَٰجٖ ﴾ اونه دا (درته روادي) چي بدل كړې په دوى له نورو ښځو(چي كومه يوه طلاقه كړې اوپرځاى يې بله په نكاح واخلې ﴿ وَلَوۡ أَعۡجَبَكَ حُسۡنُهُنَّ ﴾ اګركه تعجب دروليي تاته ښايست دد ي نوروهم ﴿ إِلَّا مَا مَلَكَتۡ يَمِينُكَۗ ﴾ مګرخو(روادي درته) هغه وينځي چي مالک وي ښى لاس دتا(پرهغوى ځكه چي هغوى مېرمني نشي ګڼل كېداى )﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ رَّقِيبٗا ﴾ اواى الله په هرڅيزباندي (داعمالو ستاسي) ښه ساتونكى.

پدې كي د هغه چالپاره وېرونه اوتحذيردى چي څوک دالله له حدودو تجاوز كوي اوحلال حرام نه مراعات كوي. مفسرين كرام وايي چي الله تعالى رسول الله ته څلور ډلي ښځي حلالي ګرزولي ، دمهر ولور والي ، مهاجراتي ، مملوكاتي ، ځانونه ببښونكي ښځي (واهباتي) دغه ټولي لپاره ديراخي اوآساني په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي ترڅودرسالت په خپراوي او د تبليغ اودعوت رسولو لپاره مرستندويې ثابتي شي ، اوكله چي دتخيير آيت نازل شو ﴿ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدۡنَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا ﴾ اورسول الله ﷺ دوى ته اختيار وركړ اودوى هم الله ، رسول اوآخرت غوره كړنو الله ﷻ هم ددوى هسي اكرام وفرمايو چي رسول الله ته يې دنورو ښځودنكاح كولو اجازه ورنكړه اويوازي ددوى لپاره يې رسول الله غوره كړ.

بلاغت:

بدې آيتونوكي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادى:

۱-تنكيردعموم دافادې لپاره لكه ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٖ وَلَا مُؤۡمِنَةٍ ﴾ ځكه چي نكره دنفى په سياق كي راشي نوعموم پكي نغښتى وي يعني هيڅ يوه ته له دوى څخه نشته چي غيرله هغه چي الله اورسول يې اراده لري دوى وغواړي.

۲- طباق د ﴿ وَتُخۡفِي... مُبۡدِيهِ ﴾ ترمينځ اود ﴿ ٱلظُّلُمَٰتِ... ٱلنُّورِ ﴾ ترمينځ همداسي د ﴿ وَمُبَشِّرٗا وَنَذِيرٗا ﴾ ترمينځ اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل كېږي.

۳-اشتقاقي جناس لكه ﴿ قَدَرٗا مَّقۡدُورًا ﴾ چي راغلى دى.

۴-سلبي طباق چي فرمايي: ﴿ وَيَخۡشَوۡنَهُۥ... وَلَا يَخۡشَوۡنَ أَحَدًا ﴾ .

۵ - بلیغه تشبیه پدې کلام کې ﴿ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا ﴾ اصلي تشبیه داسي ده چي اې محمده ته لکه د هدایت اوارشاد بله ډیوه غوندي یې دتشبیه توری اووجه دتشبیه حذف شوي نو لکه چي ووایې (علي زمری دی) دغه وینا بلیغه تشبیه بولي

۶ - کنایه پدې قول دالله تعالی کي چي ﴿ مِن قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ ﴾ له جماع څخه یې په مس کولو کنایه راوړه اودغه له مشهورو کنایاتو څخه بلل کېږي اوله قرآني آدابو څخه دی ځکه چي قرآنکریم له ناسمواوبې خونده الفاظو څخه ځنګ کوي.

۷ - دطباق صنعت چي د ﴿ بُكْرَةً ... وَأَصِيلًا ﴾ ترمینځ اود ﴿ تُرْجِي ... وَتُئْوِي ﴾ ترمینځ اوهمداسي د ﴿ ابْتَغَيْتَ ... عَزَلْتَ ﴾ ترمینځ راغلی دی.

۸ - دفواصلوتوافق چي په جمال اوښایست اوهمداسي په اورېدلوکي اغیزاوایقاع راوړي لکه ﴿ وَمُبَشِّرًا ... وَنَذِيرًا ... وَسِرَاجًا مُّنِيرًا ... سَرَاحًا جَمِيلًا ... عَلِيمًا ... حَلِيمًا ... غَفُورًا ... رَّحِيمًا ﴾ اوهمداسي نوراودغه له قرآني خانګړتیاوو څخه اوله بدیعي محسناتو څخه شمېرل کېږي

الله تعالی فرمایي:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَن يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ ۚ إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنكُمْ ۖ وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ ۚ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ ۚ ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ۚ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَن تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا أَن تَنكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِن بَعْدِهِ أَبَدًا ۚ إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمًا (۵۳) إِن تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا (۵۴) لَّا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ وَلَا أَبْنَائِهِنَّ وَلَا إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ ۗ وَاتَّقِينَ اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا (۵۵) إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ ۚ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا (۵۶) إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا (۵۷) وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا (۵۸) يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا (۵۹) ۞ لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَالْمُرْجِفُونَ فِي الْمَدِينَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا (۶۰) مَّلْعُونِينَ ۖ أَيْنَمَا ثُقِفُوا أُخِذُوا وَقُتِّلُوا تَقْتِيلًا (۶۱) سُنَّةَ اللَّهِ فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلُ ۖ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا (۶۲) يَسْأَلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ ۚ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيبًا (۶۳)

إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَافِرِينَ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيرًا (۶۴) خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا لَا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا (۶۵) يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا (۶۶) وَقَالُوا رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا (۶۷) رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا (۶۸) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَىٰ فَبَرَّأَهُ اللَّهُ مِمَّا قَالُوا وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا (۶۹) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا (۷۰) يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا (۷۱) إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا (۷۲) لِّيُعَذِّبَ اللَّهُ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ وَيَتُوبَ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا (۷۳) ﴾ الاحزاب: ۶۳ - ۷۳

**مناسبت:**

کله چي الله تعالى درسول الله اوددغه دازواج مطهراتواحوال بيان کړل نودلته يې هغه اداب راوړل چي بايدهرمسلمان چي دپيغمبرکورته ورځي په دغو آدابواواخلاقوسينګاروي چي دپيغمبر انګرته دي په استيذان (اجازه غوښتلو) ورننوزي اوهلته دي په هغوی باندي ځان نه باروي ورپسې درسول الله صلی الله عليه وسلم دشرافت بيان فرمايې چي پاک الله اوپرښتې ورباندي درودوايي دسورت په پای کي دآخرت دورځي په بيان اوهلته دکفارو ګمراهانودسرنوشت اودنبکمرغه اوبدمرغه خلګو دبرخليک په هکله بشپړېږي.

**لغتونه:**

(اناه) پخوالی تيارېدل په لسان العرب کي وايي چي (انى الشئ) ديوشيزپخېدل اورسېدل ، بشپړېدل بولي ([1]) (مستانسين) استئناس په خبروالفت نيول اوخونداخيستلوته ويل کېږي (ومابالدار من انيس) په کور کي څوک نشته چي پام ورسره غلط شي (متاع) داړتياوړ څه شي لکه ، تبر ، تېشه ، لور، يوم اونور(بهتانا) افتراء اودروغوته وايي اصل يې له (بهت) څخه اخيستل شوی او هغه د دروغو تور اوتهمت ته وايي ([2]) (جلابيبهن) دجلباب جمع اوهغي جامې ته وايې چي ګردبدن نغاړي او پټوي يې لکه اوسنی چادري اوبرقع (المرجفون) آوازې خپرونکي دروغ اوباطل دخلګو د وېروني لپاره تيتونکي ته وايي (نغرينک) (اغراه) معناويې هڅاوو او وربانډي مسلط يې کړ(سعيرا) سخت بليدونکی.

**دنزول سبب:**

أ- انس ﷺ روايت کوي چي کله رسول الله ﷺ (زينب بنت جحش) په نکاح واخيستله نويې دولېمې بندوبست وکړ خلک يې راوغوښتل کله چي ډوډۍ وخوړل شوه ځيني ډلګۍ درسول الله ﷺ په کور کي کېناستل اوخبري يې کولې کله چي ښځي يې دېوال ته مخ اړولی وونودوی په رسول الله باندي درانه

---

([1]) لسان العرب.

([2]) القرطبي ۱۴ / ۲۲۴

شول أنس ﷺ وايې چي هېرمي دى مارسول الله ته وويل چي خلک ووتل او كه هغه راته وويل. انس ﷺ وايې چي هغه كورته دننه شوزه ورپسې وم چي پرده ولوېده اوزما اوهغه ترمينځ حجاب ولګېدو اوبيا رسول الله خلګوته وعظ وكړ اوالله دا آيت نازل كړچي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَدْخُلُوا۟ بُيُوتَ ٱلنَّبِىِّ إِلَّآ أَن يُؤْذَنَ لَكُمْ ﴾ ([1])

ب - ابن عباس ﷺ وايې چي ځينومؤمنانوبه درسول الله دډوډۍ انتظاركاوو اوترپخوادډوډۍ له تيارېدلوبه كورته ورتلل هلته به ترهغوناست ووځوچي به ډوډۍ چمتوشوه ډوډۍ به يې وخوړله او نه به وتل نودغه آيت نازل شو([2])

ج - عائشة رضى الله عنها وايې چي حضرت عمررضى الله عنه رسول الله ﷺ ته وويل اى پيغبره ستاسي كورته نېک اوبدخلک راځي كاشكي دي أمهات المؤمنين ته دحجاب حكم كړى واى چي ځانه ليدلاى نو دحجاب آيت نازل شو ﴿ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَـٰعًا فَسْـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ ۚ ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ۚ ﴾ (الاحزاب ۵۳ )([3])

د - له سدي څخه روايت كېږي چي فساقوفجارو به ښځي تنګولې ، آزارولې كله چي به دشپې راووتلې اوچي كومي مېرمني به يې وليدلې چي هغه به په پرده كي وي نوبه يې نه ځورولې ويل به يې دغه اصيلي دي اوچي بې له حجابه به يې وليدلې نوبه يې ويل دغه وينځي دي اوهغه به يې ربړولې الله دغه آيت نازل كړ ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَـٰبِيبِهِنَّ ۚ ﴾ ([4])

تفسير:

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَدْخُلُوا۟ بُيُوتَ ٱلنَّبِىِّ إِلَّآ أَن يُؤْذَنَ لَكُمْ ﴾ اى هغو كسانوچي ايمان يې راوړى دى (يعني اى مؤمنانو) مه ننوزئ كورونودنبي ته مګر هغه وختي ننوزئ چي اذن وكړى شي تاسي ته) اضافت دكورونو نبي ته لپاره دتشريف اوتعظيم شوى دى اومؤمنانوته دغه ستراداب داسي ورښودل كېږي چي تاسي په هيڅ حال له احوالو دنبي كورونوته مه ننوزئ مګركله چي عليه السلام درته اجازه دركړي اودغه نه ننوتل دهغه دمېرمنود حقوقو دمراعات كولو لپاره دى چي په هغوى باندي ستاسو ورتګ درونډنشي ﴿ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيْرَ نَـٰظِرِينَ إِنَىٰهُ ﴾ (لپاره دخوړلود ) طعام ته په دغه حال كي چي نه اوسي منتظرپخلي دهغه ته ﴿ وَلَـٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَٱدْخُلُوا۟ ﴾ وليكن كله چي تاسي وبللى شي پس ننوزئ ﴿ فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَٱنتَشِرُوا۟ ﴾ پس كله چي خواړه وخورى نوخواره شئ (نورهلته ځنډمه كوئ) خپلو كورونوته

---

([1]) تو له كيسه په صحيحينو كي وګوره اودغه درسول الله (ص) ځرګنده معجزه ده .

([2]) التسهيل لعلوم التنزيل ۳ / ۱۴۲

([3]) ابن جزي وايې چي لومړى ويناد حضرت انس مشهوره ده اوداين عباس وينادآيت په هغه برخه پوري اړه لري چي الله له دي څخه نهي كوي چي تراذن دمخه ورننوزي.

لا رشئ) ﴿وَلَا مُسْتَـْٔنِسِينَ لِحَدِيثٍ﴾ او مه كېنئ لپاره د(ساعت تېرې د ) خبرو ، ابو حيان وايې چي دوى له دې څخه منع شوي دي چي ډېر خندو كړي او يو د بل خبرو ته سره غوږ ونيسئ او مجلس وكړئ (١) ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي ٱلنَّبِيَّ﴾ بېشكه (دغه كارستاسي ) داسي كاردى چي نبي ته تكليف رسوي) او وربانديدرنېږي د ډېرو چارو او امورو له اداكولو څخه يې جارباسئ) ﴿فَيَسْتَحْيِۦ مِنكُمْ﴾ پس حياءكوي (نبي) له تاسي (چي تاسي ته دوتلو امر وكړي څكه هغه دستروا خلاقو خاوند او د مهربان زړه څښتن دى ﴿وَٱللَّهُ لَا يَسْتَحْيِۦ مِنَ ٱلْحَقِّ﴾ او الله حيا نه كوي له (ويلو د خبري) حقي ، قرطبي وايې چي دغه ستر الهي ادب دى چي پنډېدونكو، لټانو ته يې ورښودلى دى د ثعلبي په كتاب كي راغلي چي دلټانو دېدي لپاره بس دومره كافي دى چي شريعت يې تحمل نه دى كړى (٢) ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَٰعًا فَسْـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ﴾ او كله چي تاسي له دغو (مطهراتو ازواجو )څخه كوم دارتيا وړ څيز غواړى د پردې له شايې وغواړئ ﴿ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ﴾ دغه (غوښتل له پردې دباندي) ډېر پاک (ساتونكى ) دى د زړونو ستاسي او د دوى لپاره (چي له شك او بدګماني څخه موژغوري) ﴿وَمَا كَانَ لَكُمْ أَن تُؤْذُوا۟ رَسُولَ ٱللَّهِ﴾ او تاسي ته نه دى روا چي تكليف ورسوئ رسول الله ته (هغه چي الله دغه په سبب تاسي ته په ژوند كي هدايت درپه برخه كړى دى) ﴿وَلَآ أَن تَنكِحُوٓا۟ أَزْوَٰجَهُۥ مِنۢ بَعْدِهِۦٓ أَبَدًا﴾ او نه دى (روا تاسي ته) دا چي په نكاح واخلئ ښځي دده پس له وفاته (يا طلاقه) څكه هغوى ستاسي لكه ميندي دي او رسول الله مود پلار په شان دي نو آيا داوړه چي هغه پخپل ځان دده او يا اهل دده باندي وكړوي او برېوي ؟! ﴿إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ ٱللَّهِ عَظِيمًا﴾ بېشكه دغه (ايذاء د رسول او نكاح د ازواجو يې ډېره لويه (ګناه ) ده د الله په نزد چي الله يې هيڅكله نه ښني ابو السعود وايې چي پدې كي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د شان لوړتيا او تعظيم شته او داچي دهغه درننبت ا واحترام په ژوند او مرګ كښي لازم او واجب دى (٣) بيا الله تعالى فرمايي ﴿إِن تُبْدُوا۟ شَيْـًٔا أَوْ تُخْفُوهُ﴾ كه چېري تاسي ښكاره كوى كوم څيز او يا يې پټوى هغه څيز (په سينو ) كي ﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا﴾ پس بېشكه الله په هر څيز د اعمالو ستاسي ښه عالم دى (او په هغو يې جزاء دركړي . بيضاوي وايې چي په دغه تعميم كي سره د مقصد له برهانه د تهديد زياته مبالغه او د هيبت زياته اندازه نغښتي ده (٤) وروسته بيا الله د محارمو استثناء داسي بيانوي چي: ﴿لَّا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِىٓ ءَابَآئِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآئِهِنَّ وَلَآ إِخْوَٰنِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآءِ إِخْوَٰنِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآءِ أَخَوَٰتِهِنَّ وَلَا

---

(١) البحر المحيط ٧/ ٢٤٧

(٢) القرطبي ١٤/ ٢٢٤

(٣) ابو السعود ٤/ ٢١٨

(٤) البيضاوي ٢/ ١٢٠

﴿ نِسَآئِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُنَّ ﴾ نشته گناه پردغوښځو (په ترک د حجاب په وړاندي دپلرونوددوی اونه په ځامنو ددوی کي اونه په ورونوددوی کي اونه په زامنو د زامنوددوی کي اونه په ځامنود خوندو ددوی کي اونه په ښځوددوی (يعني په ښځو دنورو مؤمنانو ) اونه په وينځوددوی کي چي مالکان وي ښي لاسونه ددغو(ښځولره) قرطبي وايي کله چي دحجاب آيت نازل شونوپلرونو اوزامنورسول الله ته وويل: چي آياموږبه هم له پردې هاخواورسره خبري کوو؟ نو بيادغه آيت نازل شو(١) اومرادله (نسائهن) څخه دمؤمنانوښځي دي ځکه چي ديهودانوښځي خپلو مېړونوته دمسلمانانوښځواوصاف بيانوي نو مسلماني ښځي ته ځکه روانه دي چي يهودانو ښځوته خپل زينت ، سينګار وښيي چي هغه يې بياخپل مېړه يهودي ته وستايي(٢)﴿ وَٱتَّقِينَ ٱللَّهَ ﴾او ووېرېږئ اى ښځوله الله تعالى څخه (په پټه اوښکاره سره) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴾ بېشکه الله په هرشي باندي ښه عالم شاهددی (هغه ته دزړه رازونه داسي معلوم دي لکه چي داندامونو کړه وړهويني. امام رازي رحمه الله وايي چي پدغه ځای کي (شهيدا )راوړل خوراښکلي اوغوره دي ځکه چي ړومبی د خلوت دجوازلوري ته اشاره وشوه چي دحجاب دپرېښودلوپه هکله وه نودلته الله وفرمايل چي هغه ته جلوت اوخلوت يودول دي په دواړو بشپړعلم اوپوهه لري نوله الله ﷻ څخه ووېرېږئ (٣) بياالله تعالى درسول الله درناوی داسي بيانوي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّ ﴾ بېشکه الله اوپرښتي دالله درودوايي پرنبي باندي دالله (رحمت لېږي) مقام يې اوچتوي اوشان يې لوړوي ) اوملائکه الابرار ورته دُعاوي کوي استغفار غواړي اوله الله ﷻ څخه سوال کوي چي خپل نبي ته لوړي مراتبي عنايت کړي . قرطبي وايي چي دالله له لوري ددرودمعنادالله رحمت اورضادی اودملائکواوپرښتوله لوري بيا دعااواستغفار اودامت له پلوه دعااوتعظيم دی (٤) صاوي وايي چي پدې آيت شريف کي خورا ستر دليل دی چي رسول الله ﷺ درحمتونو موردددی هغه افضل الاولين والآخرين دی ځکه چي په نبي باندي درودداالله له لوري رحمت دی چي له تعظيم سره نژدې اوغبرګ وي اوله نبي څخه پرته په بل چا يوازي درحمت معنالري لکه ﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُصَلِّى عَلَيْكُمْ وَمَلَٰٓئِكَتُهُۥ ﴾ (الاحزاب ٤٣ ) وګوره فرق د دواړو درودونو ترمينځ اودفضل ددواړومقامونو اومراتبو ترمينځ نو پدې سبب رسول الله درحمتونو مهبط اودتجلياتو مصدر دی (٥)

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ صَلُّوا۟ عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا ﴾ اى هغو کسانوچي ايمان يې راوړی دی (اى مؤمنانو) درود ووايئ پرهغه (نبي)اوسلام (پرې) ووايئ په سلام ويلوسره ؛ ځکه چي هغه پرتاسوحقداردی تاسوته يې له ګمراهي څخه هدايت ته لاربنوونه کړي اوله تياروکفر څخه يې داسلام رڼاته راايستلي

(١) القرطبي ١٤/ ٢٣١
(٢) الصاوي ٣/ ٢٨٧
(٣) التفسيرالکبير٢٥/ ٢٢٧
(٤) القرطبي ١٤/ ٢٣٢
(٥) حاشية الصاوي ٣/ ٢٨٧

یاست نوکله چي یې مبارک نوم ذکرشي تاسي وایاست: اللهم صل علی محمد وآله وسلم تسلیمًا کثیرًا )
له کعب بن عجرة څخه روایت شوی چي ای پیغمبره موږ ته خوسلام معلوم دی درود څرنګه ووایو؟ رسول
الله وفرمایل چي داسي وایاست ( اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد کماصلیت علی ابراهیم
......)([1]) دحدیث شریف ترپایه صاوي وایې چي حکمت له درود د پرښتو او مؤمنانوپر رسول الله باندي
دهغه تعظیم پرځای کول دي کوم چي دوی په الله پسي ددرود په لوستلو کي اقتداء کوي اودهغه ﷺ
دځینوحقوقو اداکول دي کوم چي په مخلوقاتوپې لري ځکه هغه د هر نعمت لپاره چي تردوی پوري
رارسېدلی واسطه وواوچاته چي څوک دکوم نعمت درسېدلوسبب وي پرهغه حق لري چي مکافات یې
اداکړي همدغه ددوی په دې وېناکي چي وایې (اللهم صل علی محمد...) نغښتی راز دی ) ([2]) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ
يُؤْذُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ بېشکه هغه کسان چي ایذاء رسوي (الله) ته (په ولد نسبت کولو اوشریک نیولو
اویاداسي ستایلوچي له الله سره ورنه وي لکه چي یهودانوبه ویل ﴿ يَدُ ٱللَّهِ مَغْلُولَةٌ ﴾ (المائده ۶۴) اویابه
نصاراوو ویل ﴿ ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ ٱللَّهِ ﴾ (التوبه ۳۰) اوایذاء رسوي رسول د هغه الله ته (په نسبت کولو
ددروغو په رسالت دده اوپېغور دشریعت دده اواستهزآء په دعوت دهغه؛ ابن عباس ﷺ وایې: دغه
آیت دهغوکسانوپه هکله نازل شوی چاچي به پیغمبر ﷺ ته پېغور ورکاووکله چي یې (صفیه بنت حُیَیّ)
په نکاح کړه ([3]) ﴿ لَعَنَهُمُ ٱللَّهُ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ لیري کړي دي الله دوی (له خپله رحمته ) په دنیا
اوآخرت کي اوخپل غضب یې وباندي کړی چي دوی یې سپک کړي دي اوپه آخرت کي به تل ترتله په
اور کي وي ﴿ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا ﴾ اوتیارکړی یې دی دوی ته عذاب سپکونکی (داور د دوزخ چي
نهایت له ذلته ډک اوسپکونکی دی) ﴿ وَٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ بِغَيْرِ مَا ٱكْتَسَبُوا۟ ﴾
اوهغه کسان چي ضرر رسوي مؤمنانوسړیو ته اومؤمناتو ښځوته په (تومت لګولو) په غیردهغه
کارچي دوی کړی وي ﴿ فَقَدِ ٱحْتَمَلُوا۟ بُهْتَٰنًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴾ پس په تحقیق دوی پخپل ځان باروي غټ دروغ
اوښکاره ګناه، قرطبي وایې چي دالله اورسول الله ایذاء یې مطلقایاده کړه اودمؤمنانویې مقیده ذکرکړه
ځکه چي دالله اورسول ایذا خوارومرو، اکه پکه په ناحقه وي اوله مؤمنانوسړیواوښځوڅخه خوکله کله
څه (ګناه) صادرېږي هم ([4]) اوکله چي الله ربړول اوایذاء درسول حرام کړل نوبې پیغمبرته وفرمایل چي
ګرداُمت ته ناري کړه چي په اسلام منګولي ولګوئ اود هغه ښووني ومنئ په خاصه توګه دغه تولنیزه
چاره چي دحجاب په باب ده اودمېرمني عزت، کرامت اوعفت خوندي کوئ اوله ناولي کتلوڅخه یې
ژغورئ دفاسقانوفاجرانوله چټي خبرو او ملنډو یې ساتئ اودهغو له بدونیتونوڅخه یې په امان کوئ

([1]) المرجع المذکور.
([2]) الصاوي ۳ / ۲۸۷
([3]) زاد المسیر ۶ / ۴۲۰
([4]) القرطبي / ۲۳۸

نويې وفرمايل: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ ﴾ اى نبي وواىه ښځوته دي اولونوته دي اوښځودنورو مؤمنانوته چي څپاره دي کاندي پرتولوځانونوخپلو له تکريو پرونو خپلو څخه (ترڅوچي محاسن او زينتونه يې پټ کاندي اودفاسقانوژبي ځني بندي شي اودجاهليت دښځوله صفاتوڅخه ګوښي شي. طبري له ابن عباس ﷺ څخه روايت راوړي چي هغه رضي الله عنه ددغه آيت په هکله داسي وفرمايل چي: الله دمؤمنانوښځوته کله چي دکومي اړتياله مخي له کوره څخه بهر راوزي فرمايي چي: خپل مخونه دي پټ کړي اوپروني دي دسرله پاسه په ځان راخپاره کړي اويوه سترګه دي لوڅه وي (١) ابن کثير له ابن سيرين څخه روايت کوي چي هغه وايي ماله عبيدة السلماني څخه دالله ﷻ ددې کلام په هکله چي فرمايي: ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ ﴾ وپوښتل نوهغه سر اومخ پټ کړ اوچپه سترګه يې راڅرګنده کړه (٢) ﴿ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰٓ أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ﴾ دغه (پټول دبدن) نژدې دي دوی ته چي وبه پېژندل شي دوی (چي اصيلي دي) پس دوی ته به ايذاء نه رسول کېږي) يعني دغه تستراوپټوالی دې ته نژدې دی چي دوی په عفت، صيانت اوحجاب وپېژندی شي اوناولی بدان مفسدين بياورته طمع نه کوي چاپياويلي چي نژدې دی چي په اصيل والي وپېژندی شي اوله مينځوڅخه بېلي شي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ اودی الله ښه ښونکی د(تېروخطيئاتو) ډېررحم والا(په بندګانوچي ددوی دمصلحتونويې پاملرنه کړي ده بيا الله دټولو ډلو چي ضرر وررسوي داسي عذاب بيانوي اوهغوی تهديدوي فرمايي: ﴿ لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ ﴾ (قسم دی که منع نشول منافقان اوهغه کسان چي په زړونو د دوی کي رنځ دی ) يعني که چېري دغه منافقان چي په خوله دايمان چيغي وهي خوپه زړه کي کافران دي له نفاقه منع نشول اويادغه زانيان چي په زړونوکي يې دفجور رنځ دی له زنااوبدکاري خپلي څخه منع نشول ﴿ وَٱلْمُرْجِفُونَ فِى ٱلْمَدِينَةِ ﴾ او (که منع نشول بدي آوازې ګډونکي په (ښارد) مدينې کي (چي دخلګو افکار ګډوډوي اونفاق خپروي ﴿ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ﴾ نوخامخابه (اى محمده) تامسلط کړو پردوی باندي ﴿ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ فِيهَآ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ بيابه همسايه توب ونکړي دوی له تاسره په دغه (مدينه ) کي لږ وخت (چي دوتلوتياری ونيسي امام رازي وايي چي الله پاک خپل نبي ته داسي وعده ورکړي چي دښمنان به يې له مدينې څخه دده په لاس ورکوي اوشرې دده شوکت به لوړېږي (٣) ﴿ مَّلْعُونِينَ ﴾ ترټلي شوي (له رحمته دالله) ﴿ أَيْنَمَا ثُقِفُوٓا

---

(١) دغه دابن عباس وينادمخ په پټولوکي صريح نص دی اوهمداسي ابن کثير له ابن سيرين څخه روايت راوړی چي صريح اوصحيح روايتونه دي هغوی دښځومخ پټول واجب ګڼي نو دتفسيردعلماوو اوسلف صالحواقوال چېرته؟ اودعلم دمدعيانوچي په اوسني عصر کي دښځي مخ لوڅول رواکوي چېرته دي؟ دمفسرينو وينااوي زموږ په کتاب (روائع البيان) کي وګوره ٢ / ٣٨٢

(٢) ابن کثير ٣ / ١١٤

(٣) التفسيرالکبير ٢٥ / ٢٣١

أُخِذُوٓاْ وَقُتِّلُواْ تَقْتِيلًا ﴾ هرچېري چي وموندلی شي وبه نيول اووبه وژلی شي په وژلو د(خواري) سره (خکه چي کافران دي) ﴿ سُنَّةَ ٱللَّهِ فِى ٱلَّذِينَ خَلَوْاْ مِن قَبْلُ ﴾ دايوه لاره ايښي ده الله په حق دهغو(منافقانواومرجفانو) کي چي له دې نه پخواتېرشوي دي. قرطبي وايي معنا داچي دغه دالله سنت دی چي څوک نفاق کوي اوپه انبياوو پسي بدي آوازې خپروي هغه دي ونيولی شي اوودي وژلی شي (١)﴿ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ ٱللَّهِ تَبْدِيلًا ﴾ اوله سره به نه مومې ته لاري دالله ته هيڅ تبديل، تغيير؛ خکه چي هغه په ډېر ټينګ تاداو بناشوی ده صاوي وايي چي په آيت شريف کي درسول الله لپاره تسلاده يعني ته دمنافقينوله شتون څخه مه غمګين کېږه څکه دغه پخوانی سنت اوتېره لاره ده يوه زمانه له زمانوهم بې منافقانونه وه وروسته الله تعالی قيامت اودهغه کړاوونه داسي بيانوي چي ﴿ يَسْـَٔلُكَ ٱلنَّاسُ عَنِ ٱلسَّاعَةِ ﴾ پوښتنه کوي (مشرکان) خلګ له تاڅخه د قيامت (دراتلو) داستهزآء اوملنډوپه ډول چي کله به وي؟

﴿ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ ٱللَّهِ ﴾ ووايه (ای محمده! دوی ته) بېشکه همداخبره ده علم دقيامت (خاص) په نزددالله دی ماته يې وخت نه دی معلوم الله ديوحکمت له مخي هغه پټ کړی اونه کوم پيغمبرته دهغه علم شته اونه هم پرښتې ته ﴿ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ ٱلسَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيبًا ﴾ اوڅه شي پوه کړی يې ته (په قيام دقيامت) يعني ته ترې بېخبره يې نوبيا ورته ووايه) ښايي چي قيام دقيامت دي نژدې وي. ابوالسعودوايي چي پدې کي دمستعجلينولپاره تهديداودمتعنتينولپاره تبکيت نغښتی دی اوداچي دضميرپرځای يې ظاهر راوړی دهيبت اوزيات تاکيدلپاره دی (٢)﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَعَنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ بېشکه الله کافران رټلي دي (اوله رحمته يې شړلي دي) ﴿ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيرًا ﴾ اوتيارکړی يې دی دوی ته سختي لمبې وهونکی اور ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ﴾ حال دا چي همېشه به اوسي په دغه اورکي تل ترتله ﴿ لَّا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴾ نه به مومي دوی هيڅ دوست اونه کوم مددګار (چي له اوره يې وژغوري) ﴿ يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِى ٱلنَّارِ ﴾ هغه ورځ چي چورلولی به شي مخونه ددوی په اورکي (لکه دکباب غوښه چي په يوه بله خوااړول کېږي

﴿ يَقُولُونَ يَٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا ٱللَّهَ وَأَطَعْنَا ٱلرَّسُولَا ﴾ وايي به دوی ای کاشکي موږدالله اطاعت کړی واي او اطاعت موکړی وای درسول (دالله) دغه به دافسوس په توګه وايي چي کاشکي مودالله اورسول اطاعت کړی وای نوبه په دغه سپک کونکي عذاب نه اخته کېدلو ﴿ وَقَالُواْ رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا ٱلسَّبِيلَا ﴾ اووايي دوی ای زموږربه بېشکه موږ اطاعت کړی وو زموږدمشرانوخپلواو زموږدغټانو خپلوپس ورکه کړه دوی له موږ څخه سمه لاره (اوايمان) ﴿ رَبَّنَآ ءَاتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ ٱلْعَذَابِ ﴾ اوای

---

(١) القرطبي ١٤/ ٢٤٧

(٢) تفسيرابوالسعود ٤/ ٢٢٠

زموږ به ورکړه دوی ته دوچنده له عذابه (زموږ څخه دوی زموږ دګمراهي سبب وو) ﴿ وَٱلۡعَنۡهُمۡ لَعۡنٗا كَبِيرٗا ﴾ اولیري کړه دوی له خپله رحمته په ترټلو لویوسره بیاالله ددې تحذیرفرمایې چې پیغمبر ته دې ضرر وند رسول شي لکه چې یهودانوخپل نبي ته څور ورکاوونویي وفرمایل: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوۡاْ مُوسَىٰ ﴾ ای هغو کسانوچي ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو) مه کېږئ په شان دهغو کسانوچي ایذاء یې رسولي ده موسی ته ( اوهغه یې دبرص په رنځ رنځور ګڼلی وو اویایې نورتومتونه ورباندي تړلي وو څکه چې هغه به زیاتره ګوښه ځان لامبل چې حیآء یې لرله نوالله دهغه برائت څرګنداودوی یې ددوی په ویناکي کومه چې ورباندي موسی علیه السلام تورن کاوو دروغجنان کړل. امام بخاري له ابي هريرة ﵁ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: چې موسی ﵇ دېر حیاناک اوځان پټ ساتونکی وودخپل تن څخه به یې هیڅ غړی بربندنه ښکاره دوچي زیات شرمناک وونوبني اسرائیلووېل چې دی یادبرص په رنځ اخته دی اویایې خصیه پرسېدلي ده ،یابل کوم آفت ورباندي شته اوالله وغوښتل چې دبني اسرائیلوله دغوچتې اوباطلوتورونو څخه دموسی ﵇ برائت ثابت کړي نویوه ورځ یې له خلګو بېل ګوښه دغسل کولو اراده وکړه جامې یې په یوه ډبره کېښېښودې اوغسل یې پیل کړچې غسل یې بشپړکړنودجامو اغوستلوپه تکل شوکه ګوري ډبره وخغسته اوجامې یې ورسره یوړې موسی علیه السلام لکړه پسي راواخیسته او ډبري ته یې ناري وهلې: هاډبري زماجامې ، آډبري زماجامې ! ترڅو چې دبني اسرائیلوپریوه ټولۍ تېرشواوهغوی دی بربندولیدل چې ډېرښایسته وجودالله ورکړی اوالله دده برائت له هغه څه چې دوی به ویل څرګندکړ حدیث ترپایه [1] ﴿ فَبَرَّأَهُ ٱللَّهُ مِمَّا قَالُواْۚ ﴾ پس پاک کړدغه (موسي) لره الله له هغو دروغو چې دوی پری ویل ﴿ وَكَانَ عِندَ ٱللَّهِ وَجِيهٗا ﴾ اووو (موسی ) دالله په نزدمخه ور (دعزت خاوند ) ابن کثیر وایي معناداچي ده دالله په نزد جاه اووجاهت لرلو هرڅه چې یې له الله غوښتی هغه ورکړي دي[2] ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَقُولُواْ قَوۡلٗا سَدِيدٗا ﴾ ای هغو کسانو چي ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو ) ووېرېږئ له عذابه دالله او وایئ خبره سمه محکمه رښتیا (چي الله رضاکړي. طبري وایي معناداچي عادلانه خبره کوي چې ظلم پکي نه وي حق وایاست چې باطل نه وي[3] ﴿ يُصۡلِحۡ لَكُمۡ أَعۡمَٰلَكُمۡ ﴾ چې نېک صالح کړي (الله) تاسي ته عملونه ستاسي (اوقبول یې کړي ابن عباس وایې معنا داچي ستاسي حسنات درڅخه قبول کړي ﴿ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡ ذُنُوبَكُمۡۗ ﴾ اووبښي (الله) تاسي ته ګناهونه ستاسي ﴿ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدۡ فَازَ فَوۡزًا عَظِيمًا ﴾ اوهر چاچي اطاعت وکړدالله اودرسول ددغه (الله) پس په تحقیق بریالی شوپه بري ډېرلوی سره بیاوروسته چې الله دوی ته مکارم الاخلاق ورونبودل نودشرعي تکالیفوپه قدریې ورته تنبیه داسي وفرمایله ﴿ إِنَّا عَرَضۡنَا

---

[1] رواه البخاري ٢/٣١٢

[2] مختصرابن کثیر ٣ / ١١٢

[3] نفس المرجع

ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا ﴾ بېشکه موږ وړاندې کړ امانت (شرعي تکاليف او فرائض) په (آسمانونو او پر ځمکه او غرونو پس منع راوړه دوی له دې چې پورته کړي هغه (د امانت بار) او وېرېدل دوی له هغه (امانت) نه ابو السعود وايي معنا داچې دغه امانات دومره دلوړشان خاوندان وو چې که دغه ستراجرام ورباندې مکلف شوي وای چې په سترتوب او قوت او شدت کې مثالونه دي که يې شعور او ادراک لرلای نو دغه مکلفيت به يې منلی نه وو او وېرېدل به (۱) ابن جزي وايي چې امانت دغه شرعي تکاليف دي چې د طاعاتو وجائب او د معاصيو، نواهي دي چاپياويلي چې امانت د مالونو مراد دی او صحيح دادی چې دغه شرعي مکلفيتونه دي او وړاندې کول يې په دوه ډوله امکان لري يو داچې الله تعالی دي (دغه ځمکو آسمانونو او غرونو ته حقيقتًا) فهم او ادراک ورکړی وي او دوی دي ترې وېرېدلي او ممانعت دي کړی وي. دوهم داچې مقصد تعظيم دامانت د شان دی چې دغه دومره دروند دی که په آسمانونو ځمکه او غرونو وړاندې شي لکه چې وو ايي دروند بار مې په مرکب بار کړ او هغه يې له بارولو او وړه سپکه کړه مقصد داچې د بارولو توان يې نه لاره (۲) ﴿ وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ﴾ او پورته کړ هغه (د امانت بار) انسان بېشکه چې دغه انسان ډېر ظالم (او په خپل عاقبت) نادان دی. ابن جوزي وايي چې پدې کلمه چې (أبين) دی مخالفت مراد نه دی بلکه له وېرې ځخه ممانعت دی ځکه چې دغه وړاندې کول الزامي نه بلکه اختياري وو (۳) ﴿ لِّيُعَذِّبَ ٱللَّهُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلْمُشْرِكِينَ وَٱلْمُشْرِكَٰتِ ﴾ دغه د امانت تحمل غرض ددې لپاره وو) چې عذاب ورکړي الله منافقانو سړيو او منافقانو ښځوته او مشرکانو سړيو او مشرکانو ښځوته ﴿ وَيَتُوبَ ٱللَّهُ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ او رجوع په رحمت سره وکړي الله په مؤمنينو او مؤمناتو (او مغفرت ورته وکړي رضوان ورکړي ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ او دی الله ښه بښونکی (په مؤمنانو چې تېر خطيئات يې وربښلي) ډېر رحم والا (چې ثواب يې ورکړي او په ډول ډول اکراماتو يې نازولي دي

بلاغت:

پدې آيتونو کې چې د بديع او بيان کومې ښکلاوې شته لنډيزيې دادی:

۱- د تشريف لپاره اضافت لکه: ﴿ لَا تَدْخُلُوا۟ بُيُوتَ ٱلنَّبِيِّ ﴾ ځکه کله چې يې نبي ته نسبت وکړشو شرافت يې بيا موند.

۲- د طباق صنعت د ﴿ فَٱدْخُلُوا۟ .... فَٱنتَشِرُوا۟ ﴾ ترمينځ او د ﴿ إِن تُبْدُوا۟ .... تُخْفُوهُ ﴾ ترمينځ او د ﴿ ثُقِفُوٓا۟ ....أُخِذُوا۟ ﴾ ترمينځ.

---

(۱) الطبري ۲۲ / ۳۸

(۲) التسهيل في علوم التنزيل ۳ / ۱۴۵

(۳) زاد المسير ۶ / ۴۲۸

۳ – سلبي طباق چي فرمايې ﴿ فَيَسْتَحْيِۦ مِنكُمْ .... وَٱللَّهُ لَا يَسْتَحْيِۦ مِنَ ٱلْحَقِّ ﴾.

۴ – دخاص ذکرکول وروسته له عامه لکه: ﴿ لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلْمُرْجِفُونَ فِى ٱلْمَدِينَةِ ﴾ همدغه مرجفون دمنافقانوله ډلي دي لومړی يې تعميم وفرمايواوبيايې ځانګړي راوړل چي دتقبيح اوتشنيع زياتوالی يې وښيي.

۵ – دمبالغې صيغې لکه فعول اوفعيل چي د ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا .... بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا .... عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدًا ﴾ په جملو کي راغلی دی.

۶ – دمصدر اوفعل يوځای راوړل چي تاکيد افاده کړي لکه: ﴿ وَقُتِّلُوا۟ تَقْتِيلًا .... وَسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا ﴾ چي راغلی دی.

۷ – دافسوس اوتکان خوړلو کلماتي چي دتمنا په بڼه راغلی لکه: ﴿ يَقُولُونَ يَٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا ٱللَّهَ وَأَطَعْنَا ٱلرَّسُولَا۠ ﴾.

۸ – تشبيه چي فرمايې: ﴿ لَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوْا۟ مُوسَىٰ ﴾ دغه ته مرسله مجمله تشبيه وايي.

۹ – تمثيلي استعاره پدې کلام کي ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ ﴾ امانت يې په لوی والي اوسترتوب کي دومره درروند وښودچي که چېري په آسمانونو ځمکه اوغرونوبارشي توان به يې ونه لري اوځني وبه وېرېږي دغه دامانت دشأن دلويوالي اودروندوالي خوراغوره تمثيل دی.

۱۰ – لطيفه مقابله لکه په مينځ د ﴿ لِّيُعَذِّبَ ٱللَّهُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْمُنَٰفِقَٰتِ ﴾ اود ﴿ وَيَتُوبَ ٱللَّهُ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ کي چي راغلي اودسورت پای په دې آيت شريف سره هغه صنعت دی چي دبديع علما يې (ردالعجز علی الصدر) بولي ځکه دسورت پيل دمنافقينو په قبائحو شوی وو اوپای يې د منافقينوپه بدبرخه ليک اوعاقبت راغلی دی نوکلام په پل اوپای کي ښکلی ښکاري.

۱۱ – په رسول الله باندي دستاينې اوثناکلماتي پداسي ډول چي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِىِّ ﴾ دډېروبيانې باريکيودرلودونکي دي لکه:

أ – خبرپه (إن) باندي مؤکدراوړل شوچي اهتمام افاده کړي.

ب – اسميه جمله ددوام موندلولپاره راغلي ده.

ج – دغه اسميه جمله چي په پيل کي يې (ان الله) په پای کي يې فعليه جمله چي (يصلون) راغلي له دې کبله چي دې ته اشاره وکړي دغه دالله ثناپه خپل پيغمبرباندي نوی نوی وقتاً فوقتاً تل ترتله په دوام صادرېږي نودغوباريکورازونو ته ښه فهم وکړه !.

۱۲ – دفواصلو مراعات چي په اوربدلوباندي ښه خوندوره اغيزه لري لکه ﴿ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيرًا .... لَّا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا .... وَٱلْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ﴾ چي داهم له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

لطيفه:

دغه آيت شريف چي فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ دې ته اشاره كوي چي بلنه اودعوت ترهغو پوري گټه ور او مثمر نشي كېداى ترڅوچي يې دعوتگراومبلغ له خپله خانه او اهله پيل نكړي اوهمدغه دحجاب دعملي كولو پيل درسول الله په ښځواولونودغه راز څرگندوي دي.

دهغه چاپه وړاندي چي مخ پټول روا بولي دمفسرينو كرامو ويناوي:

١-ابن كثير وايي: الله پاک دمؤمنانو ښځوته كله چي له كوره دضروت لپاره بهر وزي حكم كړى دى چي مخونه دي په پړونو پټ كاندي

٢-ابن جوزي وايي چي دالله تعالى ددې ويناچي فرمايي: ﴿يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ﴾ معنادا چي دوى دي خپل سرونه اومخونه پټ كړي ترڅوداسي وښودلي شي چي دوى اصيلي دي

٣-ابوالسعود وايي: دآيت معناداچي دوى دي په پړونوخپل مخونه اوبدنونه ټول پټ كړي كله چي دكومي اړتيالپاره بهروزي.

٤-طبري وايي: چي دوى دي له وينځوسره په لباس كي ځان نه مشابه كوي كله چي ديوكارلپاره دباندي وزي اوويښتان اومخونه يې لوڅ وي ترڅوفاسقان فاجران ورباندي ونه بلوسي.

٥-په البحرالمحيط كي وايي: مقصدله دې كلمې چي (عَلَيْهِنَّ) دى داچي مخونه دي ونغاړي ځكه چي په جاهليت كي به دميرمنو مخ څرگندوو.

٦-الجصاص وايي چي: په آيت كي ددې دلالت شته چي ځوانه ښځه دي مخ پټ كړي ترڅو دزړه رنځوران (منافقان) ورته طمع ونه كړي دغه دمفسرينو كرامو ويناوي وې چي دښځي دمخ پټولو په هكله راغلي والله يقول الحق وهو يهدي السبيل ([1])

دالله ﷻ په مرسته دالاحزاب دسورت تفسيربشپړشو.

***

---

([1]) وگوره دشرعي حجاب شرطونه اودتشريعي حكمت څرنگوالى زموږ په كتاب (روائع البيان في تفسيرآيات الاحكام من القرآن) كي ٢/ ٣٨٧

## دسباء سورت مکي او شلور پنځوس آيتونه لري:

### دسورت په وړاندي:

دالسباء سورت مکي او د اسلامي عقيدې موضوع څېړي د ديني اساساتو لکه د وحدانيت اثبات، د نبوت او بعث او نشور په هکله غږېږي.

په پيل کي سورت د الله لوړتيا ستايې هغه چي مخلوق يې پنځولی د عالم چاري يې مضبوطي کړي کائنات يې په تدبير او حکمت جوړ کړی او هغه عليم او خبيرذات دی چي ديوې ذرې په اندازه وړ څيزېه په آسمانونو او ځمکه کي له هغه څخه پټ پاتي نه شي. او دغه د هغه په وحدانيت باندي ستر برهان او دليل دی.

همداسي سورت له يوې خورا مهمي قضيې څخه خبري کوي چي هغه له آخرت څخه د مشرکانو انکار دی او د بيرته راپاڅېدلو (بعث بعد الموت) تکذيب کوي نو رسول الله ته حکم کوي چي په ستر رب باندي سوګند وکړي چي معاد برحق دی او اجساد به بيرته راژوندي کېږي: ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَا تَأْتِينَا ٱلسَّاعَةُۖ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ ﴾ د آيت تر پايه.

سورت د ځينو پيغمبرانو کيسې راوړي نو داؤد عليه السلام او د هغه زوی سليمان عليه السلام او هغه مخلوقات چي دوی د واړو ته اېل او تابع ګرځېدلي وو را اخلي لکه چي سليمان ته باد، هوا او مرغان مسخر وو او له حضرت داؤد سره به غرونو تسبيح ويله دغه د الله پردوی باندي سره له ډيرونورو نعمتونو او عطاياوو يو فضل وو.

وروسته سورت د ځينو مشرکانو هغه شکوک او شبهات چي د خاتم الانبياء د رسالت په هکله يې لرل له مينځه وړي او هغوی ته کوټلي دلائل او براهين وړاندي کوي لکه چي د الله په وجود او وحدانيت قاطع او غوڅ دليلونه راوړي.

په پای کي سورت مشرکانو ته په واحد قهار ذات باندي د ايمان راوړلو بلنه ورکوي هغه سپېڅلی ذات چي د ټولو خلګو چاري په تدبير سره ترسره کوي.

### نوموول او تسميه:

ځکه يې سورت سبأ بولي چي پدې سورت کي الله تعالی د سبأ کيسه راوړي چي دوی د يمن پاچهان وو په نازاو نعمتونو کي يې خلګ لوېېدل د دوی هستوګن ځايونه ګرد باغونه او جنتونه وو کله چي يې د نعمت کفران وکړ الله ورباندي يو مخ ايزه سېلاب راووست چي د پند اخيستونکو لپاره يې پند او عبرت وګرزول.

اللہ تعالی فرمايي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْآخِرَةِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴿١﴾ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۚ وَهُوَ الرَّحِيمُ الْغَفُورُ ﴿٢﴾ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ ۖ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ ۖ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَلَا أَصْغَرُ مِن ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرُ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿٣﴾ لِّيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٤﴾ وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِّن رِّجْزٍ أَلِيمٌ ﴿٥﴾ وَيَرَى الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ الَّذِي أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ هُوَ الْحَقَّ وَيَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ﴿٦﴾ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿٧﴾ أَفْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَم بِهِ جِنَّةٌ ۗ بَلِ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلَالِ الْبَعِيدِ ﴿٨﴾ أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ۚ إِن نَّشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ ﴿٩﴾ ۞ وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ مِنَّا فَضْلًا ۖ يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ ۖ وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ﴿١٠﴾ أَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ ۖ وَاعْمَلُوا صَالِحًا ۖ إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١﴾ وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ ۖ وَأَسَلْنَا لَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ ۖ وَمِنَ الْجِنِّ مَن يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ وَمَن يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ ﴿١٢﴾ يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِن مَّحَارِيبَ وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ ۚ اعْمَلُوا آلَ دَاوُودَ شُكْرًا ۚ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ ﴿١٣﴾ فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلَىٰ مَوْتِهِ إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُ ۖ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَن لَّوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوا فِي الْعَذَابِ الْمُهِينِ ﴿١٤﴾ ﴾ سبا: ۱ - ۱۴

لغتونه:

(يلج) له (ولوج) څخه اخيستل شوی او دخول ته وايې اوله دې څخه دا کلام هم دی چې فرمايي ﴿ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ﴾ (الاعراف ۴۰) (يعرج) خيژي (عروج) صعود او ختلو ته وايې اوله دې څخه معراج هم اخيستل شوی دی چې آسمانونو ختلو ته وايې (يعزب) پټيږي له اعزب څخه دی او پټېدلو ته وايې (مثقال) وزن او مقدار ته وايه شي (جنة) دجيم په کسره سره لېونتوب ته ويل کېږي او په ضمه سره يې بيا ډال او زغورنه معناده (کسفا) ټوټې (اوّبی) تسبيح ووايا ست (سابغات) اوږدې بشپړې (سبغ الدرع والثوب) معنا داچې ګرد بدن پټ کړي ابوحيان وايې چې سابغات زغروته وايې او په اصل کې دغه وصف دې چې تمام او کمال ته ويل کېږي او بيا په زغرو باندې دغلبې له کبله استعمال شو (السرد) او بدل او قرطبي وايې چې

اصل یې له ټینګولوڅخه دی(القطر)ویلې شوي مس (جفان) دجفنه جمع اولویې کاسې ته وایې (الجواب) د(جابية) جمع اوهغه لوی تالاب ته ویل کېږي چې اوبه پکې درېږي (منسلته) لکړه همساڅکه یې په ډغه نامه بولي چې وربانديي شړل اوترټل کوي.

تفسير:

﴿ اَلْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى لَهُۥ مَا فِى السَّمَوٰتِ وَمَا فِى الْأَرْضِ ﴾ ټوله ثناصفت خاص الله لره دي ، خاص هغه لره دي ټول هغه (څه) چې په آسمانونو اوپه ځمکه کې دي (خلقًا ، ملكًا اوعبيدًا ) نوهغه لره حمددی په دنیاکې ځکه چې بشپړقدرت لري اوهغه لره ثنادی په آخرت کې چې پراخ رحمت لري ﴿وَلَهُ الْحَمْدُ فِى الْءَاخِرَةِ ﴾ اوخاص هم دغه الله لره ټوله ثناپه آخرت کې (له ده پرته هیڅوک یې وړ اومستحق نه دی ځکه چې هغه په اهل دنیااوآخرت باندې مهرباني کونکي (متفضل ) دی ﴿ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴾ اوهمدغه الله ښه حکمت والاښه خبردار دی (پخپل صنعت اوخپل مخلوق باندې چې هرڅه کوي ورباندې اعتراض نشته ) ﴿ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِى الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا ﴾ (معلوم دی (الله ته) هرهغه شی چې ښکته ننوزي په ځمکه کې اوهرهغه شی چې بیرون راوزي له دغې (ځمکې) نه) دغه دالله دځیني معلوماتوتفصيل دی چې الله ته معلوم دي ټول هغه چې په ځمکه کې دننه کېږي لکه بارانونه ، خزانې اومړي اوهغه چې راوزي لکه کښتونه ، نباتات اودچینواوبه اوڅاګاني ﴿ وَمَا يَنزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ﴾ اوهرهغه څیزچې له آسمانه راښکته کېږي اوهرهغه چې پورته خېژي پدغه (آسمان) کې) لکه راښکته کېدونکي بارانونه،پرښتې اورحمتونه اوختونکي لکه نېک اعمال اوسپېڅلي دعاګانې﴿وَهُوَ الرَّحِيمُ الْغَفُورُ ﴾ اوهمدغه الله ډېررحم والادی (په بندګانوخپلو ) ښه ښنونکی (دګناهونو دی څوک چې توبه ګارشي ځکه چې ښمدستي یې په عذاب نه اخته کوي وروسته الله پاک دقیامت اوبعث دمنکرانوویناوي داسي بیانوي ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ ﴾ اووایې هغه کسان چې کافران شوي دي چې موږ ته به قیامت رانشي (اونه هم بعث بعدالموت شته بيضاوي وایې چې دغه خویادراتلوڅخه یې ښخې انکار دی اویاداچې هغه وځندېدواودوی استهزآء کوي چې موږته دقیامت دراتلووعدې راکړی شوي وی په هغه ملنډې وهي ([1])﴿ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّى لَتَأْتِيَنَّكُمْ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته چې ولې به رانشي؟) بلکه قسم دی زماپه رب چې خامخابه تاسې ته راشي داقیامت . ابن کثيروایې چې دغه د هغودریوآیتونوڅخه یودی کوم چې الله پاک خپل پیغمبرته ددې خبرې لپاره دقسم کولو حکم کوي دوهم یې په سورة یونس کې چې فرمایي :

﴿قُلْ إِى وَرَبِّى إِنَّهُۥ لَحَقٌّ ﴾ (یونس ۵۳ ) اودریم یې په سورة التغابن کې دی چې ﴿ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّى لَتُبْعَثُنَّ ﴾ ([2])

---

([1]) البیضاوي ۲/ ۱۲۲

([2]) ابن کثیر ۳/ ۱۲۱

التغابن ۷) ﴿ عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَلَا فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ (هسي رب) چي په غيبو عالم دی له ده نه پټېږي په اندازه ديوې ذرې په آسمانونوکي اونه په ځمکه کي ﴿ وَلَآ أَصْغَرُ مِن ذَٰلِكَ وَلَآ أَكْبَرُ ﴾ اونه وړوکی له هغې ذرې نه اونه لوی ترې ﴿ إِلَّا فِي كِتَٰبٍ مُّبِينٍ ﴾ مگر (چي دا ټول ليکلي دي) په کتاب ښکاره (لوح محفوظ) کي؛ غرض دا چي له الله څخه يوه ذره هم په کائناتوکي پټه نشي پاتي کېدلای نو بشر اودهغه احوال به څرنگه څني پټ پاتي شي که هډوکي وراسته اوخاوري ايرې هم شي الله وربانديخبردی چي چېرته تللی اوخپاره شوي دي نوبه يې بيرته دقيامت په ورځ راستانه کړي ﴿ لِّيَجْزِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ دپاره ددې چي جزاء ورکړي (الله) هغوکسانوته چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي (ښه) عملونه (په دنياکي) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴾ دغه (نيکوکاران مؤمنان چي دي) شته دوی ته مغفرت بښنه اوروزي دعزت (په جنت کي) ﴿ وَٱلَّذِينَ سَعَوْ فِيٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ ﴾ اوهغه کسان چي سعی (کوښښ) کوي (په ابطال د) آيتونود (قرآن) زموږکي په داسي حال کي (چي گمان کونکی وي چي) عاجزکونکي دي (درسول الله درسالت اوقرآن په هکله په خپلو شکوکواوشبهاتوخپرولوسره) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِّن رِّجْزٍ أَلِيمٌ ﴾ دغه کسان شته دوی ته عذاب له عذابه دردناکه څخه قتاده وايي (الرجز) بدترين عذاب ته وايه شي ﴿ وَيَرَى ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ ﴾ او (بل ددې لپاره په لوح محفوظ کي ليکلي) چي وويني هغه کسان چي دوی ته علم فهم ورکړی شوی دی (چي هغه دنبي اصحابان اوله دوی وروسته راتلونکي عاملين علماء دي ﴿ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ هُوَ ٱلْحَقَّ ﴾ هغه (قرآن) چي نازل شوی دی تاته له (جانبه د) رب ستاهمغه حق دی (باطل ورته لاره نلري) ﴿ وَيَهْدِيٓ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَمِيدِ ﴾ اوسمه لاره ښيي طرف دلاري (دهغه الله ته چي) ښه زبردست اوډېرثناويلی شوی دی (په ذات صفاتواو افعالو کي. ورپسې الله پاک دمشرکانوهغه اساليب اوددين په لارکي خنډونه اودهغوی ملنډې په رسول الله باندي بيانوي کوم چي يې دودعادت وي فرمايي: ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ ﴾ اووايي هغه کسان چي کافران شوي دي (دمکې مشرکان چي له بعثه منکردي) آيا (وښيو) دلالت وکړو تاسي ته په يوسړي چي خبردرکوي (عجيبه نادره خبره مقصدېې له سړي څخه رسول الله دی) ﴿ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ﴾ کله چي تاسي ذرې ذرې شی په بشپړه ذره ذره کېدلوسره (خاوري ايرې شی) ﴿ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴾ ببشکه چي تاسي به خامخاپه يونوي پيداښت کي يې؛ غرض به يې په دغه ويناکي استهزآء اوملنډې وي ابوحيان وايي چي ددغي ويناکونکي قريشي کفاروو اودغه به يې دتعجب او ملنډو په توگه ويل لکه چي يوڅوک بل ته وايي آياله يوې نوې نادري کيسې څخه دي خبرکړم؟! او څرنگه چي بعث بعد الموت دوی ته محال ښکارېدو

نوچاچي به دهغه خبر ورکاوو دوی به يې تعجب کاوو اوداچي نوم يې نه ورته اخيست ويل يې ﴿ هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ ﴾ سره له دې چې نوم يې په قريشو کي ښکاره او ښاروود غه يې هم داستهزاء نبسه ده (۱) ﴿ أَفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَم بِهِۦ جِنَّةٌۢ ﴾ آيا له خپله ځانه تړلي دي (محمد) پرالله باندي دروغ اوکه لېونتوب لېونتوب ورپوري دی ؟ (اوداسي څه وايې چي چتيات دي الله تعالی ددوی په ردکي فرمايې ﴿ بَلِ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ (بلکه هغه کسان چي ايمان نه راوړي په آخرت) بل داضراب لپاره دی يعني دغسي نه ده لکه چي دوی ګمان کوي چي دغه دروغ ،يالېونتوب دی ﴿ فِى ٱلْعَذَابِ وَٱلضَّلَٰلِ ٱلْبَعِيدِ ﴾ په عذاب کي به وي (په عقبی کي) اوپه ګمراهي لويې کي لوېدلی (خودوی نه پوهېږي اودغه دلېونتوب اوحماقت وروستی سرحددی . وروسته بياکله چي الله دقيامت په اثبات دليل بيان کړ بل داسي دليل چي په ترغ کي يې توحيداوتهديدنغښتی وي راووړ ﴿ أَفَلَمْ يَرَوْا۟ إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ آيانه ګوري دا (کافران) هغه څېزته چي ددوی په مخ کي دی اوهغه چي وروسته له دوی دی له آسمانه اوله ځمکي (اوله ټولو خواوو پردوی محيط دی ) ځکه کله چي انسان هرلوري ته وګوري نوځمکه آسمان به مخ اوشاته ګوري اودغه دصانع ذات په وحدانيت يودليل دی نوولي دوی سوچ نکوي چي همدغه ذات چي دغه آسمان يې پنځولی پدې توانادی چي دوی وروسته له مرګه راپاڅوي اوبيايې داسي تهديد وفرمايو ﴿ إِن نَّشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ ٱلْأَرْضَ أَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ﴾ که چېري اراده وفرمايونوځېري به کړوپه دوی ځمکه (او غرق به يې کړو لکه قارون غوندي) اويابه وغورځوو پردوی يوه ټوټه له آسمانه (لکه چي دځنګل په خاوندانو مو وغورځوله نودوی چېري تېښتېدلای شي؟ ابن جوزي وايې معناداچي دوی که هرچېرته وي زموږ ځمکه اوآسمان وربانديي راتاودي اوزه وربانديي قادريم که وغواړم په ځمکه به يې ننې باسم اوکه وغواړم له آسمانه به وربانديي تندر راوغورځوم (۲) ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ ﴾ ببشکه په دغه (ليدلود آثارو دقدرت دالله اود وحدانيت کي يې ) خامخادلائل دي لپاره دهربنده رجوع کونکي (الله ته او پندونه دي ، ابن کثيروايې مقصديې دادی هغه الله چي ددې اوچتو آسمانونوپه پيدا کولو قادر دی او هغه ذات چي ددې پراخو پلنوځمکو په پيدا ايښت توانادی هغه داجسامو په بيرته راپاڅولو اوژوندي کولوهم قادردی چي خاوري ايرې هډوکي يوځای اوراژوندي کړي (۳) ورپسې الله ﷻ دداؤد عليه السلام کيسه داسي کوي اوخپل سترفضل بيانوي ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ مِنَّا فَضْلًا ﴾ اوخامخاپه تحقيق موږ ورکړی وو داؤدته له جانبه خپله فضل (زيات بې اندازې) مفسرين کرام وايې چي دفضل معنا نبوت ، زبور اودغرونو اومرغانوتسخير، داوسپني نرم والی اودزغرو

(۱) البحرالمحيط ۷ / ۲۵۹
(۲) زادالمسير ۲/ ۴۳۵
(۳) ابن کثير المختصر ۳ / ۱۲۲

جوړول دي ﴿ يَـٰجِبَالُ أَوِّبِى مَعَهُۥ وَٱلطَّيْرَ ﴾ (ومو فرمايل غرونو ته چي اى غرونو راوګرزوئ (ښه) غږونه خپل له ده سره (دتسبيح په وخت کي اوله ده سره به تسبيح ويله) مرغانوهم؛ ابن عباس وايي چي کله به داؤدعليه السلام تسبيح ويله مرغانوبه هم ورسره زمزمه کوله اوچي کله به يې تلاوت کاوو څا رويوبه ورته غوږ نيولى وواوده ده تلاوت ته به يې اوښکي تويولې ځکه چي داؤد عليه السلام به ژړل (۱) ﴿ وَأَلَنَّا لَهُ ٱلْحَدِيدَ ﴾ اوپسته کړي وه موږ ده ته اوسپنه (لکه خيشته اوړه قتاده وايي چي الله پاک داسي ورته اوسپنه پسته کړي وه چي اورته نيول يې نه غوښتل اونه يې په څټک سندان وهله هغه ته به لکه موم اولامده اوړه غوندي وه ﴿ أَنِ ٱعْمَلْ سَـٰبِغَـٰتٍ ﴾ چي جوړوه ارتي اوږدې ځغري (چي انسانان په جنګونو کي له مرګه ژغوري مفسرين کرام وايي چي اوسپنه به يې په لاس کي واخيستله اوهغه به ورته موم غوندي شوه هرډول چي به يې تاووله دهغه خوښه وه اوزغره به يې په يوڅه وخت برخه دورځي کي جوړوله چي يوزر درهمه بيه به يې لرله اوخپل لګښت به يې ترې کاوو اوصدقه به يې ځني ورکوله (۲)

﴿ سَـٰبِغَـٰتٍ ﴾ دمحذوف موصوف لپاره صفت دى چي تقديريې داسي راځي (دروعًاسابغات) يعني اوږدې ارتي ځغري چي ګرد بدن پټوي اوڅه لازياتي هم په ځمکه ورسره کښېږي ﴿ وَقَدِّرْ فِى ٱلسَّرْدِ ﴾ اواندازه کوه په اوبدلو کي (چي کړۍ سره برابري وي) صاوي وايي معناداچي هره کړۍ بايد له بلي سره برابره وي داسي تنګه چي غشي ورڅخه وتلاى نشي اوداسي سپکه چي په آغوستونکي باندي درنه نه وي (۳) ﴿ وَٱعْمَلُوا۟ صَـٰلِحًا ﴾ اوعمل کوئ تاسي دنېکيو (اى دداؤد ﷺ اهله دخپل پلار په عزت اوجاه باندي تکيه مکوئ ﴿ إِنِّى بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ بېشکه زه چي يم پرهغوکارونوچي تاسي يې کوى ښه ليدونکى يم (په هغوبه جزاء درکړم. امام فخر رازي وايي چي: الله پاک داؤدعليه السلام ته اوسپنه داسي پسته کړه لکه موم اوشمع اودغه دالله قدرت ته آسانه ده اوسپنه په اورداسي ويلي کېږي لکه دليکلوسياهي نوڅوک عاقل به دالله له قدرته دغه مستبعداو ليري وګڼي؟ (۴) هو داؤدعليه السلام لومړنى څوک وو چي ځغري يې کړۍ کړۍ جوړي اوبدلې اوتردې پخوابه داوسپني درنې تختې خلګواستعمالولې لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَعَلَّمْنَـٰهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّنۢ بَأْسِكُمْ ﴾ (الانبياء ۸۰) وروسته بيا الله هغه نعمتونه يادوي چي دهغه په زوى حضرت سليمان يې پېرزو کړي ووچي نبوت، پاچهي او ستره مرتبه وه الله فرمايي: ﴿ وَلِسُلَيْمَـٰنَ ٱلرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ ﴾ (او(مسخرکړى مو وو) سليمان ته باد(سبائي دمنزل دهغه ديوې مياشتي اودبېګايي (منزل) دهغه ديوې مياشتي لاره وه) يعني سليمان ﷺ ته موبادهسي مسخرکړى ووچي دده په امربه چلېدوله سهاره ترماسپښينه مزل يې

(۱) زادالمسير ۶ / ۴۳۶
(۲) القرطبي ۱۴ / ۲۶۶
(۳) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ / ۲۹۴
(۴) التفسير الكبير ۲۵ / ۲۴۵

ديوې مياشتي دتګره مزل کونکي مسافه وه اوله ماسپښينه ترماښامه بياديوې مياشتي وه. مفسرين کرام وايي الله بادورته تابع کړی ووچي اوږدې مسافې به يې په څوساعتونوکي وهلې حضرت سليمان اولښکربه يې له يوه ښاره بل ته رسول دګردی ورځي منزل يې ددوو مياشتومسافه وه ﴿ وَأَسَلْنَا لَهُۥ عَيْنَ ٱلْقِطْرِ ﴾ اوبهولي موږ ده ده لپاره دمسوچينه ؛ مفسرين کرام وايي چي الله پاک حضرت سليمان ته مس بهولي وولکه چي پلارته يې اوسپنه پسته کړي وه اودغه ددوی معجزې وې ﴿ وَمِنَ ٱلْجِنِّ مَن يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِۦ ﴾ او(مسخرکړي موږ ده ته) له پېريانوهغه څوک چي کاربه يې کاوو په مخ دده کي په حکم درب دده (هغه کارچي بنيادمان به څني عاجزوو) ﴿ وَمَن يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا ﴾ اوهرچاچي به سرکښي (څنګ) وکړله دوی له حکمه زموږ (اودسليمان اطاعت به يې نه کاوو) ﴿ نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ ﴾ نووبه څکوو هغه ته (په آخرت کي) له عذابه داوره ، بيا الله دهغوی مکلفيتونه داسي بيانوي ﴿ يَعْمَلُونَ لَهُۥ مَا يَشَآءُ مِن مَّحَٰرِيبَ ﴾ جوړول دغو(پېريانو) دغه (سليمان) ته هرهغه شی چي ده غوښت له هسکو کلاوو ﴿ وَتَمَٰثِيلَ ﴾ اوتمثالونه (عجيبه دښيښې اومسو ، حسن رحمه الله وايي چي په هغه وخت کي تمثالونه ناروانه وواوزموږ په شريعت کي دسدذرائع لپاره ناروا اوحرام شول چي څوک يې پرته له الله عبادت ونکړي ﴿ وَجِفَانٍ كَٱلْجَوَابِ ﴾ اولوی لګنونه په شان دتالاب ابن عباس وايي (کالجواب) معنالکه حوضونه ﴿ وَقُدُورٍ رَّاسِيَٰتٍ ﴾ اولوی دېګونه (ځای په ځای) په نغريوپراته. ابن کثيروايي چي (قدور راسيات) معنادا چي غټ غټ دېګونه چي له ډېره لوی والي له ځايه خوځېدونکي نه وي ([1]).

﴿ ٱعْمَلُوٓا۟ ءَالَ دَاوُۥدَ شُكْرًا ﴾ ( عمل کوئ (دنېکي) ای دداؤد آله لپاره دشکر ) يعني موږ ورته وفرمايل چي ددا ؤدآله دالله په دغو نعمتونوشکروباسئ چي په داسي سترفضل يې ځانګړي کړي ياست اوداسي پراخه جاه اوجلال يې در کړی دی ﴿ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِىَ ٱلشَّكُورُ ﴾ اولږدي له بندګانوزما شکرايستونکي. ابن عطيه وايي چي پدې کي دالله په شکرکولو باندي تنبيه اوتحريض دی ([2]) وروسته الله تعالی دحضرت سليمان دمرګ پېښه داسي ښيي ﴿ فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ ٱلْمَوْتَ ﴾ کله چي حکم وکړ موږ پرسليمان دمرګ (اومرګ ورته راغی) ﴿ مَا دَلَّهُمْ عَلَىٰ مَوْتِهِۦٓ إِلَّا دَآبَّةُ ٱلْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُۥ ﴾ نوهېچاخبرکړی نه وودغه پېريان په مرګ ددغه (سليمان) مګردځمکي چينجي (وينو) هغه چي لرګي خوړي اودسليمان ﷺ لکړه يې وخوړه) ﴿ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ ٱلْجِنُّ أَن لَّوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ٱلْغَيْبَ ﴾ پس کله چي ولوېدو(سليمان ﷺ په ځمکه نومعلوم شوپېريانوته که چېري دوی پوهېدلای په (علم د ) غيب (لکه چي

---

([1]) مختصرابن کثير ۳ / ۱۲۴

([2]) القرطبي ...

گمان یې کاوو) ﴿مَا لَبِثُوا۟ فِى ٱلْعَذَابِ ٱلْمُهِينِ﴾ نونه به یې تېروله (دغه اوږده موده په شاقه اعمالواو) عذاب دمشقت سپکونکي کي. مفسرين کرام وايې چي انسانانوبه ويل چي پېريان په علم دغيب پوهېږي هغه چي په راتلونکي کي پېښېږي نوسليمان عليه السلام پخپل محراب کي په لمانځه ولاړاوپه لکړه يې تکيه کړي وه اوپه دغه حالت کي يې ساپوکړه ترېوه کاله پوري په دغه حالت پاتي شواوپېريانانو هغه ورسپارل شوي کارونه هغسي سرته رسول څوک يې په مړينه خبرنه وو آن تردې چي دځمکي چينجي (وينو) دده همساوخوړه اوسليمان عليه السلام راولوېدونودوی ته يې مرګ معلوم شو اوانسانانوچي پدې معتقدووپېريان په غيبو پوهېږي هم دغه عقيده بايلوده اوپدې پوه شول که چېري پېريانانوته غيب معلومېدی دادومره وخت به يې په دغوشاقه کارونوکي نه تېراوو چي دوی گمان کاوو حضرت سليمان ژوندی دی اوهغه په واقعه کي مړوو.

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- ددواړوخواوو تعريف دحصردافادې لپاره لکه ﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ اومعنايې داچي دکامل حمد مستحق له الله پرته بل څوک نشته.

۲- دطباق صنعت ﴿يَلِجُ﴾ ترمينځ اود ﴿يَخْرُجُ﴾ ترمينځ.

۳- دمبالغې صيغې ﴿وَهُوَ ٱلرَّحِيمُ ٱلْغَفُورُ ... وَهُوَ ٱلْحَكِيمُ ٱلْخَبِيرُ ... وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِىَ ٱلشَّكُورُ﴾.

۴- دمقابلې صنعت په مينځ ﴿لِّيَجْزِىَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾ اود ﴿وَٱلَّذِينَ سَعَوْ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ﴾ څکه چي مغفرت اورزق کريم يې دمحسنينولپاره جزاء اوعذاب اورجز أليم يې دمجرمينولپاره سزاوټاکله.

۵- استفهام داستهزآء اومسخرولپاره لکه ﴿هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ﴾ اومقصدپه رسول الله باندي استهزآء ده اونوم يې يادنکړلکه چي هغه مجهول انسان وي دغه ددوی له لوري په تجهيل کي امعان دی.

۶- دتضخيم لپاره تنکيرلکه ﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ مِنَّا فَضْلًا﴾ يعني سترفضل اوداؤديې په صريح مفعول باندي څکه مقدم اوړومبی راووړ چي په ړومبي اهتمام اودمؤخر لپاره تشويق افاده کړي.

۷- ايجاز بالحذف لکه ﴿غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ﴾ يعني سبايې تگ يې ديوې مياشتي واټن وو اودبېگاه تگ يې ديوې مياشتي مسافه وه.

۸- تشبيه چي فرمايې ﴿وَجِفَانٍ كَٱلْجَوَابِ﴾ چي دې ته مرسله مجمله تشبيه وايې څکه دتشبيه ادات اوتوری راغلی خود شبه وجه حذف شوی ده.

الله تعالی فرمايي:

﴿ لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ ءَايَةٌ جَنَّتَانِ عَن يَمِينٍ وَشِمَالٍ كُلُوا مِن رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوا لَهُ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ ﴿١٥﴾ فَأَعْرَضُوا فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ وَبَدَّلْنَاهُم بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ أُكُلٍ خَمْطٍ وَأَثْلٍ وَشَيْءٍ مِّن سِدْرٍ قَلِيلٍ ﴿١٦﴾ ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُم بِمَا كَفَرُوا وَهَلْ نُجَازِي إِلَّا الْكَفُورَ ﴿١٧﴾ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا قُرًى ظَاهِرَةً وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ سِيرُوا فِيهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا ءَامِنِينَ ﴿١٨﴾ فَقَالُوا رَبَّنَا بَاعِدْ بَيْنَ أَسْفَارِنَا وَظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ فَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ وَمَزَّقْنَاهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿١٩﴾ وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٠﴾ وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٢١﴾ قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴿٢٢﴾ وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ عَن قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٢٣﴾ ۞ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ قُلِ اللَّهُ وَإِنَّا أَوْ إِيَّاكُمْ لَعَلَىٰ هُدًى أَوْ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٢٤﴾ قُل لَّا تُسْأَلُونَ عَمَّا أَجْرَمْنَا وَلَا نُسْأَلُ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٢٥﴾ قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ ﴿٢٦﴾ قُلْ أَرُونِيَ الَّذِينَ أَلْحَقْتُم بِهِ شُرَكَاءَ كَلَّا بَلْ هُوَ اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢٧﴾ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٨﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٢٩﴾ قُل لَّكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ لَّا تَسْتَأْخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ ﴿٣٠﴾ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَلَا بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ الْقَوْلَ يَقُولُ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لَوْلَا أَنتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ ﴿٣١﴾ قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا أَنَحْنُ صَدَدْنَاكُمْ عَنِ الْهُدَىٰ بَعْدَ إِذْ جَاءَكُم بَلْ كُنتُم مُّجْرِمِينَ ﴿٣٢﴾ وَقَالَ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ إِذْ تَأْمُرُونَنَا أَن نَّكْفُرَ بِاللَّهِ وَنَجْعَلَ لَهُ أَندَادًا وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ وَجَعَلْنَا الْأَغْلَالَ فِي أَعْنَاقِ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٣٣﴾ ﴾ سبأ: ١٥ ـ ٣٣

## مناسبت:

کله چې الله تعالی د شکر کونکو حال د حضرت داؤد او سلیمان علیهما السلام دیادولو په ترځ کې بیان کړ وروسته یې دهغه چا یادونه راوړه چې ناشکره او د نعمت کفران کونکي وو او د سبأ د خلګو کیسه یې د قریشو لپاره د پند په توګه ذکر کړه ترڅو د وی لپاره تحذیر او تنبیه وي چې څوک د الله د نعمتونو شکرنه

اداکوي داسي به د مصيبتونو او کړاوونو ورته رامخه وي په پای کي بې د مکې کفاروته دالله نعمتونه ور یادکړل ترڅو دالله عبادت وکړي اوشکربې پرځای کړي.

لغتونه:

(سبأ) دعربويوه قبيله چي په يمن کي اوسېدله اودخپل نيکه په نامه چي (سبأ بن شيجب بن قحطان) نومېدو يادېږي (العرم) بند ، نحاس وايې هغه باران چي ددوغرونو په مينځ کي يوځای غونه اوپه وړاندي بې حاجز وي (عرم) بلل کېږي (١) (خمط) بې خونده ، تريخ . زجاج وايې هروابنه چي له تريخوالي څخه نه خوړل کېږي (خمط) دی اومبردوايې هره ګياه چي بدخونده وي (خمط) دی اوشيدې چي ترشي شي هم (خمط) بلل کېږي (أثل) هغه ونه چي مېوه نلري فراء وايې چي دغه له (طرفاء) وني سره ورته دی (خوطرفاء) غټه اولوړه ده اوله هغې څخه درسول الله صلی الله علیه وسلم دمحراب منبرجوړ شوی دی مفردېې (أثلة) راځي (سدر) فراء وايې چي دغه (سرو) ده اوأزهري وايې سدردوه ډوله دی يو يې هغه چي دهيخ ښمرنه وي نه يې له پاڼو څخه دمينځلو لپاره کاراخيستل کېږي اونه يې هم مېوه دخوړلو وي اوبله هغه ده چي په اوبو راشنه کېږي مېوه يې دخوړلو وړ اوپاڼي يې دپرې مينځلو لپاره په کارېږي (٢) (ظهير) مرستندوی (الفتاح) قاضي اوحاکم ته وايې.

تفسير:

﴿لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ آيَةٌ﴾ (خامخاپه تحقيق وو خلګو دسباته په ځای دهستوګني ددوی کي يوه نښه) لام دقسم لپاره توطئه دی يعني په الله قسم چي دسبأقوم ته ددوی په هستوګنځي يمن کي دالله په قدرت يوه لويه نښه دلالت کونکي ورکول شوي وه چي الله به نيکو کارته دنېکي اوبد کردارته دبدي سزا ورکوي څکه کله چي دسبأ ټبردالله دنعمتونو کفران وکړ نوالله يې پاچهي ورانه او يووالی يې تار په تار کړ اودهغو لپاره چي پند اخلي دپند اوعبرت نښه يې وګرزول الله دهغوی نعمت داسي ستايې ،

﴿جَنَّتَانِ عَن يَمِينٍ وَشِمَالٍ﴾ دوه باغونه دي له ښي اوکيڼ (طرف دمېنوددوی چي په مېوو پُراومعمور دي، قتاده وايې چي ددوی باغونه په ونو اومېوو ډک ووچي خلګ به يې په مېوو کي خوښ اوخوشحاله ووښځه به چي تر ونو لاندي تېرېدله اوپه سربه يې ټوکری،لګن ، ياتال ايښی وو بې له دې چي مېوې راوشکوي تال به يې ډک شو څکه چي هغه به پخې اوډېري وې (٣) بيضاوي وايې چي يوازي دوه باغونه نه بلکه دباغونو دوه سلسلي ټولګی وې يوه ټولګه دباغونو دښار له ښي اړخه اوبله له کيڼ اړخه اوځکه بې هري يوې ته باغ ووايو چي باغونه يې سره تت اونژدې وو داسي ايسېدل ته به واېرله ټولګی يوباغ دی (٤) ﴿كُلُوا مِن رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوا لَهُ﴾ (اوومو ويل دوی ته دانبياوو په ژبه ) خورئ تاسي له رزق

(١) القرطبي ١٤/٢٨٦ - په معجم الوسيط کي زبردست سېلاب ته وايي.
(٢) البحرالمحيط ٢٥٦
(٣) القرطبي ١٤/٢٨٦
(٤) حاشيه شيخ زاده على البيضاوي ٣/ ٨٥ - الكشاف ٣/ ٤٥٤.

روزي درب ستاسي اوشکروباسئ دغه (الله) ته (په دي نعمتونو باندي) ﴿ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ ﴾ (ا ا) ښاردی ډیرپاکیزه اودغه (رب دتاسي) رب دی ډیربښونکی ) یعني دغه ستاسو ښارچي پکي اوسی ډیرپاکیزه، حاصل خیزه ځمکه، ښکلي هوا، زیاتي میوې لرونکي باغونه اوهغه پروردګار چي تاسونه یې دغه روزي درکړي اودشکرامریې درته کړی دهغه چالپاره چي شاکروي ډیربښونکی دی ﴿ فَأَعْرَضُوا فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ ﴾ پس وګرزېدل (له شکره اوله دعوته دانبیاوو أهل د سبا ) پس ومولېږو پردوی سېلاب دیوزورور خوړ (هغه چي مخه یې هیڅ نه نیول کېده اوددوی کورونه اوباغونه یې لاندي کړل طبري وایې کله چي دوی دانبیاوو له تصدیق څخه مخ واړاوو نودغه بندمات شو کوم چي له دوی څخه یې دسېلابونو مخه نیوله اوبیایې اوبه ددوی په ځمکو اوباغونو ور وختلي اوهغه یې له مینځه یوړل (۱) ﴿ وَبَدَّلْنَاهُم بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَىْ أُكُلٍ خَمْطٍ ﴾ (اوبدل ورکړ موږ دوی ته په ځای ددوو باغونوددوی کي دوه باغونه نور خاوندان دمېوو بې مزې ترخو ) یعني ددوی دغودوونښایسته باغونو په بدل کي مودوه وچ اودترخو مېوو دوه باغونه ورکړل ﴿ وَأَثْلٍ وَشَيْءٍ مِّن سِدْرٍ قَلِيلٍ ﴾ اوښوره ګز ( هغه ونه چي له مېوې څخه یې ګټه نه اخیستل کېږي ) اویوه اندازه له بېرو هم خوډېرلږ. امام رازي وایې: الله ﷻ سېلاب وربانديراووست چي مالونه یې ډوب کړل اووداني یې ور ورانې کړې هغه وایې (خمط) هغې وني ته وایې چي اغزي لري اومېوه یې ترخه وي او(اثل) د (طرفاء) وني له ډولونو څخه یوډول دی هغه له کله کله پرته هروخت مېوه نلري اومېوه یې بېخونده او بې مزې ده (سدر) بېروته وایې اوچي په (قلیل) یې وستایوڅکه هغه یې ترګردوونو ښایسته او خوندوره ورته پاته وه اوالله تعالی دوراني ډول په آیت شریف کي انخور کړی هغه داچي کوم باغونه چي هلته خلګ ځني ولېږدي نوبیا ځنګل ترې جوړشي ځیني وني په ځینوراتاوشي مېوه لرونکي وني له مینځه لاړي شي اوبې ګټي ګیاوي پکي رازرغونې شي (۲) مفسرین کرام وایې چي دغه بدل ته یې هم باغونه وویل پدې کي دتهکم یولړشته څکه هغه ځایونه چي پکي ښوره ګز او ې خونده نبات یاڅه بېري وي باغونه نشي بلل کېدای خودغه تعبیردمشاکلت په هکله راغلی دی ﴿ ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُم بِمَا كَفَرُوا ﴾ دغه سخت (عذاب) جزاء ورکړه موږ دوی ته په سبب دهغې چي کافر ن شوي وو ﴿ وَهَلْ نُجَازِي إِلَّا الْكَفُورَ ﴾ اوآیاموږجزاء ورکوو؟(بلکه نه یې ورکوو) مګرناشکره ته (چي به کفر کي وروستي پړاوته رسېدلي وي. مجاهدوایې چي الله مؤمن ته هسي سزانه ورکوي بلکه ګناهونه یې رژوی (محو) کوي اوکافرته په هره بدي سزاء ورکول کېږي (۳)
﴿ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا قُرًى ظَاهِرَةً ﴾ او ګرزولي موږ په مینځ ددوی (أهل دسبا ) اوپه مینځ دهغو کلیوښارونوکي چي موږ پکي برکت اچولی وو کلي ښارونه ښکاره. دغه دنعمتونو

---

(۱) نفس المرجع
(۲) القرطبي ۱۴/ ۲۸۸
(۳) الکشاف ۳/ ۴۵۵

دبشپړتیایوه بله بېلګه ده چې موږ ددوی دکلیو او ښارونو او د شام دکلیو هغه چې موږ پکې برکت اچولی وو ترمینځ پرله پسې کلي کلي ګرځولي وو چې ښکاري به یې له څینو نورو څخه لیدل کېدل څکه چې سره نژدې وو او مسافروته به له ورایه ښکارېدل ﴿وَقَدَّرْنَا فِيهَا ٱلسَّيْرَ﴾ او په اندازه کړي وو موږ په هغو کې منازل (دتګ راتګ) له یوه کلي تربله) ﴿سِيرُوا۟ فِيهَا لَيَالِىَ وَأَيَّامًا ءَامِنِينَ﴾ (وموفرمایل چې) ځئ راځئ په دغه کلیو (ښارونو) کې دشپې اوورځې ښېغمه په آمان (له هره آفته) زمخشري وايي چې دسهار مسافربه دغرمې خوب په دابل کلي کې کاوو اودماښام مسافربه شپه هغه بل کلي ته رسوله ترڅو به شام ته ورسېدل نه به له لوږې تندي او نه به له دښمنه وېرېدل نه به یې دلاري توښې اخیستلو ته اړتیا وه کرار ښېغمه به تلل راتلل هیڅ اندېښنه به یې نه وه[1] ﴿فَقَالُوا۟ رَبَّنَا بَٰعِدْ بَيْنَ أَسْفَارِنَا﴾ (پس دوی وویل: ای زموږ ربه لېري والی پیدا کړه زموږ دمنازلو (سفرونو) په مینځ کې) یعني دوی دالله دنعمتونو مقابله په کفران سره وکړه اوله نعمت، سوکالي او عافیته ماړه شول نوبې له الله څخه دستوماني غوښتنه وکړه چې کلي سره لیري کړې او بیا شودوی په دښتو مېروکي سفرونه کوي نوالله یې غوښتنه ومنله اوکلي یې ګردکنډوالې اوبېدیاوي شوې ﴿وَظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ﴾ اوظلم یې وکړ په ځانونو خپلو (چې دنعمتونوکفران یې وکړ اوراحت یې په زحمت بدل کړ) ﴿فَجَعَلْنَٰهُمْ أَحَادِيثَ﴾ پس وګرځول موږ دغه (أهل سبا) کېسې افسانې (چې له دوی وروسته به یې خلک یوبل ته کوي) ﴿وَمَزَّقْنَٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾ اوتارپه تارموکړل دوی په پوره تارپه تارکېدلو (په ښارونوکې) ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ﴾ بېشکه په دغه (تارپه تارکېدلو ددوی کې) خامخالوی دلائل دي لپاره دهرښه صبرکونکي دېرشکرکونکي، مقصدله کیسې دسبأ څخه دخلکوله ناشکري څخه وېرونه ده ترڅوپردوی هسې عذاب رانشي کوم چې دسبأپه خلکوراغلی ووڅکه متل ګرځېدلی چې وايي (هسې له ګوتووتل لکه دسبأ نعمتونه) اوبیاالله تعالی دمشرکانو د ګمراهي سبب داسې یادوي: ﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُۥ﴾ اوخامخاپه تحقیق رښتیاوموند پردوی ابلیس ګمان خپل (چې ویل یې زه کولای شم دوی دباطلو شیانوپه ښایسته څرګندولو تېرباسم (وغولوم) اوسوګندیې اخیستی وو چې: ﴿وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ (الحجر۳۹) نوهغه ګمان یې رښتیاشو. مجاهدوايي معناداچې ګمان یې وکړی اوهغه همدغسې شو لکه چې ده ګمان کړی وو نوګمان یې رښتیاشو[2]) ﴿فَٱتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ پس متابعت وکړ دوی ټولو ددغه (ابلیس) مګرنه یوې ډلې (چې هغه فرقه ده) دمؤمنانو. قرطبي وايي: معناداچې څوک مؤمنان خوندي ترې پاتې نشول مګریوه ډله. اوله ابن عباس څخه روایت راځي چې دغه ټول مؤمنان دي نوبیابه (من) دتبیین لپاره راځي دتبعیض لپاره به نه وي، داچې ابلیس دخپل ګمان په رښتیاکېدلو باور درلود هغه څوپه غیبوعالم نه ووهوکله چې ده دآدم ﷺ په هکله خپل فرېب بریالی وموندنوبې ګمان وکړ چې

[1] الکشاف ٣ / ٤٥٥

[2] الطبري ٢٢ / ٦٠

داولادې په هکله يې هم تدبيراو چل ول ببخي پر ځای دی او همداسي يې ګمان رښتونی شو(١)﴿ وَمَا كَانَ لَهُۥ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَٰنٍ ﴾ اونه وودغه (ابليس ته) پردوی تسلط (په وسوسه اوښويولو) ﴿ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ بِٱلْأٓخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِى شَكٍّ ﴾ مګر خاص لپاره ددې چې معلوم کړو (په علم الشهود لپاره دبندګانو) همغه څوک چې ايمان په آخرت راوړي له هغه چا څخه چې هغه له دې آخرت څخه په شک کې وي (اوبياهريوه ته پخپل عمل جزا ور کړو). قرطبي وايې معناداچې ابليس په زوره کافران کړي نه دي بلکه يوازي بلنه اوتزئين يې ورته کړی(٢) حسن بصري رحمه الله وايې چې په الله سوګند دی که به شيطان څوک په همساوهلی وي اويابه يې په زوره څه ور باندې تپلي وي خويوازي په تېرا يستلو اوآرزوګانو يې څوک غولولی اوهغوی هم منلي دي (٣)﴿ وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ حَفِيظٌ ﴾اورب ستاپه هرڅېز باندې ښه ساتونکی دی ، هيڅ کره وره د بندګانوور څخه پټ نه دي دهغوی نيتونه اوحالات ورته معلوم دي صاوي وايې چې شيطان داغواء سبب دی اوخالق يې نه دی نويوڅوک چې الله غواړي له شيطانه يې وژغوري شيطان ځني منع کوي او چاته چې دالله خوښه شي چې له لارې ووزي شيطان ورباندې مسلط کړي اوټول دالله فعل دی (٤) اودغه دشيطان په مسلط کولو کي دالله ﷻ حکمت په انسانانوباندي ابتلاء اوازمويښت دی ترڅوناولي له پاکيزه څخه بېل کړي اومقصد په (لنعلم) سره داچې موږ خلګوته خپل علم وروښيو څکه الله خوپه هغو ګردوشيانوچې پخواشوي اويا کېږي عالم دی ﴿ قُلِ ٱدْعُوا۟ ٱلَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) چې وبولئ تاسي هغه معبودان چې ګمان به کاوو تاسي (پردوی دخدايانو) غيرله الله ، ويې بولئ چې ګټه درته ورسوي اوتاوان درڅخه دفع کړي . ابوحيان وايې چې دخدايانوپه بلنه امر کول دتعجيزلپاره دی اوداچې پردوی دليل قائم شي(٥)﴿ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ﴾ چې نلري دوی اختيار په اندازه ديوې ذرې (دخيررسولويا تاوان دفع کولو) ﴿ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَلَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (نه) په آسمانونو کي اونه په ځمکه کي (بلکه په ټولو کائناتو کي) په يوڅېزهم قادرنه دي ﴿ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ ﴾ اونشته (دغومعبودانوددوی ته) په دغو (علوياتو اوسفلياتو)کي څه شراکت(له الله سره په پيدا ايښت ، ملکيت اوتصرف کي ) ﴿ وَمَا لَهُۥ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴾ اونشته دغه (الله) ته له دوی نه هيڅ مددګار(چې دځمکي آسمان په کارونو کي ورسره تدبيرو کړي بلکه يوازي الله تعالی دی چې پيدا ايښت اونېستي يې ګرده په واک کي ده . کله چې الله له دغوبتانو معبودانو څخه دخلقيت او

---

(١) القرطبي ١٤/٢٩٢
٢ القرطبي ١٤/٢٩٢
(٣) مختصرابن کثير ٣/١٢٨
(٤) حاشيه الصاوي ٣/٢٩٨
(٥) البحرالمحيط ٧/٢٧٥

ملکیت درلودل نفی کړل وروسته یې شفاعت هم نفی کړ او ویې فرمایل: ﴿ وَلَا تَنفَعُ ٱلشَّفَٰعَةُ عِندَهُۥٓ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُۥ ﴾ او نه رسوي هیڅ نفع شفاعت سپارښت په نزد دالله کي (نه نبی او نه پاچا) مګر (شفاعت) دهغه چاچي اذن ورکړی (الله) هغه ته ، نودوی بیاڅرنګه ګمان کوي چي ددوی خدایان به یې شفاعت وکړي؟ ابن کثیر وایې چي: دالله له جلال کبریا وعظمت سره هیڅوک ددې زړه ورتیانشي کولای چي دیوچا سپارښت وکړي مګرهلته یې کوي چي الله ﷻ ورته اجازه وکړي لکه چي الله تعالی فرمایې:

﴿مَن ذَا ٱلَّذِى يَشْفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ﴾ (البقره ۲۵۵) اوداقول دالله تعالی: ﴿ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ٱرْتَضَىٰ ﴾

(الانبیاء ۲۸) اوڅرنګه به شفاعت درسول الله ﷺ دهغه دسترمقام دښووني لپاره ورکول کیږي هغه ترګردوسترشفاعت کونکي دی او دا به هغه ځای وي چي کله مقام محمودورکول شي اود ټولو خلګو په باب سپارښتنه اوشفاعت وکړي (۱) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا فُزِّعَ عَن قُلُوبِهِمْ ﴾ ترهغه پوري کله چي پورته کړی شي ویره له زړونو ددوی (چي انبیاء او پرښتې دي) ﴿ قَالُوا۟ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ ۖ قَالُوا۟ ٱلْحَقَّ ﴾ (وایې (ځیني ددوی ځینونوروته) چي څه حکم و فرمایل رب ستاسي؟ نووایې دوی چي حق یې وفرمایل) یعني دوی پخپلو مینځونوکي وایې چي الله ﷻ دشفاعت په هکله څه وفرمایل نوهغوی ځواب ورکړي چي دمؤمنانو دشفاعت لپاره یې اجازت ورکړ. قرطبي وایې چي: الله به انبیاوو اوپرښتوته دشفاعت اجازه ورکړي اودوی به له الله څخه سخت په ویره اوترهه کي وي چي هسي نه له دوی څخه کومه کوتاهي وشي خوکله چي دغه رعب اودهشت ورڅخه ولاړشي نوبه له پورتنیو پرښتوڅخه وپوښتي چي ستاسي رب څه وفرمایل؟ څه حکم یې صادر کړ هغوی به ووایې حق یې وفرمایل یعني دمؤمنانو لپاره د شفاعت اجازه یې ورکړه (۲) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَلِىُّ ٱلْكَبِيرُ ﴾ اوهمدغه (الله) دېرلوی اودېرپورته دی. ابوالسعود وایې چي دغه دشفاعتګرودوینا بشپړېدل دي چي دوی دالله جل شانه په سترعظمت اعتراف کوي چي هیڅوک به هیڅ ویناهم دالله له اجازې پرته نشي کولای (۳) وروسته الله دمشرکانو توبیخ پدې چي غیرله خالق اورازق الله څخه دبل چاعبادت کوي داسي فرمایې ﴿ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ ﴾ ووایه (دوی ته ای محمده) چي څوک روزي درکوي تاسي ته له (جانبه د) آسمانونو او ځمکي؛ په باران اوربېدلو اوله ځمکي دمېوودانو په رازرغونولو ﴿ قُلِ ٱللَّهُ ۖ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته) الله (مو رازق دی نه ستاسي معبودان. ابن الجوزي وایې اوداچي رسول الله ﷺ ته یې امر وفرمایوچي له کفارو څخه دغه پوښتنه وکړه ترڅوپردوی باندي احتجاج وشي چي: هغه څوک دعبادت وړاومستحق دی چي روزی رسان وي اودی هم له الله بغیر بل روزي رسان نه مني څکه نوځواب هسي وشو چي (الله) څکه هغوی پرته له دغي وینا بل

---

(۱) مختصرابن کثیر ۳/ ۱۲۹

(۲) القرطبي ۱۴/ ۲۹۵

(۳) ابوالسعود ۴/ ۲۳۱

خواب هدونلري (¹)﴿ وَإِنَّآ أَوْ إِيَّاكُمْ لَعَلَىٰ هُدًى أَوْ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴾ اوبېشکه موږ(چي مؤمنان يو) اوتاسي(چي منکرآن ياست) خامخاپرسمي صافي لاري کي يو؟ ياپه ګمراهي ښکاره کي يو؟(اوروسته به معلومېږي) اودغه د انصاف هغه وروستی سرحددی چي څوک يې له مقابل لوري سره کوي؛ ابوحيان وايې چي دغه کلام يې شکمن ووايوسره له دې چي څوک الله مني هغه يقيناپه سمه لاره دی اوڅوک چي دډبرو عبادت کوي هغه بې لاري اوګمراه دی ددې لپاره چي په دعوی کي تلطف اونرمښت وښيي اوددوی ګمراهي ته تعريض وکړي اودغه ترتصريح کولو لازيات دی اوهمداسي عرب وايې چي (أخزی الله الکاذب منی ومنک) يعني زمااوستادروغجن دی الله وشرموي سره له دې چي هغه ښه پوهېږي مقابل لوری دروغجن دی ﴿ قُل لَّا تُسْـَٔلُونَ عَمَّآ أَجْرَمْنَا وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ ووايه دوی ته ای محمده!) وبه نه پوښتېدلی شی تاسي له هغوبديو چي موږکړي وي (همداسي) نه به پوښتېدلی کېږو موږله هغو(بديو ) چي تاسي يې کوی (بلکه هرڅوک به پخپله ګناه سزامومي اودغه په مجادله کي نورزيات پستوالی اوتلطف دی. زمخشري وايې چي دغه ترهغه رومبني لازيات عدل اوانصاف دی څکه چي ګناه د(اجرام) يې څانته ثابت کړه او(عمل) يې هغوی ته (²)﴿ قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِٱلْحَقِّ ﴾ ووايه (ای محمده!) چي جمع به وکړي په مينځ زموږکي رب زموږ بيا فيصله به وکړي زموږ په مينځ کي پرحقه (په ورځ دقيامت کي) ﴿ وَهُوَ ٱلْفَتَّاحُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ اوهم دی دی ښه فيصله کونکي ښه عالم (چي په هيڅاظلم نکوي اودخلګوټول حال احوال ورته معلو م دی دحق پلويان به جنت ته اودباطل به دوزخ ته واچوي) ﴿ قُلْ أَرُونِيَ ٱلَّذِينَ أَلْحَقْتُم بِهِۦ شُرَكَآءَ ﴾ ووايه (دوی ته ای محمده!) راوښيئ ماته هغه (معبودان) چي پيوسته کړي دي تاسي له دغه (الله) سره شريکان؟ (په عبادت کي چي زه وګورم په څه صفت تاسودعبادت مستحق ګڼلي سره له دې چي هيڅ ورته والی نلري. ابوالسعودوايې چي په دغه کي زيات تبکيت دی چي وربانديې حجت راوړل شي (³)﴿ كَلَّاۚ بَلْ هُوَ ٱللَّهُ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ (نه دی داسي(هيڅوک له الله سره (شريک ورنه دی)بلکه هم دغه الله دی ښه زورور قوي(په انفاذ دامر)ښه حکمت والا(په تدبيردچارو دخلګو) يعني داسي نه دی لکه چي تاسو ګمان کوی له الله سره شريکان نيسی بلکه الله واحدالاحد دی هيڅوک ورسره په الوهيت کي شريک نشته ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ﴾ اونه يې لېږلی موږته مګر په دې حال کي چي جامع يې خلګوته زېری ورکونکی (دجنت مؤمنانوته) او وېرونکی (له دوزخ کافرانوته) يې (يعني يوازي عربوته مو استولی نه يې) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ولېکن اکثرخلګ (له کفارو ) نه پوهېږي پدې باندي او خپل

---

(¹)تفسيرابن الجوزي

(²) الکشاف۳-۴۵۵

(³) تفسيرابوالسعود

جهل اونا پوهي يې دي ته اړباسي چي ګمراهي او ضلالت غوره کړي ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ او وايي (کفار په ملنډو او په استهزآء ) مؤمنانو او پيغمبر ته چي) کله به وي دغه وعده (دعذاب چي موږ پرې ويروی) که چيري تاسي رښتني ياست (نو رايې ولئ) ﴿ قُل لَّكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ لَّا تَسْتَأْخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ ﴾ ووايه (اى محمده دوی ته) چي (مقرره) دی تاسي ته وعده ديوې ورځي (په نازلېدلو د عذاب) چي نه به وروستی کېږي له هغې ورځي دڅاپه غوښتنه ) او نه به تاسي تری ړومبی کېږی (د څاپه وړاندېز باندي )نو دعذاب په راتلو کي تلواره مکوئ ، وروسته الله د دوی دعناد او تکذيب هغه وروستی پړاو داسي بيانوي ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَلَا بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ او وايي هغه کسان چي کافران شوي دي له سره به ايمان رانه وړو په دغه قرآن او نه په هغو کتابونو چي تر دې پخوا راغلي (او په بعث او نشور باندي دلالت کوي) ﴿ وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ او که ووينې ته (اى محمده په آخرت کي) کله چي دغه ظالمان ودرول شي په نزد درب د دوی (دحساب لپاره )﴿ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ الْقَوْلَ ﴾ چي اړوي به ځيني د دوی له ځينو نورو سره خبري (او ملامتي به سره تبادله کوي د(لو) جواب محذوف دی او هغه داچي خورا ستر هيبت ناک حالت به وي ﴿ يَقُولُ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لَوْلَا أَنتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ ﴾ وبه وايې هغه (تابعان) چي ضعيف ګڼلی شوي وو هغو (متبوعانو) ته چي تکبر به يې کاوو چي که نه وای تاسي (منع کونکي موږ لره له ايمانه ) نو خامخا موږ به مؤمنان وو ﴿ قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا أَنَحْنُ صَدَدْنَاكُمْ عَنِ الْهُدَىٰ بَعْدَ إِذْ جَاءَكُم ﴾ وبه وايي هغه (متبوعان) چي تکبر به يې کاوو دپاره دهغو کسانو چي عاجزان شوي وو آيا موږ منع کړي وی تاسي له سمي لاري پس له هغه چي راغلی وو تاسي ته(هدايت؟)دغسي نه ده)﴿ بَلْ كُنتُم مُّجْرِمِينَ ﴾ بلکه تاسي پخپله مجرمان (کافران) وی﴿ وَقَالَ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ﴾ او وبه وايي هغه کسان چي عاجزان ګڼلی شوي وو هغو (رئيسانو ته) چي تکبر به يې کاوو بلکه دافرېب (ستاسي وو ) دشپې او دورځي (چي موږ مو له ايمانه راګرزولو) ﴿ إِذْ تَأْمُرُونَنَا أَن نَّكْفُرَ بِاللَّهِ وَنَجْعَلَ لَهُ أَندَادًا ﴾ کله چي تاسي به موږ ته امر کاوو (هر وخت داسي) چي موږ په الله کافران شو او پيدا کړو دغه (الله) ته شريکان (که تاسو موږ ته دغه لاره نه ښايسته کړي نه وای موږ به هم کافران شوي نه وو)﴿ وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ ﴾ او پټه به کړي دغه (تابعان) او متبوعان يو له بله) خپله پښېماني کله چي عذاب ووينې (چي ولي يې ايمان نه راووړ ؟ او دغه پټول به يې له دې وېري وي هسي نه چي څوک پېغور ورکړي) ﴿ وَجَعَلْنَا الْأَغْلَالَ فِي أَعْنَاقِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ او وبه ګرزوو ځنځيرونه (د اور) په غاړو د هغو کسانو کي چي کافران شوي دي (زيات داور په

عذاب باندي ) ﴿ هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ آيا دوى ته به جزاء وركوله شي؟ (بلكه نه وركول كېږي ) مګر خود همدغو (عملونو ) چي دوى (په دنياكي ) كول (چي كفروو).

بلاغت:

پدې آيتونوكي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادى.

۱ - دطباق صنعت چي د ﴿ يَمِينٍ ...وَشِمَالٍ ﴾ ترمينځ اود ﴿ بَشِيرًا ...وَنَذِيرًا ﴾ ترمينځ اود ﴿ تَسْتَـْٔخِرُونَ ... تَسْتَقْدِمُونَ ﴾ ترمينځ اود ﴿ ٱسْتُضْعِفُوا۟ ... ٱسْتَكْبَرُوا۟ ﴾ ترمينځ راغلي دغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل كېږي.

۲ - اشتقاقي جناس ﴿ وَقَدَّرْنَا فِيهَا ٱلسَّيْرَ سِيرُوا۟ ﴾ په كلام كي ځكه د ﴿ سِيرُوا۟ ﴾ كلمه له سير څخه مشتق ده.

۳ - دتعجيزصنعت چي دجماداتوبلنه ده كله چي فرمايې ﴿ قُلِ ٱدْعُوا۟ ٱلَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ دغه بتان معبودان خوبلنه نه اوري اودغه ته تعجيزوايي.

۴ - توبيخ اوتبكيت پدې كلام كي چي ﴿ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ راغلى دى.

۵ - دخبرحذف چي د كلام سياق وربانديې دلالت كوي لكه ﴿ قُلِ ٱللَّهُ ﴾ چي بشپړتقديريې داسي دى (قل الله الخالق الرازق للعباد ) اوپه دغه محذوف باندي دآيت شريف سياق دلالت كوي چي پخواتېرشوى دى.

۶ - دمبالغې په صيغوسره دمبالغې افاده لكه چي فرمايې: ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴾ ځكه چي فعال، فعيل، اوفعول دمبالغې صيغې اوهمداسي پدې كلام كي چي ﴿ وَهُوَ ٱلْفَتَّاحُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ هم دمبالغې صيغې شتون لري.

۷ - دتفزيع اوتهويل لپاره دځواب حذف كېدل لكه ﴿ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلظَّٰلِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ چي ځواب يې حذف شوي يعني زبردسته هيبتناكه منظربه ووينې.

۸ - عقلي مجازدالله تعالى پدې كلام كي چي ﴿ بَلْ مَكْرُ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ ﴾ دمكريې شپې ته پخپله نسبت وكړ خو مقصد دمشركانومكردى په شپه كي نودغه ته عقلي مجازويل كېږي.

۹ - استعاره كله چي فرمايې: ﴿ لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ وَلَا بِٱلَّذِى بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ قرآنكريم خولاسونه نلري بلكه دغه يې دهغه وړاندي والي لپاره استعاره كړي كوم چي پخواني كتابونه پكي نازل شوي دي

۱۰ - دفواصلو رعايت كول چي په اوربدلوباندي ځانګړى اغيزلري لكه: ﴿ وَهَلْ نُجَٰزِىٓ إِلَّا ٱلْكَفُورَ .... إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴾ دآيتونو ترپايه پورې

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا فِى قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَآ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿٣٤﴾ وَقَالُوا۟ نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَٰلًا وَأَوْلَٰدًا وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴿٣٥﴾ قُلْ إِنَّ رَبِّى يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٦﴾ وَمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُم بِٱلَّتِى تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَىٰٓ إِلَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ ٱلضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا۟ وَهُمْ فِى ٱلْغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ ﴿٣٧﴾ وَٱلَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ٱلْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴿٣٨﴾ قُلْ إِنَّ رَبِّى يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ وَيَقْدِرُ لَهُۥ ۚ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَىْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴿٣٩﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ أَهَٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ ﴿٤٠﴾ قَالُوا۟ سُبْحَٰنَكَ أَنتَ وَلِيُّنَا مِن دُونِهِم ۖ بَلْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ ٱلْجِنَّ ۖ أَكْثَرُهُم بِهِم مُّؤْمِنُونَ ﴿٤١﴾ فَٱلْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلنَّارِ ٱلَّتِى كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿٤٢﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ قَالُوا۟ مَا هَٰذَآ إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ أَن يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ ءَابَآؤُكُمْ وَقَالُوا۟ مَا هَٰذَآ إِلَّآ إِفْكٌ مُّفْتَرًى ۚ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٤٣﴾ وَمَآ ءَاتَيْنَٰهُم مِّن كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا ۖ وَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِن نَّذِيرٍ ﴿٤٤﴾ وَكَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُوا۟ مِعْشَارَ مَآ ءَاتَيْنَٰهُمْ فَكَذَّبُوا۟ رُسُلِى ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٥﴾ ۞ قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَٰحِدَةٍ ۖ أَن تَقُومُوا۟ لِلَّهِ مَثْنَىٰ وَفُرَٰدَىٰ ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا۟ ۚ مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍ ۚ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَىْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴿٤٦﴾ قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴿٤٧﴾ قُلْ إِنَّ رَبِّى يَقْذِفُ بِٱلْحَقِّ عَلَّٰمُ ٱلْغُيُوبِ ﴿٤٨﴾ قُلْ جَآءَ ٱلْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ ٱلْبَٰطِلُ وَمَا يُعِيدُ ﴿٤٩﴾ قُلْ إِن ضَلَلْتُ فَإِنَّمَآ أَضِلُّ عَلَىٰ نَفْسِى ۖ وَإِنِ ٱهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوحِىٓ إِلَىَّ رَبِّىٓ ۚ إِنَّهُۥ سَمِيعٌ قَرِيبٌ ﴿٥٠﴾ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ فَزِعُوا۟ فَلَا فَوْتَ وَأُخِذُوا۟ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٥١﴾ وَقَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِهِۦ وَأَنَّىٰ لَهُمُ ٱلتَّنَاوُشُ مِن مَّكَانٍۭ بَعِيدٍ ﴿٥٢﴾ وَقَدْ كَفَرُوا۟ بِهِۦ مِن قَبْلُ ۖ وَيَقْذِفُونَ بِٱلْغَيْبِ مِن مَّكَانٍۭ بَعِيدٍ ﴿٥٣﴾ وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِم مِّن قَبْلُ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ فِى شَكٍّ مُّرِيبٍۭ ﴿٥٤﴾ ﴾ سبا: ٣٤ - ٥٤

مناسبت:

كله چي الله تعالى د سبا د قوم كيسه بيان كړه چي د الله د نعمتونو يې ناشكري كوله نو نعمت په نقمت سوكالي په عذاب وربدل شوه دلته يې د مشركانو هغه وياړ او تكبرچي د دنيا په مال اولاد يې كاوو راوړ او دا چي دوى به د رسول الله ﷺ تكذيب كاوو د سورت پاى د نارو خلكو برخه ليك او آخره خاتمه نبيي چي د رسول الله ﷺ لپاره دادينه او د مشركانو لپاره ويرونه او تحذيرشي.

لغتونه:

(مترفوها) مترف ،سوكاله اسوده حاله په نعمتونو ،بډايي اوعزت اوجاه كي غوپه سړي ته وايي ، (يبسط) پراخوي (يقدر) كموي ، لرږوي ( زلفى) نزدېكت (افک) دروغ له ځانه جوړول (معشار) لسمه برخه. جوهري وايي ديوخيزمعشاردهغه لسمي وندي ته وايي (^۱) اوپدې كي دوه لغتونه دي (نكير) اصل يې نكيري دى (يا) يې دفواصلو دمراعات لپاره حذف شوي ده. زجاج وايي چي (نكير) دانكارپه معنا(جنة) دجيم په كسره سره جنون اولېونتوب ته وايي ( فوت) نجات اوتېښتي ته ويل كېږي (التناوش) رسېدل زمخشري وايي چي تناوش اوتناول دوه ورونه دي مګرتناوش يو نژدې ځېزته آسانه رسېدلوته ويل كېږي (^۲) اوپه څنګ كي مناوشه هغه ته وايي چي لاس په لستوني دوه ډلي سره ښكر په ښكرشي. ابن سكيت وايي وېل كېږي (ناوشه الرجل) چي كله يوڅوک بل تن ونيسي او له ځانه سره يې بوزي.

تفسير:

﴿ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا فِي قَرۡيَةٖ مِّن نَّذِيرٍ ﴾ اونه وولېږلى موږ په هيڅ كلي (اوښار) كي هيڅ وېرونكى (له عذابه) ﴿ إِلَّا قَالَ مُتۡرَفُوهَآ إِنَّا بِمَآ أُرۡسِلۡتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴾ مګر ويل به ماړه اومشرانو خلكو دهغه (كلي) چي بېشكه موږ په هغه څه چي تاسي ورباندي رالېږل شوي يې كافران (منكران) يو(هغه نه منو. قتاده وايي چي (مترفين) هغه دشرډكارونو رئيسان سرداران اوجبابرة دي دوى هغه څوک دي چي ترګردو ړومبى دانبياوو عليهم السلام تكذيب ته رادانګي اوپه آيت شريف كي مقصد درسول الله ﷺ تسليت اوډاډينه ده چي دقريشو دسردارانوپه تكذيب دي نه خفه كېږي ﴿ وَقَالُواْ نَحۡنُ أَكۡثَرُ أَمۡوَٰلٗا وَأَوۡلَٰدٗا ﴾ اوويل به دوى چي موږ ډېر يوله جهته دمالونو اود اولاد( له تاسو بېوزلو مؤمنانوڅخه) ﴿ وَمَا نَحۡنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴾ (اونه يوموږ په عذاب كړى شوي ) يعني الله موږته عذاب نه راكوي ځكه هغه له موږ څخه خوښ دى اوكه هغه راڅخه راضي نه واى نوبه يې زموږپه روزي كي پراخي نه اچوله دوى دنيوي ژوند په اخروي پرتله كوي اوداسي انګېري چي الله څرنګه دوى ته په دنياكي مال دولت اوزامن لوني وركړي په آخرت كي به هم عذاب نه وزكوي. ابوحيان وايي چي الله پاک پدې تصريح فرمايلي چي (مترفين) هغه لومړني كسان دي چي دانبياوو عليهم السلام تكذيب يې كړى دى ځكه دوى ددنياپه زرق اوبرق غولېدلي اوپكي ډوب دي زړونه يې تل پكي غوپه وي نه داسي لكه دبېوزلانو فقيرانو ځكه دهغوى زړونه دژوندانه له لذتونو څخه بېخي تش وي نوخيرښېګني ورته لاره مومي ځكه نود انبياوو عليهم السلام پيروان اكثره بېوزله ، مسكينان اوضعيفان وو(^۳) ﴿ قُلۡ إِنَّ رَبِّي يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُ ﴾ ووايه اى محمده دوى ته) چي

---

(^۱) القرطبي ۳۶۰/۱۴

(^۲) الكشاف ۴۲۸/۳

(^۳) البحر المحيط ۲۸۵/۷

بېشکه رب زما پراخوي رزق روزي د پاره د هرهغه چاچي اراده وفرمايي او تنگوي يې (په هرهغه چاچي اراده وفرمايي يعني دغه دروزي پراخوالی او تنگسيا دالله درضا او نارضايي دليل نه دی کله کله الله په عاصي او کافر باندي زيات نعمتونه ولوروي او کله کله په مسلمان مؤمن مطيع باندي دروزي تنگي راولي چي دهغه ازموينت يې اراده وي نو داسي گمان مکوئ چي دمال اولاد زياتوالی دالله دمحبت او يانېکمرغي دليل دی بلکه دغه دالهي مشيت او حکمت تابع دی ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليکن زياتره خلگ نه پوهېږي (په حقيقت باندي او داسي انگېري چي دېرمال او دولت او اولادونه دشرافت ، کرامت نښه دي خو هغه داستدراج لپاره وي(١) لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (الاعراف ۱۸۲) (القلم ۴۴) نوله دې کبله الله (جل شانه) دغه تاکيد فرمايي چي ﴿ وَمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُم بِٱلَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَىٰٓ ﴾ اونه دي مالونه ستاسي اونه اولادونه ستاسي داسي څېز چي نژدې کوي تاسي زموږ په نزد نژدې کول ، بلکه ايمان او صالح عمل الله ته سړی نژدې کوي طبري وايي چي د(زلفی) معنا(قربی) دی او دمال اولادزياتوالي ته اعتبار نشته چي الله وروسته فرمايي ﴿ إِلَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾ مگر(نژدې کوي له تاسي) هرهغه چي ايمان راوړي او کړي يې وي ښه عملونه ) يعني يوازي مؤمن نېک عمله چي خپل مالونه دالله په لار کي لگوي اولادته دنېکي او خير ښوونه کوي په صلاح يې روزي نو دغه سړي الله ته نژدې کېږي ﴿ فَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ ٱلضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا۟ ﴾ پس دغه (مؤمنان دي) شته دوی ته جزاء دو چنده په سبب دهغه (نېکيو) چي دوی کړي دي ) يعني ددوی حسنات دوچنده کېږي الله يوه نېکي په لس چنده بدله ورکوي آن تر اوو سوو چندو پوري ﴿ وَهُمْ فِى ٱلْغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ ﴾ او دوی به په لوړو مانيو د جنت کي ببغمه (مأمون) وي (چي هيڅ عذاب او سختي به ونه ويني ، کله چي دمؤمنو جنتيانو حال بيان شو ورپسې الله دکفارو حال احوال ښيي چي خلگوته ددواړو جزاگانو حال څرگند شي فرمايي : ﴿ وَٱلَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ ﴾ اوهغه کسان چي کوښښ کوي په (ابطال) دآيتونو زموږ کي پدې حال کي چي زموږ عاجز کونکي وي (په زعم خپل ) يعني هغه کسان چي کوښښ کوي خلگ دالله له لاري بند کړي او دپيغمبرانو او دالله له لارښوونو راوگرزوي دوی گمان کوي له موږ څخه به وتښتي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ٱلْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴾ دغه کسان (په عذاب (ددوزخ کي) حاضر کړي شوي به وي (په ورځ د قيامت کي) ﴿ قُلْ إِنَّ رَبِّى يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ وَيَقْدِرُ لَهُۥ ﴾ روايه (اې محمده دوی ته !) بېشکه رب زما پراخوي رزق روزي د پاره د هرهغه چاچي اراده وفرمايي او تاسو پر خپلو مالونو او روزي باندي غره کېږی مه ! په التسهيل کي وايي چي آيت يې ځکه مکرر راووړ چي مقصد مختلف دی لومړی ځل مقصد کافران وو او دلته بيا مؤمنان دي چي انفاق فی سبيل الله ته يې وهڅوي (٢)

---

(١) البيضاوي ۲/ ۱۳۶
(٢) التسهيل ۳/ ۱۵۲

نوفرمايي ﴿ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَىْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ ﴾ اوهرهغه څه چي تاسي يې لګوى (په لاره دالله کي) كه لږ وي كه ډېر پس هغه (الله) عوض دركوي دهغه (سمدستي ياوروسته) ﴿ وَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴾ اوهمدغه (الله) غوره دروزي وركونكودى ([1]) څکه چي وركړه يې بې حسابه ده مفسرين كرام وايي كله چي يې ايمان اوعمل صالح بيان كړ چي دغه څيزونه بنده الله ته وړاندي اونږدې كوي اوڅوچنده بدله الله وركوي نودايې پسې زياته كړه چي دآخرت نعمتونه ددنيادروزي له پراخ والي سره منافي نه دي بلكه كله كله الله صالحانو بندګانوته په دنياكي هم پراخه روزي وركړي اوپه آخرت كي هم بشپړه برخه اونېک ثوابونه لري اودغه دالهي وعدې مقتضا اوغوښتنه ده ([2]) ﴿ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ﴾ اويادكړه هغه ورځ چي الله به دوى ګرد ټول كړي (پخواني اوروستني مشركان دحساب اوجزاء لپاره ) ﴿ ثُمَّ يَقُولُ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ أَهَٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ ﴾ بيابه (الله) ملائكوته فرمايي آيادا هغه ګمراهان دي چي خاص تاسي ته به يې (بې له الله) په دنياكي) عبادت كاوو؟ دغه استفهام دترټني اوتوبيخ لپاره دى چي آياتاسي ورته امركړى وو؟ زمخشري وايې چي دغه خطاب ملائكوته اوتوبيخ مشركانوته دى اولكه هغه مشهور متل غوندي راغلى چي وايې (تاته وايم اوهمسايه دي واوري) اويالكه دغه الهي ارشادچي ﴿ ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ ٱتَّخِذُونِى وَأُمِّىَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ (المائده ۱۱۲ ) اوپه تحقيق سره الله ته خومعلوم دي ملائكي او عيسى عليه السلام خوله هغه نسبت څخه بېخي پاک اومنزه دي اوغرض له سوال اوځواب څخه دا دى چي د مشركانوټكول سخت اوشرمندګي يې په ډاګه شي ﴿ قَالُوا۟ سُبْحَٰنَكَ أَنتَ وَلِيُّنَا مِن دُونِهِم ﴾ وبه وايي پرښتې (په ځواب كي) پاكي ده تاته ته بې له دوى زموږ مولى يې (معبوديې ) موږتاته له دوى څخه پناه دروړو ) ﴿ بَلْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ ٱلْجِنَّ ﴾ بلكه وودوى چي عبادت به يې كاوود پېرياناتو (شيطانانو) څكه هغوى ووچي دوى ته يې دغيرالله عبادت ښايسته كړى وواودوى يې هم پلوي كړي وه ﴿ أَكْثَرُهُم بِهِم مُّؤْمِنُونَ ﴾ زياتره ددوى په دغو (پېريانانوشيطانانوباوركونكي او ) مؤمنان وو. طبري وايي معناداچي زياترو دغوخلګوبه دپېريانو منله اوداسي ګمان به يې كاوو چي پرښتې دالله لوڼي دي (العياذبالله ) ([3])

الله تعالى دمشركانود ګمانونوپه ترديدكي هسې فرمايي ﴿ فَٱلْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَلَا ضَرًّا ﴾ پس نن ورځ نه لرى اختيارځيني ستاسي (معبودان) دپاره د ځينونورو (عابدانو ) نه دنفعي اونه د ضرر؛ نه دشفاعت اونه دعذاب دفع كولو (نجات). ابوالسعود وايي چي دغه خطاب به د ګردوخلګوپه وړاندي ورته وكړل شي ترڅوددوى عجز اوقصور دخپلو عابدانوپه مخ كي په ډاګه شي اوداچي ددوى طمع بېخي څني وشكېږي اوداچي نسبت دګټه اوضررنه رسولويې ځينو دځينو نوروته وكړچي د

---

([1]) زادالمسير ۲۴۲/۶

([2]) حاشيةشيخ زاده على البيضاوي ۹۳/۳

([3]) الطبري ۶۹/۲۲

مقصود په هکله مبالغه وشي لکه چي د عابدانو لپاره د پرښتو ګته رسول او يا زيان دفع کول مستحيل دي همداسي دهغوی (عابدانو) له خوا پرښتو ته مستحيل دی(۱) ﴿ وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ او و به وايو موږ لپاره دهغو کافرانو (چي د غيرالله عبادت يې کاوو) ﴿ ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴾ وڅکئ تاسي عذاب دهغه اور چي وی تاسي ددې (اور) تکذيب به مو کاوو (په دنيا کي همدادی چي ورته راغلی وروسته الله د دوی يو بل ډول کفر او ګمراهي لوڅوي فرمايي: ﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَاتُنَا بَيِّنَاتٍ ﴾ او کله چي ولوستلی شي پر دوی آيتونه زموږ په دې حال کي چي واضح دي (معاني د هغو او څرګند دی اعجاز يې کله چي يې دوی تر اوتازه زموږ د پيغمبر محمد رسول الله له خولې اوري ﴿ قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ أَن يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ ءَابَاؤُكُمْ ﴾ او وايي دغه (منکران) چي نه دی دغه (محمد ) مګر يو داسي سړی دی چي اراده لري ددې چي منع کړي تاسي له هغه شي څخه چي وو ستاسي پلرونه عبادت به يې کاوو (دهغه شي چي بتان او شريکان دي) ﴿ وَقَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ مُّفْتَرًى ﴾ او وايي دغه (منکران) چي نه دی دغه (قرآن) مګر يو دروغ دی له خپله ځانه جوړ کړی (په الله پسې تړلی ) ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ او وايي دغه (منکران دمکې ) چي کافران شوي دي حق (قرآن، اسلام ،نبوت) ته چي کله دوی ته راغی نه دی دغه مګر خودی سحر کوونکی ښکاره. زمخشري وايي چي پدې کي ددوی د حال دتعجب مبالغه ده دوی يو ځل قاطعانه وويل چي دغه کوډي دي او بيا يې داهم په غوڅه توګه فيصله وکړه چي دغه ښکاره هم دی هر هوښيار سړی چي يې وويني د کوډو په نامه به يې يادوي او پدې کلام کي چي ﴿ لَمَّا جَاءَهُمْ ﴾ دی ددوی د سمدستي کفر پر بېړې ته اشاره ده (۲) يعني دوی پر ته له دې چي کوم سوچ او فکر وکړي فوراً يې هغه کوډي وګڼلې بيا الله ﷻ دانبيي چي دغه ددوی خبري او دغه ددوی له خوا د محمد عليه السلام تکذيب دا تکل او تخمين له مخي وو کومه يقيني بنه يې نلرله نو ځکه فرمايي:

﴿ وَمَا ءَاتَيْنَاهُم مِّن كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا ﴾ حال دا دی چي موږ نه دی ورکړی دوی ته له کتابونو (منزله وو څخه چي دوی هغه (کتابونه ) لولي) يعني موږ دمکې خلګو ته مخکي تر قرآن کوم بل کتاب نه وو نازل کړی چي دوی يې لولي ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِن نَّذِيرٍ ﴾ او نه وو لېږلی موږ دوی ته پخواله تا نه کوم وېرونکی (له عذابه دالله نو بياولي ستا تکذيب کوي. طبري وايي معنادا چي الله ﷻ په عربو باندي تر قرآن له مخه کوم بل کتاب نه وو نازل کړی او نه يې تر محمد رسول الله له مخه کوم بل نبي ورته رااستولی وو(۳) ﴿ وَكَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُوا مِعْشَارَ مَا ءَاتَيْنَاهُمْ ﴾ او تکذيب کړی وو (دانبياوو همداسي) هغو کسانو چي پخواله دوی وو حال دا چي نه دي رسېدلي (دغه دمکې کفار) لسمي

(۱) ابوالسعود ۴ /۲۳۴
(۲) الکشاف ۳ /۴۶۴
(۳) الطبري ۲۲ /۷۰ او دغه د قتاده روايت دی.

برخي دهغوته چي موږ هغوی ته ورکړي وو (له قوت ، مال اودعمر اوږدوالي څخه ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي د ﴿ مِعْشَارَ مَآ ءَاتَيْنَٰهُمْ ﴾ معناپه دنياكي قوت دی (١) ﴿ فَكَذَّبُواْ رُسُلِىۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴾ پس تكذيب وكړ (هغو پخوانيو) درسولانوزماپس څرنګه وو انكار زما (په عذابونولودوی) چي له بېخه مو وايستل اوهلاک موکړل ددوی زور اوقوت په شمرنه ورغی نو ددغو قريشوبه څه حال وي کله چي عذاب اوهلاکت ورته راشي؟ دغه ددوی لپاره تهديدی دی ﴿ قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَٰحِدَةٍۖ ﴾ ووايه (ای محمده منکرينوته) بېشکه هم داخبره ده چي پند درکوم تاسي ته په يوې خبري سره د (دهغې تفسيرې داسي وفرمايو ﴿ أَن تَقُومُواْ لِلَّهِ مَثْنَىٰ وَفُرَٰدَىٰ ﴾ چي ودرېږئ تاسي خاص الله ته دوه دوه اويو يو (يايوځای او يو يو) قرطبي وايي چي دغه درېدل دحق دغوښتلو لپاره پورته کېدل دي هغه درېدل مقصدنه دي م چي دناستي مقابل دي (٢) ﴿ ثُمَّ تَتَفَكَّرُواْۚ مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍۚ ﴾ (بيابنه فكر (او غور) وکړئ چي نشته په دغه ملګري ستاسي کي هيڅ لېونتوب ) يعني بياتاسوبنه سوچ وکړئ ترڅو درته څرګنده شي چي دغه ستاسي ملګری (محمد ﷺ څوک چي د ده په لاس الله تعالی دغه معجز کتاب قرآنکريم رااستولی هيڅ لېونتوب نلري. ابوحيان وايي: دآيت شريف معناداچي زه تاسي ته ديوې خبري نصيحت کوم چي په هغې سره به حق ته ورسېږی هغه داچي د الله لپاره جلا جلا دوه دوه اويويو ودرېږئ اوبيادمحمد ﷺ په هکله اودهغه څه په باب چي ده راوړي فكراوغور وکړئ اوچي ويې فرمايل ﴿ مَثْنَىٰ وَفُرَٰدَىٰ ﴾ ځکه چي ټولګی سره له خپلي اجتماع يودول دخاطرتشويش پيداکوي اوله فكره څخه سری جارباسي لکه چي دټولګي زده کونکي فكرنشي کولای اوچي کله دوه دوه هله چي هريوله خپله ملګري سره فكر او غورتبادله کړئ هريوخپل فكربل ملګري ته ووايئ نو خامخا حقيقت ته رسېږی اوهمدارنګه چي يودبنه فكر خاوندوي هم حق پېژندلای شي کله چي دوی ښه فكراو غور وکړي نو پدې پوهېږي چي د لېونتوب نسبت عليه السلام ته کول غيرممکن دی او هوښيارسړی هېڅوداهيڅ منلی نشي (٣) ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَىْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴾ نه دی دغه (محمد ) مګر وېرونکی دی تاسي ته دسخت عذاب په مخ کي (چي دقيامت دورځي عذاب دی که تاسوکافران شوی) ﴿ قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْۖ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) هرهغه څه چي ما وغوښتل له تاسي له اجرته پس هغه دي هم ستاسي وي؛ يعني زه درسالت په تبليغ باندي له تاسومزدوري نه غوارم. طبري وايي: معناداچي ماله تاسوڅخه په دغه تبليغ کومه مزدوري نه ده غوښتي چي تاسي ماپدې تورن کړی چي ګواکي زه تاسي ددې لپاره خپل اتباع جوړوم چي مال درڅخه لاس ته راوړم (٤) ﴿ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِۖ ﴾ ندی اجر زمامګرپه الله دی ، يعني

(١) مختصرابن کثير ١٣٥/٣
(٢) القرطبي ٣١١/١٤
(٣) البحرالمحيط په لنډول
(٤) الطبري ٧١/٢٢

زه خپل اجر او ثواب له رب العالمينه غواړم ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴾ او همدغه الله په هرشي باندي ښه شاهددی ) یعني الله پاک زما او ستاسي داعمالو کتونکی او څارونکی دی له هغه څخه هیڅ پټ نه دي او ټولو ته به جزاء ورکړي، ابو السعود وايي: معناداچي: الله ته زما رښتنولي او د نيت اخلاص معلوم دی

(١)﴿ قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ ﴾ (ووايه( دوی ته ای محمده!) بېشکه زما رب ويشتل کوي (رالېږي) په حق (دين) يعني دليل روښانه او څرګندوي يې. ابن عباس وايي: معناداچي باطل په حق باندي ووليي لکه چي الله فرمايي ﴿ بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ ﴾ (الانبياء۱۸) ﴿ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴾ ښه خبردار دی په ټولو پټو اشياوو هم ﴿ قُلْ جَاءَ الْحَقُّ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) راغی حق(دين ,قرآن) يعني دحق ځلاخپره او رڼا يې وځلېده اسلام راغی ﴿ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ ﴾ (او نشي پيداکولای باطل (معبودان هيڅ شی) او نه يې بياله سره ژوندي راپاڅولای شي) يعني باطل يومخ ايزه ولاړ نه هغه پيل لري او نه بيرته راګرځېدل. زمخشري وايي: معنادالکه څنګه چي انسان ومري بيايې نو نه ابداء پاتي شوه او نه اعاده:(نه نوم او نه نښان نو عربو به دغه ويناچي: (وَمَا يُبْدِئُ وَمَا يُعِيدُ ) هله ويل چي دهلاکت لپاره به يې مثال راوړ په دې توګه معناداسي کېږي چي حق راغی او باطل يومخ له مينځه لاړ لکه چي الله فرمايي:﴿ وَقُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ﴾ (الاسرآ۸۱)(٢)﴿ قُلْ إِن ضَلَلْتُ فَإِنَّمَا أَضِلُّ عَلَىٰ نَفْسِي ﴾ پس ووايه (ای محمده دوی ته) که وښوئېدم زه (له سمي لاري ستاسو په زعم) پس بېشکه همدا خبره ده چي وبه ښوئېږم په (ضررد ) ځان خپل (بل چاته به تاوان ونه رسي )﴿ وَإِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوحِي إِلَيَّ رَبِّي ﴾ او که سمه لاره مي وموندله نوددې په سبب به وي چي ماته وحی کوي رب زما(او دهغه توفيق به وي) ﴿ إِنَّهُ سَمِيعٌ قَرِيبٌ ﴾ بېشکه همغه (الله) ښه اورېدونکی (دعاکونکو لره) ډېر نژدې دی چي څوک ورته هيله لري) ابو السعود وايي چي معناداچي دهرچا وينا اوري هغه که په سمه لار مهتدي او که ګمراه وي کړه وړه يې ويني که هرڅومره يې پټ هم ترسره کړي وي (٣)﴿ وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ فَزِعُوا ﴾ او که چي ووينې ته کله چي دوی ووېرېږي (په وخت د پاڅېدلو له قبرونو ) ﴿ فَلَا فَوْتَ ﴾ پس نه به خلاصېږي په تېښته ﴿ وَأُخِذُوا مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴾ او وبه نيولی شي دوی له ځايه نژدې (له حشرګاه تم ځای نه او رته ، خواب د(لو) محذوف دی تقديريې داچي خوراهيبتناکه او وېرونکی منظربه وي چي له زياته دهشته به اندامونه رېږدي ﴿ وَقَالُوا آمَنَّا بِهِ ﴾ او وايي به (دغه کفار) ايمان موراوړی دی په دغه (قرآن) او رسول يعني کله چي دوی

(١) ابو السعود ۴/ ۲۳۵
(٢) الکشاف ۳/ ۴۲۷
(٣) ابو السعود ۴/ ۲۳۵

عذاب ووینې داسې به وایې ﴿وَأَنَّىٰ لَهُمُ ٱلتَّنَاوُشُ مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾ او له کومه به وې دوی ته نیول (دایمان) له لیرې ځایه (څکه چې) دوی په آخرت کې دې او دایمان محل خودنیا وه دنیاخوتېره شوه او دوی اوس دېرله ایمانه لیرې دې. ابو حیان وایې ددوی حال بې له هغه چاسره تمثیل کړچې هغه غواړي له لیرې ځایه یوڅېزرا واخلي داسې لکه چې نژدې سرې بې راواخلي (۱)﴿وَقَدْ كَفَرُوا۟ بِهِۦ مِن قَبْلُ﴾ او په تحقیق کافران شوې وو دوی (په قرآن او پیغمبر) له دې نه پخوا (په دنیا کې) نوڅرنګه به دوی ته ایمان په آخرت کې ورکول شي؟ ﴿وَيَقْذِفُونَ بِٱلْغَيْبِ مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾ او ویشتل به یې کول دوی په غیب له لیرې ځایه، (ویل به یې چې نه بعث شته او نه حساب نه جنت شته او نه دوزخ. قرطبي وایې چې عرب هغه چاته چې بې له پوهې لیرې هسې ګډې وډې خبرې کوي وایې چې: (هو يقذف ويرجم بالغيب) یعنې هغه په غیب ویشتل کوي او دغه دهغه چالپاره متل وایې چې ویشتل کوي خو نښه نشي ویشتلای ﴿وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ﴾ او پرده به واچولې شي په مینځ ددوی او په مینځ د هغه شي کې چې دوی یې آرمان کوي یعنې ددوی او دایمان او دجنت ددخول ترمینځ به جدایې وکړې شي ﴿كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِم مِّن قَبْلُ﴾ لکه چې کړې شوې وو دا (کار) له سیالانو ددوی سره پخوا له دې نه (چې پخواني کفري امتونه وو) ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا۟ فِى شَكٍّ مُّرِيبٍۭ﴾ بېشکه هغوی وو په داسې شک کې چې دېرتردد اچونکې وو (دحساب او عذاب په هکله او دا کلمه چې ﴿مُّرِيبٍۭ﴾ ده دتاکید لپاره راوړل شوې لکه چې وایې (عجب عجيب).

بلاغت:

پدې آیتونو کې چې دبدیع او بیان کومې ښکلاوې شته لندیزیې دادی:

۱- دطباق صنعت چې د ﴿يَبْسُطُ ... وَيَقْدِرُ﴾ او ﴿نَّفْعًا ... ضَرًّا﴾ او ﴿مَثْنَىٰ ... وَفُرَٰدَىٰ﴾ د کلماتو ترمینځ راغلې دی

۲- مقابله چې دابرارو او فجارو دبرخه لیک په هکله راغلې لکه: ﴿إِلَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ... وَٱلَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ﴾.

۳- دالتفات صنعت چې له غائب څخه مخاطب ته شوی فرمایې: ﴿وَمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُم﴾ او مقصد ور څخه دحق دتحقیق په هکله مبالغه ده.

(۱) البحر المحيط ۲۹۳/۷

۴- دتقریع اوتوبیخ اسلوب لکه ﴿ أَهَٰؤُلَآءِ إِيَّاكُمْ كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ ﴾ خطاب پرښتو (ملائکو) ته او ټکول دمشرکانو مقصود دی.

۵- داسم ظاهر راوړل دضمیر پرځای ترڅو چي دجرم تسجیل افاده کړي لکه: ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلْحَقِّ ﴾ چي اصل خو داوو چي راغلي وای (وقالوا).

۶- دسیاق ددلالت له کبله ایجاز بالحذف لکه چي فرمایي ﴿ وَمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُم بِٱلَّتِى تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَىٰٓ ﴾ دلومړۍ خبرېې حذف کړچي دوهم ورباندي دلالت کوي هغه داسي چي (ماأموالكم بالتي تقربكم ولاأولادكم بالذين يقربونكم عندنا) راځي.

۷- استعاره لکه چي پدې کلام کي ده ﴿ بَيْنَ يَدَىْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴾ دلاسونولفظ يې دهغوکړاوونو اوسختيو لپاره استعاره کړ کوم چي دانسان په مخ کي وي.

۸- لطیفه کنایه چي: ﴿ وَمَا يُبْدِئُ ٱلْبَٰطِلُ وَمَا يُعِيدُ ﴾ چي دغه دباطل دورکېدواوبېخي له مينځه تللولپاره له لطافته ډکه کنایه ده.

۹- تصریحي استعاره پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ وَيَقْذِفُونَ بِٱلْغَيْبِ مِن مَّكَانٍۭ بَعِيدٍ ﴾ دلته يې هغه دناپوهي وينا (چي په ګمانونوبناء وي او حقيقت نلري له هغه انسان سره مشابه کړه چي نښه ولي خوزياته مسافه اوواټن يې ترمينځ وي اوغېشي يې په نښه نه لګېږي اودويشتلولفظ يې دوينالپاره استعاره راوړی دی.

۱۰- دفواصلوتوافق چي په اورېدلوکي اغيزلري اودکلام جمال زياتوي لکه: ﴿ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ .... أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ .... وَهُمْ فِى ٱلْغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ ﴾.

دالله جل جلاله په مرسته دسبأ سورت تفسيربشپړشو.

***

## دفاطر سورت مکي او پنځه څلوېښت آيتونه لري:

### دسورت په وړاندې:

دفاطرسورت مکي اودرسول الله ﷺ ترهجرت له مخه نازل شوی او په هغه عامه تګلاره روان دی کوم چي نورمکي سورتونه هم دهغې لپاره رانازل شوي ووهغه چي دګردورسولانو غالباًلومړنی مقصد اوموخه ده چي هغه عقيده اودالله توحيدته بلنه اودالله په وجودباندي دلائل راوړل اودشرک تادوونه نړول دي بل داچي زړونه له ناولتياڅخه پاک او په ښواخلاقووپسولل شي.
دغه مبارک سورت په پيل کي له مبدع خالق څخه غږېږي هغه مقتدرذات چي کائنات يې پنځولي، ملائکي، انسانان اوپېريانان يې پيداکړي دي اوبيا په بعث اونشور باندي دلائل راوړي چي لکه څرنګه چي دغه ځمکه وروسته له مرګه دباران په اورښت بيارازرغونېږي اومېوې دانې راوړي همداسي به بعث اونشور راځي الله جل جلاله به شپه او ورځ پسي راغبرګوي يوه په بل کي دننه کوي اوانسان په مختلفو اطواروکي دپيدايښت مرحلې ته رسوي اونورډېر دقدرت اووحدانيت دليلونه راوړي.
همداسي دمؤمن اوکافرترمينځ دهغوی سترفرق اوتوپير په ډاګه کوي اودړانده اوبينا، روښنايې اوتيارې اودسيوري اوګرمي مثالونه ورته راوړي.
ورپسې دالله دقدرت دلائل دمېوو په قسمونواودنورو ګردومخلوقاتو په ډولونوچي انسانان ځاروي اوبوده ګان دي رااخلي لکه چي دغرونو اوډېرو درنګونو اوشکلونوچي سپين تور اوتک سره دي اوټول دواحدقهار ذات په عظمت ګواهي ورکوي ستايې.
بيا په سورت کي دمحمدي امت ميراث هغه چي درسالاتو ترټولو اشرف رسالت اودغه دمجيد اودفضائلوجامع کتاب چي دټولوالهي کتابونو بهتري پکي خوندي شوي ده راوړي اودلته اُمت په دريو ټولګيو وېشي چي يوټولګی مقصرين بل محسنين اوو روستنی سابق بالخيرات دی.
په پای کي دغه مبارک سورت مشرکان تکوي چي ولي دبتانو اوډېرو عبادت کوي؟

### تسميه اونومول يې:

څکه ورته سورت فاطروايې چي دغه ښايسته صفت اوښکلی نوم يې په پيل کي راغلی دی هغه چي په ابداع، اختراع اوداسي ايجادباندي دلالت کوي چي تردې دمخه يې نمونه موجوده نه وي اودا چي پدې کي ډېرلطيف اودقيق انځور دی چي دذوالجلال ذات عظمت سترقدرت اوعجيب صنعت ښيې هغه ذات چي ملائکي يې پيداکړي او په داسي عجيب تکوين اوجوړښت يې ددوی ابداع فرمايلی ده.

الله تعالى فرمايي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا أُولِي أَجْنِحَةٍ مَّثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ۚ يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَاءُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١﴾ مَّا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۖ وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِن بَعْدِهِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢﴾ يَا أَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ ۚ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللَّهِ يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ۚ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴿٣﴾ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ ۚ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٤﴾ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ۖ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ۖ وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴿٥﴾ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ۚ إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ ﴿٦﴾ الَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۖ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿٧﴾ أَفَمَن زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ فَرَآهُ حَسَنًا ۖ فَإِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ ۖ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَاتٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴿٨﴾ وَاللَّهُ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا فَسُقْنَاهُ إِلَىٰ بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَأَحْيَيْنَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ كَذَٰلِكَ النُّشُورُ ﴿٩﴾ مَن كَانَ يُرِيدُ الْعِزَّةَ فَلِلَّهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا ۚ إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ ۚ وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۖ وَمَكْرُ أُولَٰئِكَ هُوَ يَبُورُ ﴿١٠﴾ وَاللَّهُ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا ۚ وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ ۚ وَمَا يُعَمَّرُ مِن مُّعَمَّرٍ وَلَا يُنقَصُ مِنْ عُمُرِهِ إِلَّا فِي كِتَابٍ ۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿١١﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ۖ وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا ۖ وَتَرَى الْفُلْكَ فِيهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿١٢﴾ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۚ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ ﴿١٣﴾ إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ ۚ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ ﴿١٤﴾﴾ فاطر: ١ – ١٤

لغتونه:

(فاطر) پيداكونكى له (فطر) څخه اخيستل شوى اوهغه څيرلوته وايې لكه چي الله فرمايي (السمآء منفطر به) (المزمل ١٨) اوداچي ويل كېږي (فطر الله الخلق) معناداچي الله خلګ پيداكړي دي (تؤفكون) له افک څخه اخيستل شوى اوهغه ددروغو په معنادى ځكه ورته افک وايې چي له حق او صواب څخه خلګ راګرزوي (حسرات) د حسرت جمع ده او حسرت په كوم تاوان رسېدلو باندي غم او خواشيني ته وايې په مختار الصحاح كي ليكي چي حسرت په كوم ورک شوي څيز باندي سخت خفګان[1] او تلهف افسوس

[1] مختار الصحاح مادة (حسر).

ته ویل کېږي (النشور) (دنشر) مصدر او د مړي راژوندي کېدلو ته وايي (يبور) هلاکېږي (بوار) هلاک ته وايي (فرات) خوندوري خوږې (أجاج) سخته تروې په قاموس کي ليکي (أج الماء أجوجا) کله چي به تريووالي خورا زيات شي (١) (قطمير) هغه نرۍ سپين پټوکی چي د خرما او دزړي په مينځ کي وي

تفسير:

﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ټوله ثناصفت خاص هغه الله ته دي چي بې له نمونې څخه پيداکونکی دی د آسمانونو او ځمکي. بيضاوي وايي چي د ﴿ فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ معناداچي مبدع او پيداکونکی دهغو بې له مثاله دی (٢) ﴿ جَاعِلِ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ رُسُلًا ﴾ ګرزونکی د پرښتو دی رسولان په مينځ دالله او انبياووکي چي دالله فرمانونه رسولانو ته رارسوي . ابن جوزي وايي معناداچي انبياوو او نوروچاروته بې الله رالستوي (٣) ﴿ أُو۟لِىٓ أَجْنِحَةٍ مَّثْنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ ﴾ (هسي (ملائکي) چي خاوندانې د وزرو دوو دوو او دريو دريو او څلور څلور ودي) قتاده وايي چي دځينو دوه وزرونه دځينو درې وزرونه او دځينو څلور وزرونه دي چي ورباندي ځمکي ته راکوزېږي او بيابېرته آسمان ته خېژي (٤) ﴿ يَزِيدُ فِى ٱلْخَلْقِ مَا يَشَآءُ ﴾ زياتوي (الله) په پيدابښت کي (دپرښتو) هومره چي اراده وفرمايي دهغوله لويوالي د اجساموا وتوپيرد اشکالو شمېر دوزرو بې ، او رسول الله صلى الله عليه وسلم دمعراج په شپه حضرت جبريل وليد چي شپږسوه وزر يې درلودل چي دهري وزري او بلي تر مينځ يې لکه دمشرق اومغرب غوندي مسافه وه (٥) قتاده وايي چي ﴿ يَزِيدُ فِى ٱلْخَلْقِ مَا يَشَآءُ ﴾ معناپه سترګوکي ملاحت په پوزه کي حسن او په خوله کي حلاوت او خوږوالی دی (٦) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ بېشکه الله په هرشي باندي (چي اراده وفرمايي) ښه قادر دی دلته الله ﷻ خپل ځان په دوو سترو صفتونو وستايوچي په دواړو کي دستر انعام او بشپړ قدرت ښني نښانې دي لومړی داچي هغه دآسمانونو او ځمکي بې له مثاله پيداکونکی دی چي نه يې پخوانی خاکه شته چي دهغې پيروي وکړي او نه کوم پخوانی قانون چي هغه عملي کړی شي او دغه دالله په بشپړ قدرت دلالت کوي او په شامل نعمت بې شاهدي وايي الله هغه ذات دی چي آسمانونه يې بې ستني درولي او په ستوروبې ښايسته کړي دي الله هغه ذات دی چي ځمکه يې غوړولي او روزي خواره يې پکي پيداکړي رودونه سيندونه يې پکي بهولي دي چينې او ځاګاني يې پکي پيداکړي او نور هرڅي دالله دستروا ک او څواک او بديع صنعت آثار لري او له دې څخه بې تعبيرېدې

(١) القاموس المحيط مادة (أجج).

(٢) حاشيه زاده على البيضاوي ٣/٩٨

(٣) زادالمسير ٢/٤٧٣

(٤) القرطبي ١٤/٣١٩

(٥) داحديث له ابن مسعود رضى الله عنه څخه روايت شوی دی .زمخشري وايي چي رسول الله حضرت جبريل وليدچي شپږسوه وزره يې وو.

(٦) القرطبي ١٤_٣٢٠.آيت عام دي دخلقت ټول زياتوالي ته شامليږي لکه اوچت قامت ښايسته صورت زيرکنوب ښه ژبه او نور.........

کلام فرمایلی چي: ﴿ فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ دوهم داچي پرښتې يې داستازي توب لپاره غوره کړې چي دالله اوانبیاوو علیهم السلام ترمینځ ځي راځي اودغه دالله دبشپړقدرت اوعظمت یوه ښکاره ښیي چي الله پرښتې په عجیبه اشکالواوغریبه صورتونو پیداکړي اووزرونه یې وربښلي ځیني دوه وزرونه (مثنی) لري ځیني درې ځیني څلور اوځیني هغه دي چي شپږسوه وزري لري چي دهر دوو وزرونو ترمینځ یې دختیځ اولویدیځ غوندي واټن دی لکه دجبریل علیه السلام اوځیني لاهغې دي چي له الله ﷻ پرته بل چاته دهغه دتن لویوالی اودخلقت حقیت معلوم نه دی زهري وایې چي حضرت جبریل علیه السلام محمدرسول الله ﷺ ته وویل چي ای محمده ! که دي اسرافیل لیدلی وای چي دوولس زره وزر یې دی یو وزر یې په مشرق اوبل یې په مغرب اوعرش یې په اوږودی ([1])؟ (!) هو که چیری موږ ته حجاب پورته کړې کړي عجب العجاب به راڅرګند کړې (فسبحان الله مااعظم خلقه ) وروسته بیاالله دخپلي ارادې اومشیت نفاذ پدغه عالم کي چي هغه پیداکړی اودخپلي ارادې لپاره یې اهل او تابع ګرزولی داسې بیانوي فرمایي: ﴿ مَّا يَفۡتَحِ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحۡمَةٖ فَلَا مُمۡسِكَ لَهَاۖ ﴾ هرهغه شی چي پرانیزي الله لپاره دخلکوله رحمته خپله لکه نعمت، صحت، علم، حکمت، رزق ،برکت اودخلکود لارښوونې لپاره دانبیاوو علیهم السلام رسالت اونور دالله له نعمتونوچي شمېرېې ممکن نه دی اوهیڅوک نشي کولای دالله مخلوق ځني محروم کړي ځکه الله هغه ملک وهاب ذات دی چي دده پېرزوینه څوک منع کولای نشي اودده منع څوک بیاورکولای نشي ﴿ وَمَا يُمۡسِكۡ فَلَا مُرۡسِلَ لَهُۥ مِنۢ بَعۡدِهِۦۚ ﴾ اوهرهغه چي الله بند کړي (له خپلي عطآء څخه ددنیااوآخرت ښېګڼي) پس نشته لېږدوونکی دهغه (هیڅوک) پس له بندولو دالله ) نه ﴿ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴾ او الله هم دی.دی ښه غالب قوي (په هرڅه) ښه حکمت والا (پخپله صنع کي چي دحکمت اومصلحت سره یې سم کوي. مفسرین کرام وایې چي فتح اوامساک عبارت له ورکړي او منعي څخه دی الله هغه ذات دی چي ګټه اوتاوان رسوي ورکړه اومنع کوي اوپه حدیث شریف کي راځي: (أحق ماقال العبدوکلنا لک عبداللهم لامانع لماأعطیت ولامعطي لمامنعت ولاینفع ذاالجد منک الجد([2]) وروسته الله بیاخپل نعمتونه هسي یادوي چي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡۚ ﴾ ای خلکودالله نعمت احسان یادکړئ پرتاسو (شکریې پرځای کړئ. زمخشري وایې چي مرادله یادولو د نعمت څخه یوازي په ژبه نه دی بلکه دنعمت ساتل دي په شکرسره چي وربَاندي اعتراف وکړي اوویې پېژني اودمولی اطاعت وکړي لکه یوڅوک چي بل چاته وایې کوم چي دهرنعمتونه یې ورکړي وي چي : (زمااحسانات درپه یادکړه !([3]) ﴿ هَلۡ مِنۡ خَٰلِقٍ غَيۡرُ ٱللَّهِ ﴾ آیاشته کوم بل پیداکونکی بې له الله ؟ (بلکه نشته استفهام انکاري اودنفی په معنا دی ﴿ يَرۡزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ هم دغه (الله) روزي در رسوي تاسي ته له (طرفه ) دآسمانه (په اورښت دباران) اوله (نباتاتود)ځمکي نوځرنګه تاسي له هغه سره داسي څوک بتان

---

([1]) الکشاف ۳ /۴۷۰

([2]) دحدیث شریف یوه ټوټه ده چي مسلم روایت کړی دی

([3]) الکشاف ۳ /۴۷۱

شریکوی چي نه پیداکونکي اونه روزي رسان وي؟ څکه نو وروسته فرمايي: ﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ نشته لائق دعبادت بل هیڅوک مگرهم دی دی ﴿فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾ پس له کوم جهته گرزولی کېږئ؟ (یعني وروسته له دغه څرگنده بیانه څرنگه دبتانو عبادت ته گرزول کېږئ ؟ غرض دلته خلگو ته دالله دنعمتونو وریه یادول اوپه مشرکانوباندي دلیل راوړل دي . ابن کثیروايي چي الله ﷻ خپل بندگان تنبیه کړل اوپخپل توحید يې استدلال راووړ چي یوازي دالله لپاره عبادت وکړئ لکه څرنگه چي یوازي هغه تاسي پیداکوي اوروزي درکوي همداسي یوازي دهغه عبادت وکړئ اوبتان مه ورسره شریکان کوئ ؟![1]

﴿وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ﴾ اوکه دروغجن وشمېري دغه (کفارای محمده) تاپه تحقیق دروغجن شمېرلي شوي وودېر رسولان پخواله تانه (دغه دالله سنت لاره ده دوی دروغجن وگڼل شول اوکړاوونه يې وگالل ترڅوچي زموږ مرسته ورته راغله پدې کي درسول الله ﷺ لپاره ډاډينه اوتسلاده چي ته مه خوابدی کېږه اوپه ړومبنیو انبیاووپسي اقتداء وکړه خامخابه دي الله مرسته وکړي اوپر (کفارو) به بری وموميې ﴿وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾ اوخاص الله ته بیرته گرزولی شي ټول کارونه په آخرت کي ستا اود دوی گردوچاري الله ته گرزولی کېږي هرچاته به پخپل عمل جزاء ورکړي، پدې کلام کي دمکذبینولپاره وعیداو تهدید نغښتی دی بیاالله ﷻ دغه تاکلي واقعې موعدداسي ښیي ﴿يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ﴾ ای خلگو بېشکه دالله وعده حقه ده (بعث ، جزاء اوکتاب بېخي حق اوهیڅ خلاف پکي نشته ) ﴿فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا﴾ پس خبردار چي نه دي تېرباسي تاسي دغه ژوندون ددنیا (په زرق اوبرق اوښکلاخپلي له آخرت نه ابن کثیروايي: معناداچي دغه فاني دنیادي تاسودآخرت له تلپاتي دنیاڅخه مشغوله نکړي ([2]) ﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ﴾ اونه دي غره کړي (تېرباسي تاسي په (کرم د) الله غره کونکی (شیطان) چي تاسي ته دالله د عفوي اوکرم طمع درکړي ترڅو تاسي په گناه اصرار وکړئ اوبیادعذاب مستحق وگرزئ دشیطان دښمني الله ﷻ داسي بیانوي: ﴿إِنَّ الشَّيْطَٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا﴾ (بېشکه چي شیطان تاسي ته دښمن دی پس تاسي هم دی ونیسئ خپل (دښمن ) یعني ای خلگوشیطان ستاسي پخوانی سرسخته دښمن دي تاسي هم له ده سره دښمني وکړئ لکه چي دی يې له تاسوسره کوي له هغه څخه تل په وېره کي اوسئ ځیني عارفانو ویلي تعجب دی هغه چاته چي داحسان کونکي احسان هم پېژني خوبیايې له امره سرغړونه کوي اوهغه لعین چي دښمني يې ورته هم معلومه وي مگربیايې هم خبره مني ﴿إِنَّمَا يَدْعُوا حِزْبَهُۥ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَٰبِ السَّعِيرِ﴾ بېشکه همداخبره ده چي شیطان بولي خپله ډله (ځای دهلاکت ته ) دپاره ددې چي شي دوی له ملگروددوزخ (په آخرت کي ) دده بل مقصدنشته مگر همدايې مقصد دی نوآیاهوښیارسړی به دداسي لعین شیطان خبره ومني ؟! طبري

---

([1]) مختصرابن کثیر ۳/ ۱۳۹
([2]) پورتنی مرجع ۳/ ۱۳۹

وايي معنا داچي شيطان غواړي خپله ډله ټپله تل ترتله په دوزخ کي واچوي هغه چي اوريي همېشه وړياندي بلېږي (١)﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ﴾ هغه کسان چي کافران شوي دي شته دوی ته عذاب سخت (چي څوک يې توان نلري اونه يې اندازه لګول کېدای شي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴾ او هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه عملونه شته دوی ته مغفرت اوبښنه اوستراجر چي جنت دی او داچي ايمان يې له صالح عمل سره جوخت راوړی دې ته اشاره ده چي دغه دواړه سره بېلېدونکي نه دي ځکه ايمان عبارت له باور کولو ، اقرار او عمل څخه دی ﴿ أَفَمَن زُيِّنَ لَهُۥ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ فَرَءَاهُ حَسَنًا ﴾ (آيا پس هغه څوک چي ښايسته کړی شوی دی ده ته بد عمل دده پس دی يې ښايسته ويني ) استفهام انکاري اوځواب يې محذوف دی تقديريې داسي کېږي چي آيا هغه څوک چي شيطان د ده بد او ناروا عمل ښايسته کړی وي آن تردې چي ده ته پخپله هم ښايسته برېښي اودغه کفراوضلالت چي دی ور باندي اخته دی ښه ګڼي لکه هغه څوک داسي دی؟ چي بديې ګڼي اوخان څني ژغوري او دايمان لاره غوره کوي ؟؟ په دغه حذف باندي دالله تعالی دغه وينادلالت کوي چي فرمايي: ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ ﴾ پس بېشکه چي الله ګمراه کوي هرهغه څوک چي اراده وفرمايي (د ګمراهي يې)اوسمه صافه لاره ښيي هرهغه چاته چي اراده وفرمايي (دهدايت يې په توفيق ورکولو د ايمان او ښوعملونو سره) ﴿ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَٰتٍ ﴾ پس نه دي ځي (نه دي هلاکېږي ) نفس ستا(ای محمده ) په (ګمراهي ) ددوی له جهته دافسوسه ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴾ بېشکه چي الله ﷻ ښه عالم دانادی په هغو کارونو چي دوی يې کوي (نوجزابه ورکړي پدې کي ددوی دبدو کارونو کولوپه هکله دعذاب وعيد شته ) ﴿ وَٱللَّهُ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ ٱلرِّيَٰحَ ﴾ اوالله (هغه مطلق قادر) ذات دی چي لېږلي يې دي بادونه (زېری ورکونکي په اوربښت) ﴿ فَتُثِيرُ سَحَابًا ﴾ پس راپورته کوي (بادونه وريځي اوخوځوي يې تعبيرله مضارع څخه په ماضي باندي چي وايي ﴿ فَتُثِيرُ ﴾ ددغه ښايسته انځور استحضار دی هغه چي دالله په بشپړقدرت اوحکمت باندي دلالت کوي (٢)﴿ فَسُقْنَٰهُ إِلَىٰ بَلَدٍ مَّيِّتٍ ﴾ پس راکاږو موږ دغه وريځي هغه کلي (ځمکي ) مړې ته (چي وابنه پکي نه اووچه وي ) ﴿ فَأَحْيَيْنَا بِهِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَآ ﴾ پس ژوندي کوو موږ په هغو (اوبو ) ځمکه پس له مړوالي (وچوالي کلکوالي ) ﴿ كَذَٰلِكَ ٱلنُّشُورُ ﴾ همداسي به وي حال دبيارا پاڅېدلوهم (له قبرونو څخه امام احمدله ابي رزين العقيلي څخه روايت کوي فرمايي مارسول الله ته وويل چي الله به مړي څنګه ژوندي کوي ؟ رسول الله راته وفرمايل چي آياتادخپلو خپلوانوځمکه وچه نه ده ليدلي چي هيڅ پکي نه وي اوبيادي هغه تر اوتازه زرغونه نه ده موندلي ماويل

---

(١) تفسيرالطبري ٢٢ /٧٨

(٢) ابوالسعود ٤ /٢٣٩

هو یارسول الله نو یې راته وفرمایل چي ﴿ فکذلک یحیی الله الموتی ﴾ او دغه یې په پیدا ښت نښه ده (۱) ابن کثیر وایي چي الله د بر خله د بعث او نشور لپاره د ځمکي په شنه کولو دلیل راوړي ځکه ځمکه وچه کلکه مړه اوبې وښووي کله چي الله ورېځ له بارانه ډکه ورته راواستوي او اوربښت وشي ﴿ ٱهۡتَزَّتۡ وَرَبَتۡ وَأَنۢبَتَتۡ مِن كُلِّ زَوۡجِۭ بَهِيجٖ ﴾ (الحج ۵) همدارنګه به الله اجساد هم کله چي یې د راپاځولو اراده وفرمایي راپاځوي ورپسې الله ﷻ خپل بندګان هغه لوري ته چي پکي عزت موندل کېږي تنبیه کوي فرمایي: ﴿ مَن كَانَ يُرِيدُ ٱلۡعِزَّةَ فَلِلَّهِ ٱلۡعِزَّةُ جَمِيعًا ﴾ (هرهغه څوک چي د عزت اراده لري پس خاص الله لره ټول عزت دی (له الله ﷻ څخه دي سعادت او عزت وغواړي ځینو عارفانو ویلي دي که څوک د دواړو دارینو عزت غواړي نو د عزیز اطاعت دي وکړي (۲) ﴿ إِلَيۡهِ يَصۡعَدُ ٱلۡكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ ﴾ خاص همدغه (الله) ته پورته خېژي خبري پاکي لکه ذکر دعاء د قرآنکریم تلاوت تسبیح ، تمجید او داسي نور. طبري وایي چي الله ته ورخېژي چي بنده یې ذکر کوي یا یې ثنا وایي ﴿ وَٱلۡعَمَلُ ٱلصَّٰلِحُ يَرۡفَعُهُۥ ﴾ او عمل صالح پورته کوي دغه (الله تعالی یعني قبلوي یې او خاوندته یې ثواب ورکوي. قتاده وایي چي الله ﷻ یوازي وینا بې له عمله نه قبلوي څوک چي یې ووایې او وریاندي نېک عمل وکړي الله ﷻ یې څني مني دغه خبره طبري څني رانقل کړې ده ﴿ وَٱلَّذِينَ يَمۡكُرُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٞۖ ﴾ (او هغه کسان چي جوړوي مکرونه ناکاره شته دوی ته عذاب ډېرسخت) یعني هغه کسان چي د اسلام او مسلمانانو لپاره تدبیرونه جوړوي ترڅو چي د الله نور له مینځه یوسي دوی ته په آخرت کي د جهنم په اور کي سخت عذاب شته دی ﴿ وَمَكۡرُ أُوْلَٰٓئِكَ هُوَ يَبُورُ ﴾ او مکر فریب د دغو هم هغه فاسد باطل هلاک دی ؛ ځکه هرڅوک چي په پټه کوم تدبیر او پلمه د بدي جوړه کړي الله ﷻ یې لوڅوي او بربنډوي یې ﴿ وَلَا يَحِيقُ ٱلۡمَكۡرُ ٱلسَّيِّئُ إِلَّا بِأَهۡلِهِۦۚ ﴾ (فاطر:۵۳ ) مفسرین کرام وایي چي دلته د قریشو هغه مکر ته اشاره ده چي کله دوی په دارالندوة کي غونډه وکړه او غوښتل یې چي رسول الله قتل، حبس او یا نفی کړي او ویې شړي لکه چي قرآنکریم یې څرګندوي فرمایي: ﴿ وَإِذۡ يَمۡكُرُ بِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لِيُثۡبِتُوكَ أَوۡ يَقۡتُلُوكَ أَوۡ يُخۡرِجُوكَۚ ﴾ (الانفال: ۳۰ ) (۳) د عزت او قدرت له دلائلو وروسته الله جلت عظمته دوی ته د توحید او بعث دلائل وریادوي چي ﴿ وَٱللَّهُ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٖ ﴾ او الله پیدا کړي یی تاسي (لومړی ځل نیکه ستاسي آدم علیه السلام ) له خاوري نه ﴿ ثُمَّ مِن نُّطۡفَةٖ ﴾ بیا تاسی (اولاده یې پیدا کړی) له نطفې څخه (چي خواري او سپکي اوبه د مني دي چي په رحم کي تویول کېږي ﴿ ثُمَّ جَعَلَكُمۡ أَزۡوَٰجٗاۚ ﴾ بیا یې وګرزولی تاسي جوړې جوړې (ښځه او مېړه) یعني نارینه

(۱) أخرجه أحمد وابو داؤد وابن ماجة
(۲) القرطبي ۱۴/۳۲۹
(۳) الکشاف ۳/۴۷۲

اوښخینه چي بیايي مېږه اوارتینه جوړکړی ترڅوددې دنیاژوندوي دبقاء لپاره تداوم وکړي (۱) طبري
وايي: معناداچي ښځه یې له نارینه سره جوړه کړه (۲) ﴿وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ﴾ اونه اخلي
حمل هیڅ ښځه اونه ږدي (حمل هیڅ ښځه) مګردالله په علم سره ، چي الله پرې پوهېږي آیانارینه دی
اوکه ښځینه همداسي ددغه ماشوم دتکامل مرحلې الله ته معلومي دي هیڅ څیز له احوالويې له الله څخه
پټ نه دی ﴿وَمَا يُعَمَّرُ مِن مُّعَمَّرٍ وَلَا يُنقَصُ مِنْ عُمُرِهِ إِلَّا فِي كِتَابٍ﴾ اونه اوږدېږي عمرد هیڅ اوږدکړی شوي
اونه هیڅ قدرکمولی شي له عمره ددغه (معمر) څخه (یاله عمره دبل معمر څخه)مګرپه کتاب (دلوح
محفوظ کي لیکلی دی ) یعني نه خودڅاعمر اوږدېږي چي بوډاتوب ته ورسېږي اونه کمېږي چي په
هلکتوب کي ومري مګردغه په لوح محفوظ کي لیکلی شوی دالله له لیک څخه زیات اوکم کېدای نشي
﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ دغه (لنډول اواوږدول دعمر) پرالله ډېرآسانه دی ځکه دالله علم په هرڅه محیط
دی وروسته بیاالله جل جلاله دمؤمن اوکافرلپاره داسي مثال راوړي فرمايي: ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ﴾
(اونه برابرېږي سره هغه دواړه بحرونه سیندونه ) یعني اوبه دبحر اونهرسره برابري نه دي (۳) نهرته یې
دتغلیب له مخي بحر ووایو ﴿هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ﴾ دايوخوږې دي تنده ماتونکي خوندوري
ښې هضمېدونکي ښې تېرېدونکي دي اوبه دده ﴿وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ﴾ اودابل تریودی تریخ دی (چي له
تریخوالي ستوني سوځوي نولکه چي دغه دواړه سره برابرنه دي همداسي مؤمن اوکافرهم نه دي سره
برابر اونه هم نیکوکاره اوفاجر سره یو ډول دي. ابوالسعودوايي چي دغه الله دمؤمن اوکافرلپاره مثال
بیان کړی دی .د(فرات) معناتنده ماتونکی اود (سائغ)معناخوندوراوښه تېرېدونکی او(أجاج) هغه
ښخي تریوته وايې چي له تریخوالي مری (حلق) سوځوي ﴿وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا﴾ اوله هریوه
له دغو دواړوڅخه خورئ تاسي تازه غوښي (د ماهي مختلف ډوله او مختلف خونده او مختلف شکله
﴿وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا﴾ اوراوباسئ له دغه (دواړو ) لؤلؤ اومرجان) ګانه چي اغوندی یې (لپاره
دزینت اوښکلا ) ﴿وَتَرَى الْفُلْكَ فِيهِ مَوَاخِرَ﴾ اوتل وینې ته بېړۍ (اوجهازونه) په دغه (بحر) کي تلونکي
څېرونکی (داوبو ) یعني ای مخاطبه ته ستري بېړۍ وینې چي د(دریاب اوبه په تلو راتلوکي څیري (۴) او
درانه بارونه اوسورلی وربانديوي دالله په تسخیر سره په بحرکي نه ډوبېږي ﴿لِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ﴾ لپاره
ددې چي طلب کړئ تاسي دالله له فضله (په تجارت او سفرونو کي لیري هیوادونو ته په لږ موده کي)
﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ اولپاره ددې چي تاسي (په دغه لوی نعمت) شکر وباسی ، وروسته دالله دقدرت

---

(۱) الطبري ۲۲/ ۸۷
(۲) القرطبي -۱٤-۳۲۹
(۳) القرطبي -۱٤-۳۳۹
(۴) اوګوره الاعجاز العلمي للقرآن.

او سلطان بله نبنه داسي راوړي چي ﴿ يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ وَيُولِجُ ٱلنَّهَارَ فِى ٱلَّيْلِ ﴾ نني باسي (الله) شپه په ورځ كي اونني باسي (الله) ورځ په شپه كي (نو كله دالويه وي او كله هغه پدې باندي د شپې او ورځي زياتوالى اونقصان دښارونو او فصلونو (موسمونو) سره سم ترسره كېږي آن تردې چي دوبى په خينې هيوادونو كي ورځ شپاړس ساعتونو ته رسېږي او شپه اته ساعته وي دغه دالله ﷻ د قدرت له نښانو ځخه يوه نښه چي انكاروړ ځخه نشي كېداى اومؤمن او كافر او ړوند او بينايي ټول مني دغه د كائناتو داسي مستحكم دستور دى چي هيڅكله هم تغيير او بدلون نه مومي ټينګ نظام دى چي د تصادف له مخي رادبره شوى نه دى بلكه د الله ﷻ هغه محكمه صنع ده چي په هرڅه يې لوړولى (پېرزو) كړې دى (فسبحان المدبر الحكيم العليم) ﴿ وَسَخَّرَ ٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِى لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ او مسخر كړې په كاركي يې لګولي دي لمر او سپوږمۍ چي هر يو روان دى تر يوې ټاكلي مودې پورې (چي د قيامت ورځ ده) ([1]) ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ ٱلْمُلْكُ ﴾ دغه (كونكى د دغو كارونو) الله دى رب ستاسو خاص همده ته ده پاچهي (سلطان او بشپړ تصرف په مخلوقاتو كي) ﴿ وَٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ ﴾ او هغه (بتان) چي تاسي يې بولى (او عبادت يې كوى) بې له دغه (الله) ندي مالكان دوى دنرۍ پردې (چي په زړي) دخرماوو (كي پرته وي). مفسرين كرام وايې چي دغه يو مثال دى چي الله يې په لږوالي ، سپكوالي او حقارت باندي ټهروي چي بتان دومره حقير ضعيف عاجزدي چي دخرما په زړي كي دنري پټوكي مالكان هم نه دي وروسته الله پاك په دغه وينا تاكيد فرمايې چي: ﴿ إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا۟ دُعَآءَكُمْ ﴾ كه وبولى تاسي دغه بتان نه اوري دوى ستاسي بلنه (ځكه دوى جمادات دي نه اوري او نه پوهېږي ) ﴿ وَلَوْ سَمِعُوا۟ مَا ٱسْتَجَابُوا۟ لَكُمْ ﴾ او كه (بالفرض) واوري دوى نو نه به شي دركولى ځواب ستاسي (ځكه چي ژبه نلري خبري نشي كولاى ) ﴿ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ ﴾ او په ورځ د قيامت به منكران شي دوى په شريك كولو ستاسي (باندي دوى لره سره له الله) يعني كله چي په آخرت كي الله دوى ناطقان كړي له تاسو او ستاسو له عبادت كولو به بېزاره شي ﴿ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ ﴾ (او خبر به نكړي تا (اى محمده په يقيني توګه) په شان د خبرولو دهغه (ښه عالم ) ښه خبردار ) يعني زه الله قتاده وايې: چي مقصد له خبيره دالله جل جلاله خپل ځان دى.

**بلاغت:**

---

([1]) په تفسير جوهري كي وايې :ګمان كېدو چي لمر يخپل ځاى ولاړ دى مګر اوسني علم دا ښودلې ده چي لمر په دغه پراخه دكائناتو فضاء كي په يوه اتجاه (لوري) ګرځندى روان دى چي د فلكياتو ماهرينو ته دهغه چټكوالى دوولس ميله په يوه ثانيه كي ښودلى دى او عليم الخبيرذات دهغه په روانېدلو او خوځښت خبر وركوي فرمايې ﴿ وَٱلشَّمْسُ تَجْرِى لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ﴾ او كله چي موږ تصور كوو چي د لمر حجم د ځمكي تر حجم يو مليون څنده زيات دى څوله دغه لويوالي سره سره په فضاء كي چي يوازي دالله قدرت يې ساتي حركت كوي موږ ته يو څه برخه دهغه د قدرت د صفت معلومه ده كوم چي دغه ستره ګټله پخپل ځواك او پوهه له لوېدلو او را پرېوتلو ژغوري.

پدې آيتونو کې چې دبيان اوبديع کومې ښکلاوي شته لنډيزيې دادى:

١-تمثيلي استعاره لکه: ﴿ مَّا يَفْتَحِ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ﴾ دلته يې دنعمتونو را استول دخزانولـه پرانستلوسره چې هرچاته ور وېشل کېږي مشابه کړل همداسي يې دنعمتونو بندول له نيولو (امساک) سره تشبيه کړل اودپرانستلو (فتح) لفظ يې لپاره دورکولواو(امساک) يې دمنع کولو لپاره استعاره راوړل.

٢-دطباق صنعت چې ﴿ يَفْتَحِ ... يُمْسِكْ ﴾ همداسي د ﴿ يُضِلُّ ... وَيَهْدِى ﴾ اود ﴿ تَحْمِلُ ... تَضَعُ ﴾ اود ﴿ يُعَمَّرُ ... يُنقَصُ ﴾ ترمينځ راغلى دى.

٣-مقابله په مابين دجزاء دابرارواوفجاروکې چې فرمايي: ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ... وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴾ همداسي ددې کلام چې ﴿ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ ... وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ﴾ اوهريوله طباق اومقابلې څخه له بديعي محسناتوګڼل کېږي خولومړى ددوشيانوترمينځ او دوهم دزياتوشيانوترمينځ راځي.

٤-دخواب حذف کله چې لفظ ورباندې دلالت کوي لکه: ﴿ أَفَمَن زُيِّنَ لَهُۥ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ فَرَءَاهُ حَسَنًا ﴾ هغه مقابل يې څني حذف کړى چې هغه دادى (کمن لم يزين له سوء عمله) اوپردغه محذوف باندې دالله ﷻ داوينادلالت کوي چې: ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ ﴾.

٥-اطناب دفعل په تکرار سره چې فرمايي ﴿ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا ﴾ بياوايي ﴿ وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِٱللَّهِ ٱلْغَرُورُ ﴾.

٦-کنايه چې په دې کلام کې ده ﴿ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَٰتٍ ﴾ دغه دنفس تلل له هلاکت څخه کنايه ده څکه کله چې نفس ولاړشي نوانسان هلاکېږي.

٧-التفات له غيبت څخه تکلم ته چې په عظمت باندې آګاهي ورکړي لکه چې فرمايي: ﴿ وَٱللَّهُ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ ٱلرِّيَٰحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا فَسُقْنَٰهُ ﴾.

٨-سجع کومه چې په اورېدلو باندې ښه اغيزپرې باسي لکه: ﴿ لِيَكُونُوا۟ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلسَّعِيرِ ... لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴾ او نوردېر مثالونه چې داهم له بديعي محسناتوشمېرل کېږي.

الله تعالى فرمايي:

﴿ ۞ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ أَنتُمُ ٱلْفُقَرَآءُ إِلَى ٱللَّهِ ۖ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴿١٥﴾ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٦﴾ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴿١٧﴾ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ وَإِن تَدْعُ مُثْقَلَةٌ إِلَىٰ حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَىْءٌ وَلَوْ كَانَ ذَا

قُرْبَىٰٓ إِنَّمَا تُنذِرُ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِٱلْغَيْبِ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ۚ وَمَن تَزَكَّىٰ فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ لِنَفْسِهِۦ ۚ وَإِلَى ٱللَّهِ ٱلْمَصِيرُ
﴿١٨﴾ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴿١٩﴾ وَلَا ٱلظُّلُمَٰتُ وَلَا ٱلنُّورُ ﴿٢٠﴾ وَلَا ٱلظِّلُّ وَلَا ٱلْحَرُورُ ﴿٢١﴾ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَحْيَآءُ
وَلَا ٱلْأَمْوَٰتُ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَآءُ ۖ وَمَآ أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِى ٱلْقُبُورِ ﴿٢٢﴾ إِنْ أَنتَ إِلَّا نَذِيرٌ ﴿٢٣﴾ إِنَّآ أَرْسَلْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ بَشِيرًا
وَنَذِيرًا ۚ وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ ﴿٢٤﴾ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ
وَبِٱلزُّبُرِ وَبِٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُنِيرِ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ أَخَذْتُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٢٦﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً
فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ ثَمَرَٰتٍ مُّخْتَلِفًا أَلْوَٰنُهَا ۚ وَمِنَ ٱلْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيضٌ وَحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَٰنُهَا وَغَرَابِيبُ سُودٌ ﴿٢٧﴾ وَمِنَ
ٱلنَّاسِ وَٱلدَّوَآبِّ وَٱلْأَنْعَٰمِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَٰنُهُۥ كَذَٰلِكَ ۗ إِنَّمَا يَخْشَى ٱللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ ٱلْعُلَمَٰٓؤُا۟ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ ﴿٢٨﴾
إِنَّ ٱلَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ ٱللَّهِ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَٰرَةً لَّن
تَبُورَ ﴿٢٩﴾ لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿٣٠﴾ وَٱلَّذِىٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ
مِنَ ٱلْكِتَٰبِ هُوَ ٱلْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ بِعِبَادِهِۦ لَخَبِيرٌۢ بَصِيرٌ ﴿٣١﴾ ﴾ فاطر: ١٥ - ٣١

مناسبت:

کله چي الله خپل نعمتونه بندګانو ته وریادکړل او پخپل قدرت عزت او سلطان یې دلائل راوړل دلته یې دوی په دې وپوهول چي هغوی تل دغه مقدس ذات ته محتاج او هغه جل جلاله له دوی څخه بې پروا مستغني دی بل یې د مؤمن او کافر صالح او فاجر لپاره د بېل والي مثال راوړ چي دغه لکه بینا او نابینا، یا روښنایې او تیاره غوندي مثالونه لري (وبضدها تتميز الاشيآء).

لغتونه:

(وزر) سترغره ته ویل کېږي چي څوک پناه وروړي او همدغه معنا پدې کلام کي مقصد دی چي ﴿ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴾ (القيامة ١١) او بیا وروسته درانه څېزته وویل شول چي له غره سره یې تشبیه راشي او بیاد ګناه لپاره استعاره شوچي هغه هم دانسان په اوږو درونده پېتی دی (تنذر) انذار تخویف او وېرولو ته وایې (الغيب) پټ او الوني شیانوته وایې کوم چي په حواسونه پېژندل کېږي لکه چي شاعر وایې:

وبالغيب آمنا وقد كان قومنا * يصلون للأوثان قبل محمد

او موږ په غیبو ایمان راوړی زموږ پلرونو د محمد تر راتلو پخوا بتانو ته لمنځونه کول (الحرور) سختي ګرمي ته وایې المصباح لیکي چي (حرّ) دیخني خلاف او حرارت یې نوم دی او چي وایې (حرت النار) معنا یې دا چي اور بل شو او (حرور) ګرم بادته وایې [1] (جُدَدٌ) د جدة جمع او لاري لیکي ته وایې. جوهري وایې چي (جدة) مشد دهغي لیکي ته وایې چي دخره په شا اوله رنګه یې مخالفي وي او (جُدة) لاري ته

---

[1] المصباح المنير.

وايې چي جمع يې (جُدَدٌ) راځي اوهغولاروکرښوته وايې چي رنګونه يې سره بېل وي(¹) قرطبي وايې چي أخفش ويلي که چېري دغه د(جديد) جمع وای نوبه مضموم الجيم اودال وای لکه (سُرُرٌ) (غرابيب) دغربيب جمع اوسخته تک تور ته وايې.

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ أَنتُمُ ٱلْفُقَرَآءُ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ ای خلکوتاسي الله ته فقيران محتاجان يی (په ټولو احوالو ستاسي کي) ﴿ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلْغَنِيُّ ٱلْحَمِيدُ ﴾ اوالله هم دی غني بې پروابنه حمداوثناويلی شوی (په زياتو نعمتونودده. ابوحيان وايې چي دغه آيت شريف دوعظ اوپند يادونه ده چي ټول خلگ دالله احسان او انعام ته په ټولو احوالوکي اړاومحتاج دی چي دسترګو په رپ کي هم څني مستغني کېدلای نشي او الله پاک مطلقًا له ټول عالم څخه غني اوبې پروادی الله لره حمداوثنادی په هغوډېرو نعمتونو چي مخلوق ته بې ورکړي دي(²) وروسته الله ﷻ خپله استغنا له خلکوپه دې ويناسره جوتوي ﴿ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴾ که (الله) اراده وفرمايې دبېولوستاسي (په فنااوهلاکت سره) نوبه مو بوزي ) اوراُبه ولي نور نوی مخلوق (ستاسي پرځای پردې کي وعيداوتهديد دی ﴿ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴾ اونه دی دغه (بېول ستاسي اوراوستل دنورو ) پرالله څه سخت اومشکل (بلکه خورا ورته آسانه دی څکه هغه چي يوڅېزته ووايې: (كُنْ) نو(فيكون)شي ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ (اونه اخلي (هيڅ عاصي نفس ) باردګناه دبل نفس) اونه دبل په ګناه څاته عذاب ورکولی شي لکه چي ددنياجبابره اوسرکښان حاکمان بې ورکوي ګاونډی په ګاونډي اوقريب په قريب نيسي(³) ﴿ وَإِن تَدْعُ مُثْقَلَةٌ إِلَىٰ حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰٓ ﴾ اوکه راوبولي دروندباری (بل څوک ) باردګناهونوخپلو ته وابه نه خېستی شي له هغه څخه هيڅ څيز اواګرکه وي دغه (بللی شوی) خاونددخپلوي هم لکه پلار او زوی پدغه ورځ يودبل فريادنه اوري دغه دپخواني حکم تائيددی چي يوانسان دبل انسان ګناه نه بار وي زمخشري وايې که چاوپوښتل چي بيانوددواړو آيتونوفرق اوتوپيرڅه دی؟ ځواب داچي په لومړي آيت کي دالهي حکم په عدل دلالت راغلی اوداچي الله ﷻ هيڅوک پرته له ګناه نه آزاروي اوپه دوهم آيت کي داچي هيڅوک دبل چاستغاثه نه اوري ﴿ إِنَّمَا تُنذِرُ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِٱلْغَيْبِ ﴾ (بېشکه هم داخبره ده چي وېروې ته هغه کسان چي وېرېږي له ربه خپله په غيبوسره) يعني ته پدې قرآن باندي هغه څوک وېروې چي دقيامت دورځي له الهي عذابه وېرېږي ﴿ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ اوقائموي (سم اداکوي سره له ټولو حقوقو ) لمونځ، نودخپلو نفوسو پاکوالي سره يې دابدانو پاکوالی هم يوځای کړی وي چي لمنځونه پخپلووختونو کي

---

(¹) البحرالمحيط ۷/۳۰۷

(²) البحرالمحيط ۷/۳۰۸.

(³) نفس المرجع

کوي ﴿ وَمَن تَزَكَّىٰ فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ لِنَفْسِهِۦ ﴾ اوهرڅوک چي ځان (له شرکه اومعاصي) پاک کړي پس بېشکه هم داخبره ده چي ځان یې پاک کړ لپاره دنفعي دځان خپل، صلحیت اوتقوی یې خپل ځان ته گټه رسوي ﴿ وَإِلَى ٱللَّهِ ٱلْمَصِيرُ ﴾ اوخاص (طرف د ) الله ته ورتله دي (دهرچا ) اودوی ته به پخپلو اعمالو جزاء ورکړي دغه اخباردی خوپه ترڅ کي یې وعید شته دی ﴿ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ اونه برابرېږي سره ړوند(کافر) اولیدونکی (مؤمن) داهغه مثال دی چي الله دمؤمن اوکافرلپاره راوړي یعني لکه څرنگه چي نابینااوبیناسره برابرنه دي همداسي هغه څوک چي دقرآن په نورلارهویني له هغه کافرسره برابرنه دی چي دجهل په توروتیاروکي لالهاندوي ﴿ وَلَا ٱلظُّلُمَٰتُ وَلَا ٱلنُّورُ ﴾ اونه تیاره (باطل) اونه رڼا(حق) یعني لکه چي داسره برابرنه دي همداسي کفر او ایمان سره برابرېدلای نشي ﴿ وَلَا ٱلظِّلُّ وَلَا ٱلْحَرُورُ ﴾ اونه سیوری (جنت) اونه تودباد(دوزخ) مفسرین کرام وایي چي الله تعالی دغه مثال دجنت لپاره راوړی هغه چي پراخ سیوري اوچتي گڼي وني لري چي ترې لاندي ویالې بهېږي لکه چي ﴿ ٱلْحَرُورُ ﴾ داوراودوزخ لپاره مثال راوړي چي سخته گرمي لري نو جنت دابرارو هستوگنځی اور دفجارولپاره داوسېدلوځای دی لکه چي الله فرمایي: ﴿ لَا يَسْتَوِىٓ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ وَأَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ﴾ (الحشر۲۰) وروسته یې داسي تاکید راوړی چي ﴿ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَحْيَآءُ وَلَا ٱلْأَمْوَٰتُ ﴾ اونه برابرېږي سره ژوندي (علماء هوښیاران) اومړي (جاهلان) ابوحیان وایي چي ددغو څېزونو ترتیب په نه برابرېدلوکي په نهایت فصاحت سره شوی دی ځکه ړونداوبینا(لیدونکی) دمؤمن اوکافرلپاره مثال راوړشوی او بیاهغه څه چي کافروربانديدکفرپه تیاروکي وي اومؤمن دایمان په نورکي اوبیاددوی وروستی پړاو چي مؤمن په جنت اوثواب کي اوکافرپه دوزخ اوعقاب کي او وروسته یې بل مثال چي هغه ډېر أبلغ دی په مړي اوژوندي باندي راووړ ځکه کله په ړندوکي څه منفعت وي خوپه مړي کي هیڅکله نه وي او ﴿ ٱلظُّلُمَٰتُ ﴾ یې جمع راووړ چي دکفرلاري گوښي گوښي وي او ﴿ ٱلنُّورُ ﴾ یې مفردراووړ ځکه چي توحیداوحق یو دی او همداسي یې په وروستیودوومثالونوکي اشرف ړومبی راووړ چي (ظل) او(حی) اوهغه ډېر څرگند (أوضح) یې په ددو لومړیومثالونوکي په سر کي راووړچي هغه (أعمی) او(ظلمات) وو ترڅو چي فرق ښه څرگندشي اوداسي بایدونه ویل شي چي دغه یې دسجع لپاره همداسي راوړی ځکه قرآني معجزه خویوازي په لفظ کي نه ده بلکه په معناکي هم معجزه دی اوټول قرآنکریم اسرار اورازونه دي له دې نه وروسته بیالازیات څرگند تیااوبیان داسي فرمایي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَآءُ ۖ وَمَآ أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِى ٱلْقُبُورِ ﴾ (بېشکه چي الله اوروي هرهغه چاته چي یې اراده وشي (داورولویې) اونه یې ته ای محمده ! اوروونکی هغوته چي په قبرونوکي دي (دنافع قول) یعني الله چي چاته دحق دبلني داورولواراده وفرمایي نو ایمان ورته محبوب اوسینه یې داسلام لپاره پرانیزي خوته ای محمده ! دغه کفار اورولی نشې ځکه چي ددوی زړونه مړه دي نه حق پېژني او نه پرې پوهېږي. ابن جوزي وایي چي مقصدله مړوڅخه کفاردي اودوی یې ځکه له مړوسره مشابه وگڼل لکه چي مړي د قرآنکریم اورېدل نشي کولای اوله مواعظو څخه یې گټه نشي

اخیستلای همدا رنګه هغه څوک هم دی چي زړونه يې مړه وي په هغه څه چي اوري يې ګټه نشي اخیستلای (١)﴿ إِنْ أَنتَ إِلَّا نَذِيرٌ ﴾ نه يې ته (ای محمده!) مګرو یرونکی (د دغو کفارو له دوزخه يې) ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ﴾ بېشکه چي موږ لېږلی يې ته په حق ربښتيا (دين او هدايت) زيري ورکونکی (مؤمنانوته) او ويرونکی (کفاروته) ﴿ وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ ﴾ اونه وو هيڅ امت مګرچي تېرشوي په هغه کي کوم ويرونکی ، پدې کي درسول الله ﷺ لپاره ډاډينه ده چي په تېرو انبياوو عليهم السلام پسي دي اقتداء وکړي اودهغوی صبراوحلم اوپه کړاوونو باندي زغم دي خپل کړي. طبري وايې معناداچي ای محمده! که دغه ستادقوم مشرکانو ستاتکذيب وکړ همداسي په تېرو امتونوکي هم انبياء عليهم السلام دخپلو قومونو اومنکرانوله خواتکذيب شوی دي(٢)﴿ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ ﴾ او که دروغجن بولي (کفار) تا (نو مه خفه کېږه څکه چي )پس په تحقيق دروغجن يې بللي وو (انبياء خپل)هغو کسانو چي وو پخوا له دوی راغلي وودوی ته رسولان ددوی په ښکاره دلائلو(معجزاتو او نښانيو خودوی دروغجن وګڼل اوله هغه څخه چي دالله له لوري يې راوړي وو منکرشول)﴿وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ﴾اوپه صحيفوسره اوپه کتاب ښکاره کونکي (دحق اوباطل) يعني دوی په هغو صحيفو چي په انبياووعليهم السلام نازلي شوي وې اوپه نورو آسماني مقدسو کتابونوچي څلور دي لکه تورات، زبور، انجيل اوفرقان باندي کافران شوي وو نوته هم لکه دنبيانو غوندي صبروکړه !﴿ ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ بيامي ونيول هغه کسان چي کافران شوي وو(په سخت عذاب اوهلاکت ) ﴿ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴾ پس نوڅرنګه شوانکارزما(پردوی اوعذاب زماآياومي نه نيول په نيولودعزيز مقتدر؟ آيا نعمت مي په نقمت وربدل نکړ؟ آيانښکمرغي مي په بدمرغي اووداني مي په وراني ، ويجاړي نه ورواړوله ؟ همداسي زه له هغه چاسره چي زمادانبياووتکذيب وکړي چلندکوم ، بيادالله په وحدانيت باندي آسماني اوځمکني دلائل داسي راوړي چي:﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾ آيانه وينې ته (ای مخاطبه) چي بېشکه الله نازلي کړي دي له (جانبه) دآسمانه اوبه دباران په خپل قدرت ) ﴿فَأَخْرَجْنَا بِهِ ثَمَرَاتٍ مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا ﴾ پس راايستلي موږ په وسيله ددې اوبومېوې پدې حال چي مختلفي دي رنګونه ددغو (مېوو) خوندونه اوشکلونه يې . زمخشري وايې معناداچي جنسونه يې مختلف دي لکه انار، منې، انځر، انګور اونورچي شمېرېې نشي کېدای اوياشکلونه يې لکه ژيړ، سره ، زرغونه اونور(٣)﴿ وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيضٌ وَحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا ﴾ اوځيني له غرونو (خاوندان د)لارو (توتې توتې ) دي سپيني او سرې چي مخالف دي سره

---

(١) الطبري ٢٢/ ٨٥.
(٢) الطبري نفس المرجع السابق
(٣) الكشاف ٣/ ٤٨٢

رنګونه ددغو(لارو) يعني الله ﷻ غرونه پيدا کړي چي دمختلفو رنګونو لاري پکي دي که څه هم ټول ډبري او يا خاوري وي څيني له دغو غرونو دمختلفو رنګونو لاري لري مثلاً سپيني چي په سپين والي کي مختلف رنګونه وي او سرې لاري چي په سوروالي کي مختلف وي ﴿ وَغَرَابِيبُ سُودٌ ﴾ او څيني ددوی تک تور دي. ابن جزي وايې چي أبلغ صفت يعني ښخي تک توريې په پای کي دتاکيد په مقصد راوړی که څه هم حق خوداوو چي ړومبی يې يادکړی وای او دغه محاوره په عربي کلام کي ډېره راځي[1]
مقصدله دې څخه دالله ﷻ دقدرت بيان دی يعني دغه درنګونو او شکلونو اختلاف يوازي په مېوو کي نه دی حصر بلکه په ځمکني پوړيو او کلکو غرونو کي هم دغه ليدل کېږي[2] آن تردې چي په يوه يوه غره کي عجيبه عجيبه نادر رنګونه وي ته به وايې مرجان دي په تېره بيا دمرمروپه ډبرو کي. فسبحان الله القادر على كل شئ ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ وَٱلدَّوَآبِّ وَٱلْأَنْعَٰمِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَٰنُهُۥ كَذَٰلِكَ ﴾ (او همداسي) له خلګو څخه هم او همدا رنګه له نورو) ژوندي خوځېدونکو او ښارويو څخه هم چي سره مخالف دي رنګونه دهغو همداسي) يعني لکه څرنګه چي دمېوو او غرونو مختلف رنګونه دي همداډول دانسانانو او ښارويو رنګونه مختلف دي دغه سپين دی هغه سور دی، دابل تک توردی او ټول دالله مخلوقات دي کله چي الله دخپل قدرت او ځواک نښي نښانې وښودلې او خپل دعجيب صنعت يې يوه ښېلګه بيان کړه ورپسې يې داسي وفرمايل: ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى ٱللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ ٱلْعُلَمَٰٓؤُا۟ ﴾ ښېشکه همدا خبره ده چي له الله څخه وېرېږي له بندګانو ددغه (الله) عالمان څکه دوی الله ﷻ لکه چي بې دمعرفت او پېژندګلوي حق دی داسی پېژني. ابن کثير وايې چي ښېشکه علماء عارفين له الله څخه داسي وېرېږي لکه چي يې حق دوېري دی څکه کله چي معرفت دعظيم قدير ذات بشپړشي او علم کامل شي بيانو وېره هم ستره او زياته شي[3] ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ ﴾ ښېشکه الله ښه غالب قوي دی (په عظمت خپل) ښه مغفرت کونکی دی (چي څوک ورته رجوع وکړي او توبه ګارشي، ورپسې يې دهغو کسانو صفات راوړل چي له الله څخه وېرېږي او دثواب طمع يې کوي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ ٱللَّهِ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ ښېشکه هغه کسان چي دالله کتاب (قرآن) لولي (تل ترتله دشپې او ورځي) او قائموي (تل سم اداکوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ (پخپلو وختونو کي له خشوع، ادابو، شرطونو او ارکانو سره)

---

[1] التسهيل ۳/۵۸

[2] داسلام شهيد سيد قطب پخپل تفسير کي ليکي چي دغه دکائناتو په هکله پام راګرزول يو عجيبه شان ته ښېلګه ده چي دباران په اوريښت پيل کېږي او بيا دمختلفو رنګونو مېوو درازرغونېدلو وايې له هغه وروسته بيا دغرونو مختلف رنګونه ښيي چي دتيرو په رنګونو کي همدغسي لکه چي په مېوو کي مختلف رنګونه دي شتون لري او دغه په ډبرو کي بيا ديوې ډبري په مينځ کي ديو رنګ په مينځ کي مختلف نور رنګونه زړه لړزوي او جمالي ذوق راپاروي کوم چي دليدلو او کتلو وړ وي ورپسې بيا دخلګو رنګونه بيانوي لکه چي دښارويو او حيواناتو رنګونه چي اوښان، غوايې، پسونه، وزې چي دمختلفو رنګونو درلودونکي وي دغه ګرد په دغه منظور (ليدل کيدونکي) کائناتي کتاب کي دليدلو او کتلو وړ دي چي الله (جل جلاله) په عجيبه رنګ آميزي باندي پنځولي دي.

[3] مختصر ابن کثير ۳/۱۴۲

﴿وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ اولګوي (په لاره دالله کي) ځيني له هغو شيانو څخه چي ورکړي مودي دوی ته (لګوي يې) په پټه او ښکاره ﴿يَرْجُونَ تِجَارَةً لَّن تَبُورَ﴾ اميد لري دوی دداسي تجارت (سوداګري) چي له سره نه هلاکېږي (په تاوان سره بلکه ګټور تجارت وی) ﴿لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ﴾ لپاره ددې چي الله پوره ورسوي دوی ته اجرونه (دعملونو) ددوی اوزيات ورکړي دوی ته له فضله خپله. په التسهيل کي وايې چي پوره ورکول دثوابونوهغه دي چي مطيع يې مستحق وي اودزيات معنادا چې څو واري دهغو اعمالوثوابونه مضاعف ورکول دي اوياهم الهي ديدارته وايې(۱) ﴿إِنَّهُ غَفُورٌ شَكُورٌ﴾ بېشکه دغه الله ښه ښښونکی (داهل القرآن) ښه قدردان (دطاعتونوددوی) دی. ابن کثيروايې چي مطرف به کله دغه آيت ولوست نو ويل به يې چي دغه دقاريانوآيت دی (۲) ﴿وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ هُوَ الْحَقُّ﴾ اوهغه چي وحی کړي ده موږتاته له کتابه (قرآنه) هم هغه حق رښتياده (په رښتنولي کي يې هيڅ شک اوشبه نشته) ﴿مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ پداسي حال کي چي رښتونی کونکی دی هغو کتابونو ته چي پخواله دې څخه وو (لکه تورات، انجيل، اوزبور. ابوحيان وايې چي په آيت شريف کي دې لوري ته اشاره ده چي دغه وحی ده څکه رسول الله ﷺ خوليکونکی اولوستونکی نه ووخوله دې سره هغه څه يې بيانول چي دالله ﷻ په کتابونوکي راغلي وواوداپرته له الله څخه دبل چاله لوري نه وو (۳) ﴿إِنَّ اللَّهَ بِعِبَادِهِ لَخَبِيرٌ بَصِيرٌ﴾ بېشکه الله پربندګانوخپلوخامخاښه خبرداردی (په باطن دامورو ددوی اوپه ظاهرېې) ښه ليدونکی دی (چي ددوی هيڅ ورڅخه پټ نه دي).

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- دطباق صنعت چي ددې کلماتوترمينځ شته لکه ﴿يُذْهِبْكُمْ ... وَيَأْتِ﴾ اود ﴿الْأَعْمَىٰ ... وَالْبَصِيرُ﴾ اود ﴿الظُّلُمَاتُ ... النُّورُ﴾ اود ﴿الظِّلُّ ... الْحَرُورُ﴾ اود ﴿الْأَحْيَاءُ ... الْأَمْوَاتُ﴾ اود ﴿بَشِيرًا ... وَنَذِيرًا﴾ اود ﴿سِرًّا ... وَعَلَانِيَةً﴾ ترمينځ.

۲- اشتقاقي جناس پدې کلماتوکي ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ اود ﴿حِمْلِهَا ... لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ﴾ راغلی دی.

---

(۱) التسهيل ۳ / ۱۵۸
(۲) المختصر ۳ / ۱۴۳
(۳) البحرالمحيط ۷ / ۳۱۳

۳ - تصریحي استعاره چي فرمايي: ﴿ وَمَا يَسْتَوِي ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ دآيت ترپايه دلته يې کافرله ړانده، سره اومؤمن له ليدونکي سره پدې کي چي توره تياره اوکافرلاره نشي موندلای اورڼاورخ مؤمن سره لاره مومي اوبيايې مشبه به چي ﴿ ٱلْأَعْمَىٰ ﴾ دی دکافرلپاره استعاره راوور او ﴿ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ د ... لپار دتصريحي استعارې په توګه استعاره کړی دی.

۴ - التفات له غيبت څخه تکلم ته چي پدې کلام کي دی ﴿ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجْنَا ﴾ چي د(فأخرج) پرځای راوړل شوی څکه دلته ددغه فعل په سترتوب دلالت اوهغه ته بشپړه پاملرنه اوتوجه راړول دی چي دغه فعل دالله دلوی قدرت څخه خبرورکوي

۵ - صفت په موصوف پوري قصراوګوښي کول چي دالله تعالی پدې کلام کي راځي: ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى ٱللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ ٱلْعُلَمَٰٓؤُا۟ ﴾ دلته يې وېره يوازي په علماوو پسي ځانګړي کړي ده.

۶ - تقريري استفهام چي دتعجب معناپکي وي لکه: ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ دآيت ترپايه پوري

۷ - استعاره چي پدې کلام کي شته لکه ﴿ يَرْجُونَ تِجَٰرَةً لَّن تَبُورَ ﴾ دلته يې له الله څخه د ثواب موندلو د معاملې لپاره تجارت استعاره کړ اوله دنيوي سوداګري سره يې مشابه کړکوم چي د خلګوترمينځ په بيع اوشراء کي راځي ترڅوګته وکړي اوبيايې له هغي څخه ﴿ لَّن تَبُورَ ﴾ کلمه ترشيح کړه.

۸ - دفواصلو هغه موافقت چي دکلام په جمال ،رونق اوپه اغيزکي خوراداهميت ورلري لکه ﴿ يَرْجُونَ تِجَٰرَةً لَّن تَبُورَ ﴾ ﴿ إِنَّهُۥ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴾ ﴿ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴾ اوداسي نور.

الله تعالی فرمايي:

﴿ ثُمَّ أَوْرَثْنَا ٱلْكِتَٰبَ ٱلَّذِينَ ٱصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۖ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِٱلْخَيْرَٰتِ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَضْلُ ٱلْكَبِيرُ ﴿۳۲﴾ جَنَّٰتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ۖ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴿۳۳﴾ وَقَالُوا۟ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِىٓ أَذْهَبَ عَنَّا ٱلْحَزَنَ ۖ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ ﴿۳۴﴾ ٱلَّذِىٓ أَحَلَّنَا دَارَ ٱلْمُقَامَةِ مِن فَضْلِهِۦ لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ﴿۳۵﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ فَيَمُوتُوا۟ وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا ۚ كَذَٰلِكَ نَجْزِى كُلَّ كَفُورٍ ﴿۳۶﴾ وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ۚ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ ٱلنَّذِيرُ ۖ فَذُوقُوا۟ فَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴿۳۷﴾ إِنَّ ٱللَّهَ عَٰلِمُ غَيْبِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿۳۸﴾ هُوَ ٱلَّذِى

جَعَلَكُمْ خَلَٰٓئِفَ فِي ٱلْأَرْضِ ۚ فَمَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُۥ ۖ وَلَا يَزِيدُ ٱلْكَٰفِرِينَ كُفْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا ۖ وَلَا يَزِيدُ ٱلْكَٰفِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ﴿۳۹﴾ قُلْ أَرَءَيْتُمْ شُرَكَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ أَمْ ءَاتَيْنَٰهُمْ كِتَٰبًا فَهُمْ عَلَىٰ بَيِّنَتٍ مِّنْهُ ۚ بَلْ إِن يَعِدُ ٱلظَّٰلِمُونَ بَعْضُهُم بَعْضًا إِلَّا غُرُورًا ﴿۴۰﴾ ۞ إِنَّ ٱللَّهَ يُمْسِكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ أَن تَزُولَا ۚ وَلَئِن زَالَتَآ إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴿۴۱﴾ وَأَقْسَمُوا۟ بِٱللَّهِ جَهْدَ أَيْمَٰنِهِمْ لَئِن جَآءَهُمْ نَذِيرٌ لَّيَكُونُنَّ أَهْدَىٰ مِنْ إِحْدَى ٱلْأُمَمِ ۖ فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيرٌ مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا ﴿۴۲﴾ ٱسْتِكْبَارًا فِي ٱلْأَرْضِ وَمَكْرَ ٱلسَّيِّئِ ۚ وَلَا يَحِيقُ ٱلْمَكْرُ ٱلسَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِۦ ۚ فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ ٱلْأَوَّلِينَ ۚ فَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ ٱللَّهِ تَبْدِيلًا ۖ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ ٱللَّهِ تَحْوِيلًا ﴿۴۳﴾ أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِي ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَكَانُوٓا۟ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۚ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُعْجِزَهُۥ مِن شَيْءٍ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَلَا فِي ٱلْأَرْضِ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا ﴿۴۴﴾ وَلَوْ يُؤَاخِذُ ٱللَّهُ ٱلنَّاسَ بِمَا كَسَبُوا۟ مَا تَرَكَ عَلَىٰ ظَهْرِهَا مِن دَآبَّةٍ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۖ فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِعِبَادِهِۦ بَصِيرًۢا ﴿۴۵﴾ ﴾ فاطر: ۳۲ - ۴۵

مناسبت

کله چي الله پخپلوتلاوت کونکوبندګانوثناولوستله نودلته يې ددغه قيمتي خزانې په وړاندي د اسلامي امت پرګنې په دريودولوووېشلې هغه چي: پرخپل ځان ظلم کونکي ، هغه چي: مينځلاري مقتصدين اوهغه چي:- دنيکيوکارونوته په منډه ورتلونکي وي اوبيايې دنېکانواوبدانووروستى هستوګنځى بيان کړترڅوچي بنده درغبت اورهبت خوف اورجاء ترمينځ واوسي.

لغتونه:

(نصب) جسماني مشقت ته وايې (لغوب) روحي ستوماني اوستړياوله دې ښخه دی ﴿ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ﴾ (ق: ۳۸) (يصطرخون) له صراخ ښخه اوهغه په زوره چيغي وهل دي چي څوک يې مرستي ته ورشي ، (الذين) دالله له عذابه دخلګوبهرونکي ته وايې (خلائف) دخليفه جمع اوهغه چاته وايې چي دبل چا وروسته دهغه دچاروسمبالونکی وي(مقتا) بغض اوغضب ته ويل کېږي (خسارا) هلاکت او ګمراهي ته وايې (يحيق) په يوشي‌زراګرزېدل اوتاوېدلوته وايې.

تفسير:

﴿ ثُمَّ أَوْرَثْنَا ٱلْكِتَٰبَ ٱلَّذِينَ ٱصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۖ ﴾ بيامو وارث وګرزول (اوورمو کړدا) کتاب هغو کسانوته چي غوره کړی مودی له بندګانو خپلو(چي افضل الامم محمدي امت دی ، زمخشري وايې هغه

کسان چي الله غوره کړي هغوی محمدي أمت چي عبارت له اصحابو کرامو، تابعینو او هغه نور کسان چي دقیامت تر ورځي پوري راتلونکي دي(۱) بیا یې په دریو ټولګیو وېشل چی: ﴿ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِٱلْخَيْرَٰتِ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ (پس ځیني ددوی پرخپل ځان ظالم دي او ځیني ددوی په مینځ دلاري کي سم تلونکي دي اوځیني له دوی د الله په اذن نېکیو ته رومبي کېدونکي دي) یعني ځینو ددغو کسانو وارثانو څخه هغه دي چي دخیرپه کارونو کي مقصردي قرآن لولي خو عمل وربانديء نه کوي همدغه پخپل ځان ظالم دی ځیني هغه دي چي دخیرپه کارونو کي متوسط الحال دي په ډېرو وختونوکي په قرآنکریم عمل کوي خوپه ځیني وختونوکي ځیني کوتاهي پېښېږي همدغه مقتصدین دي اوځیني هغه دي چي په ډېره تلواره دخیردکارونواهتمام کوی اوپه کتاب الله عمل کونکي دي اودوی هغه دي چي د الله ﷻ په توفیق یې دطاعاتو عباداتو په ترسره کولو کي زیات پرمختګ کړی وي اودغه سابق بالخیرات دي. ابن جزي وایې چي اکثرمفسرین دغه درې سره ډلي دمحمدي أمت ګڼي (ظالم) ګنهګار دی او(سابق) متقي پرهېزګاردی او(مقتصد) ددوی ترمینځ (۲) دی. حسن بصري رحمه الله وایې: سابق هغه څوک دی چي نېکي یې تربدي زیاتي وي ظالم هغه چي بدي یې ترنېکي زیاتي وي او مقتصدبیاهغه چي دواړه یعني نېکي اوبدي یې سره برابري وي اوټول به جنت ته داخلېږي (۳) ﴿ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَضْلُ ٱلْكَبِيرُ ﴾ (دغه توریث اوغوره کول دمحمدي امت) یو فضل دی ډېرلوی) دغه ارث اواصطفاء دمحمدي امت لپاره دتحمل دأشرف الرسالات او دآسماني کتابونو څخه معظم کتاب هغه چي نورکتابونه یې فضل اوبهتري ته رسېدلای نشي اوتل تر تله به باقي وي د الله یولوی فضل دي وروسته دمؤمنانولپاره تیار شوي نعمتونه داسي بیانوي ﴿ جَنَّٰتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا ﴾ جنتونه دهستوګني دي ننوزي به په (هغوکي ؛ هلته چي متفاوتي درجې اومرتبې شته لکه څرنګه چي عملونه توپیرلري اوداچي(جنات) یې جمع راوړل ځکه چي جنتونه ډېردي یونه دی هلته جنت الفردوس دی جنت عدن دی جنة النعیم دی جنة المأوی، جنة الخلداوجنة السلام اوجنة علیین دی او په هرجنت کي دعمل کونکوله مرتبوسره سمي مرتبې اوپوړۍ دي ﴿ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ﴾ ګاڼه دارکولی به شي په دغه (جنت) کي له باهوګانوله سروزرو(خالصو) اوله مرغلرو صافو (چي پکي به کارول شوي وي) ﴿ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴾ اوجامې د دوی په دغه (جنت ) کي به د وربښمو وي، همداسي فرشونه او پر دې به یې هم دوربښمو وي. قرطبي وایې څرنګه چي پاچهانوبه په دنیاکي تاجونه او(وښي) اغوستل الله جل جلاله دغه دجنتیانولپاره وټاکل اود ټولو جنتیانوبه په جنت کي په لاس کي درې لاسوندي (وښي)

---

(۱) الکشاف ۴۸۴/۳

(۲) زادالمسیر ۴۹۰/۶.

(۳) دغه چي درې سره ډلي دمحمدي امت څخه دي راجح قول اوابن جریر غوره کړي ابن کثیرپدې هکله نبوي احادیث هم راوړي دي.

وي يو به دسروزروبل د سپينو زرو او بل د ملغلرووي[۱] ﴿ وَقَالُوا۟ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِىٓ أَذْهَبَ عَنَّا ٱلْحَزَنَ ﴾ اووايي به جنتيان (په وخت د دخول د جنت کي) تول ه ثناصفت خاص الله ته دی هغه الله چي بو يې تله (ليري يې کړه) له موږ څخه خفګان ، مفسرين کرام وايي چي:په ماضي سره يې تعبيروفرمايل چي (وقالوا) ځکه چي پيښېدل يې ثابت دی او د (حزن) معنا عام خفګان دی ټول هغه څه چي دانسان خوښي له مينځه وړي لکه دناروغي ، فقر، مرګ ، دقيامت کړاوونه اوداور عذاب وېره او نور څه حزن دی[۲] ﴿ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ ﴾ بېشکه رب زموږ خامخا ښه ښونکی (د ګناهکارانو) ښه قدردان (د نېکانو مطيعانو) دی دغه دواړه لفظونه د مبالغې لپاره دي ﴿ ٱلَّذِىٓ أَحَلَّنَا دَارَ ٱلْمُقَامَةِ مِن فَضْلِهِۦ ﴾ هغه (رب) چي راېې وستوموږ کورد اقامت (جنت ته) له فضله خپله (چي هيڅکله به ځني نه ايستل کېږو) ﴿ لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ﴾ نه رسېږي موږ ته په دغه (جنت) کي هيڅ مشقت اونه رسېږي موږ ته په دغه جنت کي هيڅ ستوماني خفګان. ابن جزي وايي جنت يې ﴿ دَارَ ٱلْمُقَامَةِ ﴾ ونوماوو ځکه دوی به هلته تلپاتي وي هيڅکله به ځني نه ايستل کېږي او ﴿ نَصَبٌ ﴾ بدني ستړياته وايي او ﴿ لُغُوبٌ ﴾ بياروحي ستوماني ته هغه چي له بدني ستړيا څخه سړي ته پېښېږي[۳] کله چي الله تعالى دنېکمرغانو حال ياد کړورپسې يې دفجارو بدکردارو بيان داسي وکړ ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ ﴾ اوهغه کسان چي کافران شوي دي شته دوی ته اورددوزخ (موافق د دوی له کفره سره ) ﴿ لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ فَيَمُوتُوا۟ ﴾ حکم به ونکړی شي پردوی (د مړيني چي) پس مړه شئ (اوله عذاب څخه په کرارشئ) ﴿ وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا ﴾ اونه به سپکوالی کاوه شي له دوی نه له عذابه ددې (اورددوزخ) بلکه تل ترتله به پکې وي لکه چي الله فرمايي: ﴿ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَٰهُمْ سَعِيرًا ﴾ (الاسرآ۹۷) ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِى كُلَّ كَفُورٍ ﴾ همداسي جزاورکوو موږ هرناشکره (کافربې ايمانه) ته ﴿ وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ﴾ اودوی به ناري سورې وهي په دغه دوزخ کي (اووايي به ) ای ربه زموږ راوباسه موږ (له اوره څخه بيرته دنياته ځوهلته ) صالح عمل وکړو (چي تاته مونږدې کړي) غيرله هغه چي موږ به پخواله دې کاوو. قرطبي وايي معنا دا چي موږ به دکفرپرځای ايمان راوړو ، دګناه پرځای به طاعت وکړو دپيغمبرانو حکمونه به ومنو اوپدې ويناکي چي وايي ﴿ غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ﴾ دوی پخپله ګناه اوبدعمل اعتراف کوي اووايي د پښېماني اوحسرت ننبه ده[۴] الله تعالى ددوی په

---

[۱]القرطبي ۵۲/۱۲
[۲]ابوالسعود ۲۴۵/۴
[۳]التسهيل فی علوم التنزيل ۱۰۹/۳
[۴]التسهيل ۱۱۰/۳

ردکي فرمايي: ﴿ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ ﴾ آيانه وو درکړی موږ تاسي ته عمر دومره (موده) چي پند اخلي په هغه کي هرهغه څوک چي پند اخيستل غواړي (نوتاسي په هغه موده کي څه وکړل ؟ اوولي نورعمر غواړئ ؟ اوپه حديث شريف کي راځي چي الله تعالی يوچاته شپېته کاله عمر ورکړي نوعذريې وروستي پراوته ورسېدو(۱) ﴿ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ ﴾ اوراغلی ووتاسي ته وېرونکی (محمدرسول الله هغه چي دقيامت په مخ کي الله را استولی ووده غه خبره موونه منله چابياويلي چي (نذير) بوډاتوب اوسپين وېښته ته وايي خو لومړی څرګند دی (۲) ﴿ فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴾ پس وڅکئ (عذاب) پس نشته ظالمانو (کافرانو) ته هيڅوک مددګار (چي داالله عذاب ورڅخه دفع کړي.

امام فخررازي وايي چي دغه امر داهانت اوسپکاوي امردی اوپدې کلمه کي چي ﴿ فَذُوقُوا ﴾ دی دوام شته اوداچي دضميرپرځای يې اسم ظاهر راوړ چي ﴿ لِلظَّالِمِينَ ﴾ ددې لپاره دی چي ظلم پردوی تسجيل شي ، وروسته الله فرمايي ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَالِمُ غَيْبِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ بېشکه چي الله عالم دی په پټو (اسرارو) دآسمانونو او ځمکي (هيڅ څېزپه کائناتوکي اوهيڅ شان له شئونوڅخه يې څني پټ نه دی ) ﴿ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴾ بېشکه الله ښه عالم دی په هغوخبروچي پټي دي په سينوزړونو کي) يعني الله ته د زړونو پټ رازونه ، وسوسې چورتونه معلوم دي نودده‌وی ظاهري اعمال به څرنګه ورته معلوم نه وي؟ مفسرين کرام وايي چي دا جمله دپخوانۍ لپاره په کومه کي چي په اورکي دکفارو تل ترتله عذاب بيانېدو، تاکيددی ځکه الله ته معلومه ده چي دکفارو په زړونوکي کفرښخ دی که چېری هغوی تل ترتله په دنيا کي وي هم به په الله ايمان نه راوړي اونه به دالله عبادت وکړي نوتلپاتي عذاب ددوی له تلپاتي کفرسره برابر دی نه ظلم شته اونه زياتوالی ﴿ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا ﴾ (الکهف ۴۹) قرطبي وايي معناداچي الله ته معلومه ده که تا سودنياته بيرته ستانه کړی هم به صالح اعمال ونکړئ لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ ﴾ (الانعام: ۲۸ ) (۳) ﴿ هُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ ﴾ (دغه (الله) همغه ذات دی چي ګرزولي يې تاسي خليفه ګان (دتېروخلګو ) په ځمکه کي) يعني الله تاسوله عاديانو، ثموديانو او نورو اُمتونوڅخه وروسته له ډېروپېړيو خليفه ګان کړي ياست ﴿ فَمَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ ﴾ پس هرڅوک چي کافرشوپس پرهغه دی کفردده (له ځانه پرته ورباندي بل چاته ضرر نه رسوي) ﴿ وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا ﴾ اونه زياتوي کافرانوته کفرددوی په نزد درب ددوی مګرغضب (شړل له رحمته دخدای) ﴿ وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ﴾ اونه زياتوي کافرانولره کفرددوی مګرخساره

---

(۱) أخرجه البخاري فی باب (من بلغ ستين سنة فقد أعذر اليه فی العمر ) اوآيت يې راوړی.
(۲) امام بخاري (نذير) په سپين ږيرتوب معناکړي اودغه يې دابن عباس اوعکرمة روايت راوړی اوقتاده وايي چي نذيرمحمدرسول الله دی اودغه صحيح اوابن جريرغوره کړی اوترټولوڅرګند دی.
(۳) القرطبي ۲۲/ ۳۵۵

(زيان، خسران اوهلاکت ) ابوحيان وايي چي په آيت شريف کي پردې تنبيه شته چي الله دوی دهلاک شويو خليفه ګان کړي خودوی دهغوی له حاله څخه پند اوعبرت وانه خيست (مقت) سخت بد ايسېدل اوبغض ته وايي اومرادله خسران څخه دعمر خسران دی لکه چي عمردانسان سرمايه ده کله چي بغيرد الله له طاعته تېرشي نودغه پانګه له لاسه ووتله او دګټي پرځای يې دالله غضب اوبېزاري ومونده له چي تل ترتله به په اورکي وي بيا الله مشرکان په دې ترټي چي دهسي چاعبادت کوي کوم چي نه اوري اونه ګټه رسوي ويې فرمايل: ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ شُرَكَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ (ووايه (دوی ته ای محمده !) آياوينی تاسي شريکان ستاسي هغه چي بلل به مو(اوعبادت موکاووددوی ) غيرله الله ). زمخشري وايې ﴿ أَرَءَيْتُمْ ﴾ معناداچي خبر راکړئ يعني خبرراکړئ له دغوشريکانو اوهغه څه نه چي دوی يې دشرکت اوعبادت مستحق اوور ګرزولي دي دوی په څه شي دعبادت ور اومستحق شول؟[1] ﴿ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ ﴾ (راوښيئ ماته چي کوم څېز پيداکړی دی (دغومعبودانو ستاسي) له ځمکي څخه )يعني دوی ددې دنيا له مخلوقاتو څخه کوم يو مخلوق پيداکړی چي تاسي يې بغيرله الله عبادت کوی ؟ ﴿ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ ﴾ اوکه شته دوی ته کوم (قسم) شريک والی (په پيداينښت د ) آسمانونو کي (له الله سره ) ؟اوپدې مستحق شول) ﴿ أَمْ ءَاتَيْنَـٰهُمْ كِتَـٰبًا فَهُمْ عَلَىٰ بَيِّنَتٍ مِّنْهُ ﴾ آياورکړی دی موږدوی ته کتاب پس دوی پرپاخه حجت ولاړدي له هغه کتابه (چي هغه کتاب ورته وايې دغه بتان دالله شريکان دي ) ؟ خودايوهم نه دی ﴿ بَلْ إِن يَعِدُ ٱلظَّـٰلِمُونَ بَعْضُهُم بَعْضًا إِلَّا غُرُورًا ﴾ بلکه نه کوي وعده داظالمان (مشرکان) ځيني ددوی (چي مشران دي) ځيني نوروته چي(کشران دي) مګرغره کول (تېرايستل، دغه له پخواني څخه لېږدېدل او دحقيقي سبب بيان دی چي دوی په دغوشريک نيولوکي دمشرانوخبرو تېر ايستلی دی چي هغوی به ورته ويل بتان ستاسي شفاعت کوي اودغه باطله تېروتنه ده. ابوالسعودوايي کله چي يې تول دلائل وړاندي ودرول نوله هغه وروسته يې داوفرمايله چي دوی په دغه ګمراهي کي مشرانوغورځولي دي اودغه داخلافولپاره داسلافوله لوري خطاايستل اوتېروتل دی [2] ورپسې الله دخپل قدرت او وحدانيت دلائل داسي راوړي چي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُمْسِكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ أَن تَزُولَا ﴾ (ببشکه الله ساتي (دغه) آسمانونه اوځمکه له دې نه چي زائل شي (اوله خپله ځايه ښځايه شي )يعني الله پخپل بشپړقدرت اوبديع حکمت سره آسمانونه اوځمکه له لوېدلو اوزائل کېدلو ژغوري لکه چي الله فرمايي ﴿ وَيُمْسِكُ ٱلسَّمَآءَ أَن تَقَعَ عَلَى ٱلْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِۦٓ ﴾ (الحج ٦٥ ) قرطبي وايي کله چي الله داوښوده چي ددوی خدايان دځمکي اوآسمان له يوڅېزپيداکولو څخه عاجز دی ورپسې يې دابيان کړه چي الله يې پيداکونکی اوژغورونکی دی يوڅېز نه پيداکېږي مګرد الله په ايجادپيدا کېږي اوبقاء يې هم دالله په

---

[1] الکشاف ۳ /۴۸۷

[2] تفسيرابی السعود ۴ /۲۴۲

ژغورنه وي[1] ﴿ وَلَئِن زَالَتَا إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِهِۦٓ ﴾ اوكه (بالفرض) چيري زائل شي دادواړه نوبه نه ساتي (له زواله) دغه دواړه بل هيڅوک ماسواله دغه (الله) يعني هيڅوک به ونكړاى شي هغه پخپل ځاى ودروي دوى دواړه دواحد قهارذات په قدرت ولاړدي ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴾ بېشكه دغه (الله) دى ښه تحمل والا (چي تعجيل نكوي په تعذيب دكفاروسره له ورتياواواستحقاق (ددوى) ښه ببښونكى (رحمت كونكى په هغه چاچي توبه ګارشي) ﴿ وَأَقْسَمُوا۟ بِٱللَّهِ جَهْدَ أَيْمَـٰنِهِمْ ﴾ (اوقسمونه به خوړل (دمكې كفارو) پرالله په سختو قسمونوخپلوسره) يعني مشركانو به زښته سخته لوړي كولي او قسمونه به يې خوړل صاوي وايې دوى به عادتاً په خپلو پلرونواوبتانو قسمونه كول خوچي كله به يې دقسم تاكيد كاوو نوبه يې په الله ﷻ قسم اولوړه وكړه (۲) ﴿ لَئِن جَآءَهُمْ نَذِيرٌ ﴾ خامخاكه چيري راغى دوى ته كوم وېرونكى (پيغمبر) ﴿ لَّيَكُونُنَّ أَهْدَىٰ مِنْ إِحْدَى ٱلْأُمَمِ ﴾ خامخاوي به دوى هرومرو ښه لاره موندونكى له يوه (دتېرو) أمتونو څخه. ابوالسعود وايي چي قريشوته درسول الله تربعثت مخكي داخبره ورسېده چي اهل كتابود خپلو انبياووتكذيب كاوو نودوى به ويل: په يهودواونصاراوو دي لعنت وي چي انبياء ورته راواستول شول اودوى دروغجن وګڼل كه موږته چيري الله نبي راواستاوو قسم په الله دى چي تر يهودانواونصاراوو به موږ ښه لاره ومومو (۳) ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيرٌ مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا ﴾ پس كله چي راغى دوى ته وېرونكى (محمد ﷺ اشرف المرسلين) نو زيات نكړ (دغه راتګ) دوى ته مګر تېښته (له حقه اوهدايته) ﴿ ٱسْتِكْبَارًا فِى ٱلْأَرْضِ وَمَكْرَ ٱلسَّيِّئِ ﴾ د پاره دلويې غوښتلوپه ځمكه او(لپاره د) بدمكر (په پيغمبراو مؤمنانوباندي ترڅو دكمزوري ايمان خلګ له سمي لاري واړوي. ابوحيان وايي چي ددوى دتېښتي لامل (سبب) تكبر اوچل ول وودوى له حق څخه همدغودووڅېزونو ليري كړي وو د ﴿ ٱلْمَكْرُ ٱلسَّيِّئُ ﴾ معناهغه فرېب اوخداع دى چي دوى به رسول الله ته كاوو(۴) الله ددوى دغه فرېب داسي ترديدوي: ﴿ وَلَا يَحِيقُ ٱلْمَكْرُ ٱلسَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِۦ ﴾ اونه چاپېره كېږي مكر فرېب ناكاره مګرپخپل اهل (چي مكركونكى دى) يعني د فرېب اوچل ول وبال و همدغه مكر كونكي ته راګرزېدونكى دى لكه چي وايي: كوهى مه كينه دبل سري په لاركي * ناګهانه به دتاپه كوهي لارشي. ﴿ فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ پس آياانتظار كوي دوى (يعني نه كوي) مګر طريقي (عادت دالله ته په امتونو) پخوانيو كي (چي هغوى يې دخپلو انبياوو په تكذيب كولوباندي هلاک اوپه عذاب اخته كړل) ﴿ فَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ ٱللَّهِ تَبْدِيلًا ﴾ پس له سره به نه مومې ته سنت عادت د الله ته هيڅ تبديل (اړول) ﴿ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ ٱللَّهِ تَحْوِيلًا ﴾ اوبيابه

(۱) تفسير القرطبي ۳۵۶/۱۴
(۲) حاشية الصاوي على الجلالين ۱۵/۳
(۳) تفسيرابي السعود ۲۴۲/۴
(۴) البحر المحيط ۳۱۹/۷

له سره نه مومې ته سنت دالله ته هيڅ تحويل (ګرزول) يعني هيڅوک نشي کولای له دوی څخه بل چاته عذاب وروګرزوي . قرطبي وايي چي الله پاک په کافرانوعذاب ګمارلی هيڅوک نشي کولای هغه بدل اواړوي اويا داچي له دوی څخه يې بل چاته وګرزوي (سنت) طريقه اوعادت بولي (۱) وروسته بيا الله تعالی دوی دپخوانيو تکذيب کونکو د نښانوليدلو ته وهڅول چي ترې پندواخلي وېي فرمايل ﴿ أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ آيانه دي ګرځېدلي (دغه کفارد مکې) په ځمکه کي پس چي ووينې (په دغو هيوادونو کي چي) څرنګه وو عاقبت آخره خاتمه دهغوکسانوچي له دوی نه پخواتېرشوي دي (الله له هغوی سره کله چي دپيغمبرتکذيب يې وکړڅه معامله وکړه؟) ﴿ وَكَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ﴾ او وو هغوی ډېرسخت له دغو (کفارو) څخه له جهت دقوت په بدنونو ، ډېرو مالونو او اولادونو کي) ﴿ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعْجِزَهُ مِن شَيْءٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ﴾ او نه دی الله داسي چي عاجز يې کړي کوم شی نه په آسمانونوکي اونه په ځمکي کي ﴿ إِنَّهُ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا ﴾ بېشکه چي الله ښه عالم (په چارودخلکو) ځواکمن ښه قادر دی (په کسات اخيستلو له هغه چانه چي ترې غاړه غړوي ﴿ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوا مَا تَرَكَ عَلَىٰ ظَهْرِهَا مِن دَابَّةٍ ﴾ اوکه چېري نيولي وای الله داخلک په سبب دهغوي دبدو عملونو )چي کوي يې دوی نونه به يې وو پرې ايښي پرشاد ځمکي هيڅ ژوندی خوځېدونکی (انسان اوحيوان. ابن مسعود ﷺ وايې چي مقصد ټول تلونکي اوښوئېدونکي حيوانات اوژوندي ساکښان دي (۲) ﴿ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ وليکن الله وروستي کوي دوی ترنېټې په نامه کړی شوي پوري (چي هغه دقيامت ورځ ده په تعجيل عذاب نه ورکوي ) ﴿ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِعِبَادِهِ بَصِيرًا ﴾ پس کله چي راشي نېټه (اجل) ددوی پس بېشکه چي الله دی پخپلوبندګانوښه ليدونکی (که يې ښېک عملونه کړي وو نېکي به مومي اوکه يې بد کړي وو بدبرخه ليک به پيداکړي ځکه الله ددوی په ټولو احوالو خبردار ليدونکی دی ابن جرير وايي الله دهغه چاچي دعذاب مستحق وي ليدونکی دی اوهمدارنګه څوک چي دعزت اوکرامت وړوي الله ته ښه معلوم دی (۳) په آيت شريف کي دمجرمينولپاره وعيد اود متقينولپاره بيازېری اووعد شته .

**بلاغت:**

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيز يې دادی:

---

(۱) تفسيرالقرطبي ۱۴/ ۳۶۰.
(۲) القرطبي ۱۴/ ۳۶۱
(۳) تفسيرالطبري ۲۲/ ۹۶

۱- اطناب چي دفعل په تکرار ترسره شوی لکه ﴿ لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ﴾ او فائده يې دهريوه په نفي کولو سره جلاجلا مبالغه ده او همدارنګه پدې کلام کي ﴿ وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ﴾ دلته هم لپاره دزياتي تقبيح او کفردزياتي ناوړتيا څرګندوي کوي.

۲- دامر په صيغه سره تهکم او استهزاء لکه ﴿ فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴾ اوددې مثال لکه داچي فرمايي ﴿ ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ ﴾ (الدخان ۴۹) داسي دی.

۳- مبالغه لکه ﴿ لَغَفُورٌ ، شَكُورٌ ، كَفُورٍ ﴾ اويا داچي په ﴿ حَلِيمًا ، عَلِيمًا ، قَدِيرًا ﴾ کلماتو کي راغلي دي چي دغه ټولي دمبالغې صيغې دي.

۴- انکاري استفهام دتوبيخ لپاره لکه ﴿ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ ﴾.

۵- مکنيه استعاره چي فرمايي: ﴿ مَا تَرَكَ عَلَىٰ ظَهْرِهَا مِن دَابَّةٍ ﴾ ځمکه يې له يوې سورلی سره مشابه کړه چي په شاباندي يې ډول ډول حيوانات بارکړي وي اوبيايې مشبه به حذف کړه له لوازمو څخه يې يولازم راووړ چي هغه شاده اودغه يې دمکنيې استعارې په توګه غوره کړه.

۶- سجع چي بې تکلفه خورا ښايسته او پرځای ده لکه ﴿ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ.... فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴾ همدغه له بديعي محسناتو څخه دی.

دالله په مرسته دفاطر دسورت تفسير بشپړ شو.

***

# (يس) سورت مكي او دري اتيا آيتونه لري

## دسورت په وړاندې:

سورت(يس) له دريو اساسي موضوع ګانو څخه غږېږي په بعث او نشور باندي ايمان ) داهل قريې كيسه اودالله ﷻ په وحدانيت باندي دلائل اوبرهانونه راوړي دسورت په پيل كي په قرآنكريم باندي لوړه شوي چي دغه كتاب دالله له لوري وحی او محمد رسول الله رښتوني پيغمبردی وروسته دقريشي كفارو په ګمراهي اوسرغړونه كي ډوبېدل بيانوي هغوی چي دمحمدبن عبدالله ﷺ تكذيب يې وكړ نودالله له لوري عذاب اوله دوی څخه كسات اخيستل ورته مقررشو.

بيادانطاكيې دښاردخلګو كيسه راوړي چاچي دپيغمبرانو دروغجن ګڼل خپله دنده جوړه كړي وه اوداكيسه هم ددې لپاره بيانوي چي څوک دالهي وحی تكذيب كوي هغه وو بربېري لكه څرنګه چي دقرآنكريم معمول دی چي دپند او عبرت اخيستلو لپاره كيسې په كارراوړي وروسته بيې دهغه مؤمن دعوتګربلونكي (حبيب النجار) دريز وښود كوم چي خپل تېرته يې نصيحت وكړ اوهغوی وواژه الله جنت ته داخل كړ او مجرمانو ته يې هم زيات مهلت ورنكړ بلكه دهلاكت په چيغه يې وو ژل

همداسي سورت په دغه كائناتوكي دالله دقدرت او وحدانيت دلائلو بهيرښيي اوله وچي ځمكي يې پيلوي چي بيا وروسته ژوند پكي راپيداشي وروسته دشپې نندارە بيانوي كله چي ورڅخه ورځ راوزي اوتكه توره تياره خپرېږي بيادلمرهغه ځلېدونكی مشهدرا اخلي چي دلوی الله په قدرت په آسمان كي خوځېږي اونه رالوېږي وروسته دسپوږمۍ حال وايي چي پخپلو برجونو كي كوزېږي اوبيا د بېړۍ ننداره ښيي چي دبشراولاده يې بار كړي وي او دغه ګرد دالله ﷻ په قدرت او ځواک باندي روښانه دلائل دي.

سورت له دې هيسته دقيامت پېښې را اخلي اودبعث اونشور بيان كوي هغه چي خلګ به له قبرونو راپاڅېږي څوک به جنت اوڅوک به دوزخ ته درومي په دغه ورځ به دواړه ډلي يوله بله بېلېږي اونېكمرغه كسان به دنعمتونو باغچو اوبدمرغان به ددوزخ خونو كندو اوپوړيو ته لوېږي په پای كي سورت هغه بنسټيزه او اساسي موضوع چي دبعث اوجزاء موضوع ده راوړي اودهغې په پېښېدلو باندي كوټلي دلائل اوبراهين بيانوي.

## تسميه اونوموول يې:

خكه يې سورت (يس) بولي چي الله ﷻ دغه سورت په همدغه دووتورو پيل كړی اوقرآني اعجاز ته پكي اشاره ده.

## فضيلت اوبهتري يې:

رسول الله ﷺ فرمايي: هرڅېززړه لري دقرآن زړه (يس) دی زما داخوښه ده چي دهرامتي په سينه كي دغه سورت وي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ يسٓ (١) وَالْقُرْءَانِ الْحَكِيمِ (٢) إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ (٣) عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ (٤) تَنزِيلَ الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ (٥) لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أُنذِرَ ءَابَآؤُهُمْ فَهُمْ غَٰفِلُونَ (٦) لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلَىٰٓ أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ (٧) إِنَّا جَعَلْنَا فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ أَغْلَٰلًا فَهِىَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُم مُّقْمَحُونَ (٨) وَجَعَلْنَا مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَٰهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ (٩) وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ (١٠) إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِىَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ (١١) إِنَّا نَحْنُ نُحْىِ الْمَوْتَىٰ وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَءَاثَٰرَهُمْ وَكُلَّ شَىْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ فِىٓ إِمَامٍ مُّبِينٍ (١٢) وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَٰبَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَآءَهَا الْمُرْسَلُونَ (١٣) إِذْ أَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوٓا إِنَّآ إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ (١٤) قَالُوا مَآ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَمَآ أَنزَلَ الرَّحْمَٰنُ مِن شَىْءٍ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ (١٥) قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّآ إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ (١٦) وَمَا عَلَيْنَآ إِلَّا الْبَلَٰغُ الْمُبِينُ (١٧) قَالُوٓا إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ لَئِن لَّمْ تَنتَهُوا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ (١٨) قَالُوا طَٰٓئِرُكُم مَّعَكُمْ أَئِن ذُكِّرْتُم بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ (١٩) وَجَآءَ مِنْ أَقْصَا الْمَدِينَةِ رَجُلٌ يَسْعَىٰ قَالَ يَٰقَوْمِ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِينَ (٢٠) اتَّبِعُوا مَن لَّا يَسْـَٔلُكُمْ أَجْرًا وَهُم مُّهْتَدُونَ (٢١) وَمَا لِىَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِى فَطَرَنِى وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (٢٢) ءَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً إِن يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ لَّا تُغْنِ عَنِّى شَفَٰعَتُهُمْ شَيْـًٔا وَلَا يُنقِذُونِ (٢٣) إِنِّىٓ إِذًا لَّفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ (٢٤) إِنِّىٓ ءَامَنتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُونِ (٢٥) قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ قَالَ يَٰلَيْتَ قَوْمِى يَعْلَمُونَ (٢٦) بِمَا غَفَرَ لِى رَبِّى وَجَعَلَنِى مِنَ الْمُكْرَمِينَ (٢٧) ۞ وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِۦ مِنۢ بَعْدِهِۦ مِن جُندٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَمَا كُنَّا مُنزِلِينَ (٢٨) إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً فَإِذَا هُمْ خَٰمِدُونَ (٢٩) يَٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ مَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ (٣٠) أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ (٣١) وَإِن كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ (٣٢) ﴾ يس: ١ - ٣٢

لغتونه:

(أغلالا) د(غل) جمع او هغوا تکړیو ته ویل کېږي چې په لاسونو کي لوېږي او کله کله لاسونه له غاړې سره وربانديي تړي (مقمحون) پټې سترګي اوچت کړي سرونه، ویل کېږي (اقمح البعیر) کله چې له تالاب څخه سر را اوچت کړي او نوري او به نه څښي (سدا) بند او مانع ته وايې (فعززنا) د(عزز) معنا قوي کېدل دی (تطیرنا) بدفالي ته ویل کېږي اصل یې له طیر څخه اخیستل شوی چې الوتلو ته وايې کله چې به مارغه دیوچاله کینڼ لوري والوت نو هغه به یې په بدفالي نیول (خامدون) مړه هغه چې حرکت پکي نه وي.

تفسير:

﴿يسٓ﴾ له مقطعاتوتوروڅخه دی کوم چي دمبارکوسورتونوپه پيل کي راځي اودقرآنکريم په اعجازباندي آګاهي ورکوي چي قرآنکريم هم له دغو تورو څخه جوړدی هغه چي دوی يې پېژني او ورباندي خبري اتري کوي مګرداچي قرآن معجزدی ددې دليل دا چي دغه الهي وحی اودالله له لوري نازل شوی دی. ابن عباس وايې چي د(يس) معنادطی دقوم په لغت کي (ياانسان) دی چاييا ويلي چي دغه دنبي صلی الله عليه وسلم له نومونوڅخه يونوم دی دليل يې داچي وروسته الله فرمايي ﴿إِنَّكَ لَمِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ بېشکه ته چي يې له پيغمبرانوڅخه يې !) چابياويلي چي د(يس) معنا(ياسيدالبشر) دی دغه وينا ابوبکر وراق کړي ده[1] ﴿وَٱلْقُرْءَانِ ٱلْحَكِيمِ﴾ قسم دی په دغه قرآن محکم )(چي تغيير ، تبديل ، تناقض اوبطلان نلري ) قرطبي وايې معناداچي محکم دی په نظم اومعانيوکي خلل پکي نه راځي.ابوالسعودوايې چي د( حکيم ) معناداچي دحکمت خاونددی ځکه چي نظم يې معجزاوپه نادرو حکمتونوډک دی [2] لنډه دا چي الله ﷻ په دغه محکم اومعجزکتاب باندي لوړه کړي کوم چي ښايسته تشريع اواحکام پکي اوپه بلاغت کي ورو‌ستي پړاوته رسېدلی دی قسم په دې کوي چي محمد دالله پيغمبردی اوپدې کي درسول الله شان دلوړتيااوتعظيم دومره زيات څه شته چي بيان يې نشي کېدای فرمايي ﴿إِنَّكَ لَمِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ بېشکه ته (ای محمده !) خامخاله رسولانوڅخه يې ؛ يعني ای محمده ته درب العالمين له پيغمبرانوڅخه دخلګو لارښووني لپاره يوپيغمبريې . ابن عباس ﷺ وايې چي دقريشوکفاروبه ويل چي ای محمده ته پيغمبرنه يې چي موږ ته دي رااستول شوی يې نوالله په عظيم الشان محکم قرآن باندي قسم وخوړ چي محمد ﷺ له پيغمبرانوڅخه دی [3] ﴿عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ (پرسمه لاره) چي پکي کږوالی نشته دهدايت لاره اسلام دی لکه چي قتاده ويلي [4] او تنکير لپاره دتفخيم اوتعظيم دی [5] يعني ته له هغورسولانوڅخه يې چي خلګوته په سمه لاره (چي ايمان اوتوحيددی) لېږلي شوي دي ﴿تَنزِيلَ ٱلْعَزِيزِ ٱلرَّحِيمِ﴾ نازل شوی دی (تاته دغه قرآن په نازلېدلو ) دزبردست مهربان رحم والا ﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أُنذِرَ ءَابَآؤُهُمْ﴾ (دپاره ددې چي ووېروې ته ای محمده دغه عرب چي دوی ته پيغمبراوکتاب پخوانه ووراغلی اومرادله وېري څخه دعذاب وېرول دي ﴿فَهُمْ غَٰفِلُونَ﴾ پس دوی (په دې سبب ) غافلان دي (له هدايت اوايمانه دشرک په تاريکيوکي لالهانده دي دبتانوعبادت کوي وريسې الله ددوی ورتيادعذاب لپاره ددوی په کفراصرارکول اودپيغمبر ﷺ

[1] القرطبي ۱۵/۴
[2] تفسيرابي السعود۴ /۲۴۷
[3] القرطبي عن القشيري ۱۵/ ۵
[4] الطبري ۲۲/ ۹۷
[5] -الانتصاف على الكشاف۴ /۲

دروغجن گڼل ښيې چي: ﴿ لَقَدْ حَقَّ ٱلْقَوْلُ عَلَىٰٓ أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ (خامخا په تحقيق حقه ثابته شوې خبره (دعذاب) په اکثرو ددوی (په ازل) کي پس دوی ايمان نه راوړي) لام دقسم لپاره توطنه ده يعني والله چي پردوی اکثروباندي داور عذاب لازم شوی ځکه چي دوی کفاراوپه وېرولواووعظ باندي پندنه اخلي ورپسې بې ددوی دغه ايمان نه راوړل ددې زېړنده وبلل چي ﴿ إِنَّا جَعَلْنَا فِىٓ أَعْنَـٰقِهِمْ أَغْلَـٰلًا فَهِىَ إِلَى ٱلْأَذْقَانِ فَهُم مُّقْمَحُونَ ﴾ (ببشکه موږ گرځولي دي په غاړو ددوی کي طوقونه پس دغه (طوقونه رسېدلي دي) ترزنوددوی پوري پس دوی جگ سري کړی شوي دي(چي له سره ښکته کتلای نشي ) دغه دمشرکانو د حال يوانځور (تصوير) دی چي دوی پخپله گمراهي کي لکه هغه څوک داسي دی چي په لاسونو کي يې اتکړی اوپه غاړه پسې يې تړلي وي نوسريې هغسي اوچت پاتي وي ښکته کولای يې نشي په جلالين کي وايې چي دغه يوتمثيل دی اومقصداچي دوی ايمان ته سرونه نه ټيټوي[1] ابن کثيروايې معناداچي دغه په بدمرغي محکوم کسان به داسي وي لکه دچاچي په غاړه کي طوق وي اولاسونه يې له سره سره ترزني لاندي ورباندي تړل شوي وي[2] سريې لوړ، اوچت پاتي وی او (مقمح) هم دې ته وايې او طوق يې يوازي په غاړه کي وښودل له لاسونوځخه يې ورباندي اکتفاء وکړه ځکه چي طوق اصلا د لاسونولپاره وي چي له غاړي سره يې وروتړي[3] ابوالسعودوايې چي د دوی حال يې له هغه چاسره مماثل وگڼل کوم چي لاسونه يې له غاړي سره تړل شوي وي ﴿ فَهِىَ إِلَى ٱلْأَذْقَانِ ﴾ همدغه طوقونه ترزني پوري رسېدلي وي نودوی نشي کولای حق ته وگوري اويامخ ورواړوي ياسرورته ټيټ کړي ددوی سترگي پټي وي چي حق نهويني اونه يې لوري ته ورگوري[4] ﴿ وَجَعَلْنَا مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا ﴾ (اوگرزولی مودی په مخ ددوی کي سددېوال اوله وروسته ددوی سد(دېوال) ابوالسعود وايې چي همدغه دتمثيل وروستی برخه ده چي تمثيل ورباندي بشپړېږي ﴿ فَأَغْشَيْنَـٰهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴾ پس پټي کړي مودي (سترگي ددوی) پس دوی هيڅ نه ويني ؛ ځکه دوی ددوو دېوالونوترمينځ بند پاتي شول اوهمداددوی دبد حالي بيان دی چي دوی دگمراهي اوسرغړوني په سمځ کي داسي بند دی چي په آيتونو اودلالاتو کي له نظرکولوبېخي محروم دی[5] مفسرين کرام وايې چي دغه ټول پردوی باندي دايمان ددروازود تړلو تمثيل دی دوی خپل مقصودته هډولاره نه مومي[6] ﴿ وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ ﴾ اوبرابردی پردوی باندي چي ووېروې ته دوی (له عذابه) ياونه وېروې ته

---

(1) جلالين ۳ /۳۱۸

(2) أذقان مفرد دذقن اوزني( زنخدان )ته وايې.

(3) مختصرابن کثير ۳ /۱۵۵

(4) ابی السعود ۴ /۲۴۸

(5) تفسيرابي السعود ۴ /۲۴۹

(6) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ /۳۱۹

دوی ؛ څکه دچاچي په عقل دضلالت دتیارو پردې غوړېدلي وي اوپه زړه کي يې شهوتونو اوطغيان خالي جوړي کړي وي بيا ورته تهديدونه گټه نه رسوي ﴿ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ (خو) دوی ايمان نه راوړي ) يعني ددې په سبب دوی ايمان نه راوړي څکه مړ شوی زړه په وېرونه نه راويښېږي اونه ژوندی کېږي انذار اووېرونه خوژوندي زړه ته هغه چي دايمان دمنلولپاره مستعدوي گټه رسوي ، پدې کي رسول الله ﷺ ته تسليت دی اوهمداسي ورته دهغوی دزړونوله حقيقت څخه پرده پورته کول دي چي هغه يومخ ايزه دطغيان توته دی ﴿ إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ ﴾ (بېشکه همداخبره ده چي وېروې ته هرهغه چي دپندمتابعت کوي ) يعني ای محمده ! ستاوېرونه هغه چاته نفع رسوي کوم چي په قرآنکريم بې ايمان راوړي اووربانديِ عمل کوي ﴿ وَخَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ ﴾ اووېرېږي له رحمن څخه په غيب (بې له ليدلو)

ابوحيان وايې چي د ﴿ وَخَشِيَ الرَّحْمَٰنَ ﴾ معناداچي له هغه ذاته چي هغه په رحمت موصوف دی هم وېرېږي سره له دې چي له رحمان څخه خوهيله اوامید کېږي خودی سره له دې چي پدې پوهېږي هم چي الله رحمان دی ترې وېرېږي چي هغه څه نعمتونه چي ورکړي يې دي بيرته څني وانخلي اودغيب معنابې ليدلودی (۱) چي له سترگوپټ وي ﴿ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ ﴾ پس زېری ورکړه (ای محمده) هغه ته په مغفرت ببښني سره او په اجر لوی (دجنت سره) يعني کله چي دوی په انذار اووېرونه نفع واخيسته نوله دوی سره ښايې چي د ستري ببښني زېری ورکړي اوهمداسي دجنت د نعمتونو بشارت ورکړي. ابن کثير وايې چي د(اجركريم) معناډېرپراخ اوښايسته جميل دی اوهمدغه په جنت کي شته (۲)وروسته له دې چي الله ﷻ درسالت په هکله بيان وفرمايل دبعث اونشور يادونه کوي فرمايې: ﴿ إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتَىٰ ﴾ بېشکه موږ همدا موږ به مړي ژوندي کوو(په قيامت کي لپاره د حساب اوجزاء) ﴿ وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا وَآثَارَهُمْ ﴾ او ليکو موږ هغه چي دوی مخکښي لېږلي وو(له خير اوشرنېکي اوبدي نه) اونښي (پلونه) ددوی يعني هغه ددوی قدمونه ليکوچي مسجدونو ته تلل (۳) په حديث شريف کي له حضرت جابر ؓ څخه روايت دی چي دبني سلمه قبيلې وغوښتل مسجد نبوي ته نژدې چي څمکه خالي وه هغه رانيسي اوکورونه پکي ودان کړي رسول الله ﷺ خبرشوويې فرمايل ای دبني سلمه خلگو پخپلو خايونو کي اوسئ ستاسي (پلونه) قدمونه ليکل کېږي ! پخپلو خايونو کي اوسئ ستاسي قدمونه ليکل کېږي ! نو هغوی وويل: اوس نونه غواړو چي له خپله خايه ولېږدو (۴) ﴿ وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُّبِينٍ ﴾ او هرشی شمېرلی دی موږ هغه په اصل ښکاره (لوح محفوظ) کي يعني هرشی له شيانو اوهره چاره له چارو موږ په ليکلي کتاب چي اعمال نامه ده کښلي ده لکه چي الله فرمايې ﴿ يَوْمَ

---

(۱) البحرالمحيط ۳۲۵/۷
(۲) مختصرابن کثير ۳ /۱۵۲
(۳) تفسيرالطبري ۲۲ /۹۹
(۴) أخرجه مسلم في صحيحه.

نَدْعُوا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ ﴾(الاسرآ۷۱) امام یعني دعملونوپه پاڼه د دوی چي پردوی د خیر اوشرداعمالوګواهي وایي. مجاهد او قتاده وایي چي دامام معنالوح محفوظ دی. ابوحیان وایي چي: ﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا﴾ معنا داچي شمېرو موږ دعلم له احاطي څخه یې په کتابت باندي تعبیر وفرمایو هغه چي شیان پرې خوندي کېږي (۱) بیاالله ﷻ دهغه ښارد خلګو کیسه بیانوي کومو چي د انبیاوو تکذیب وکړاوالله هغوی په آسماني چیغه هلاک کړل ﴿وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ﴾ او بیان کړه (ای محمده دغو کفاروته !) یومثل داوسېدونکو دکلي (دانطاکیې ) هغه چي په مثل باندي پېژندل شوي ﴿إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ﴾ کله چي راغلل دوی ته مرسلان استازي (زموږددوی دهدایت لپاره ). قرطبي وایي چي داقریه دګردو مفسرینو په رایه (انطاکیه) ده چي هغوی ته الله درې استازي ور واستول (صادق) (مصدوق) او(شمعون) وو الله ﷻ رسول الله ﷺ ته امروکړ چي مشرکان له دغسي سرانجامه وېروي کوم چي دهغه کلي په خلګو راغلی وواوچابیاویلي چي دغه استازي دحضرت عیسی ﷺ وو (۲) ﴿إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا﴾ کله چي ومولېږل دوی ته دوه استازي پس دوی دهغو تکذیب وکړ ﴿فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ﴾ پس قوت موورکړ دوی ته په دریم سره ﴿فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ﴾ پس وویل دوی بېشکه موږ تاسي ته مرسلان یو(دالله له لوري چي درته لارښوونه وکړو ) ﴿قَالُوا مَا أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا﴾ وویل (دانطاکیې خلګوورته ) نه یی تاسي مګرانسانان زموږ په شان (نوڅرنګه الله تاسي ته وحی کوي موږ ته یې نه کوي ﴿وَمَا أَنزَلَ الرَّحْمَٰنُ مِن شَيْءٍ﴾ اونه دی را لېږلی رحمان هیڅ شی (نه وحی اونه رسالت) ﴿إِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ﴾ نه یی تاسي مګردروغ وایی (د رسالت په دعوی کي) ﴿قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ﴾ وویل: (استازو رب زموږ ته معلوم دی (دا چي) بېشکه موږتاسي ته خامخا درلېږلي شوي یو(اوکه چېري موږ دروغجنان یوالله به راڅخه سخت کسات اوانتقام واخلي. ابن جزي وایي چي دلته یې خبر په لام سره مؤکد کړچي ﴿لَمُرْسَلُونَ﴾ یې ورته وویل څکه دغه دمنکرانو په ځواب کي ووپه خلاف دلمړي ځل چي هلته یوازي اخباروو(۳)﴿وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ﴾ او نشته پرموږ مګرښکاره پیغام رسونه ده (که موایمان راوړ نېکمرغه شوی اوکه موتکذیب وکړبیانو بدمرغه شوی. ابوحیان وایي چي پدې کي ددوی لپاره وعید دی اوداچي دبلاغ صفت یې مبین راووړ ددې لپاره چي

---

(۱) البحرالمحیط ۷/۳۲۵

(۲) القرطبي ۱۵/۱۴ اوکوم چي ویل شوي دغه استازي دحضرت عیسی علیه السلام له خواوو دغه مرجوح قول دی څکه چي الله فرمایي (ماأنتم الابشرمثلنا ) اودادهغه چاپه وړاندي ویل کېږي چي دنبوت اورسالت دعوی یې کړي وي کذافي التسهیل.

(۳) التسهیل في علوم التنزیل ۳/۱۲۱

دغه رسالت دمعجزاتوپه شاهدي تصديق شوى ووكوم چي داستازو په رښتنولي يې دلالت كاوولكه دمورزاده ړندوبيناكول دپيس ناروغانو رنځ ليري كېدل دمړو راژوندي كول لكه چي پدې كيسه كي يې روايت شوى دى (۱) ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّا تَطَيَّرۡنَا بِكُمۡ ﴾ وويل (دانطاكيې خلګو) بېشكه موږ بدفالي نيولي ده په تاسي (ستاسي په بده بلنه چي ايمان ته موبولى اود بتانوله عبادت څخه مورا ګرزوى . مفسرين كراموويلي چي ددوى دبدفالي سبب داوو چي دوى يوداسي دين ته بلل كېږي چي د دوى دين نه دى نودوى هغه عجيب اوبدوګڼه كركه او نفرت يې تري وكړاوپه هغه چايې چي دوى ته يې بلنه وركوله بدفالي ونيوه لكه چي وايې: موږستاسي له بلني څخه په الله پناه غواړو (۲) اوبيايې استازوته اخطار وركړچي ﴿ لَئِن لَّمۡ تَنتَهُواْ ﴾ قسم دى كه منع نه شوى (له دعوى درسالته) اوبللوزموږ توحيد ته چي زموږ دين نه دى) ﴿ لَنَرۡجُمَنَّكُمۡ وَلَيَمَسَّنَّكُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ خامخاسنګسار به كړو موږ هرومرو تاسي اوخامخاوبه رسېږي هرومرو تاسي ته زموږ له لوري دردناک عذاب ) (چي په سخته وژلوبه مو وو ژنو)

﴿ قَالُواْ طَٰٓئِرُكُم مَّعَكُمۡ ﴾ وويل (استازيو) چي بدفالي ستاسي له تاسوسره ده (په سبب دكفر، عصيان اوبدفعلي ستاسو ) ﴿ أَئِن ذُكِّرۡتُمۚ ﴾ آيا نوكه پند دركړى شي تاسي ته ؟(نودغه ته بدفالي واياست ؟) دغه شرط اوځواب يې محذوف دى څكه چي سياق ورباندي دلالت كوي يعني آياكه موږتاسوته دتوحيد بلنه دركوو او درته وعظ كوو تاسوموږ په بدفالي نيسى؟ اوپه ډبرومو ولى ,تعذيب راكوى؟ !

﴿ بَلۡ أَنتُمۡ قَوۡمٞ مُّسۡرِفُونَ ﴾ (خبره داسي نه ده) بلكه يې تاسي يوقوم دانصاف له حده تېرېدونكي ، دغه ددوى لپاره توبيخ او ترټنه اوزجردى ﴿ وَجَآءَ مِنۡ أَقۡصَا ٱلۡمَدِينَةِ رَجُلٞ يَسۡعَىٰ ﴾ اوراغى له ليري طرفه دهغه ښاره يوسړى (حبيب النجار) چي منډي يې وهلې؛ ابن كثير وايې چي دكلي خلګوداستازيودوژلو قصدوكړنويو سړى له ليري څنډي د ښاره په منډومنډو راغلى چي دغه استازي دخپل قوم له شرڅخه وژغوري هغه (حبيب النجار) نومېده اودورېښموجامې به يې اوبدلې زياته صدقه اوخيرات به يې كاووچي دخپلي ګټي وتي نيمايې به يې دالله په لاركي لګوله (۳) . قرطبي وايې چي حبيب نجار دجذام په رنځ اخته وو او كور يې دښارپه ليري دروازه كي وو اوياكاله يې دبتانو په ورانډي عبادت اودعاكوله چي ګوندي د ده ناروغي څنَ ليري اوورباندي ورحمېږي خودعايې ونه منل شوه كله چي يې استازي وليدل او دى يې الله ته وباله ده تري پوښتنه وكړه چي آياكومه معجزه هم شته؟ هغوى ورته وويل هو موږبه الله ته هغه چي قادر متعال ذات دى دعاوكړو ستاناروغي به ښه شي ده ورته وويل: داخو اورمرو دتعجب خبره ده زه اوياكاله كېږي دغوخدايانوته دعاوي كوم چي دغه ناجوړي راڅخه بوزي مګر په وس كي يې نشته ستاسورب به څرنګه په يوه شېبه كي داسي وكړاى شي دوى ورته وويل هو: (ربناعلى مايشآء قدير) زموږ پروردګار په هغه څه چي اراده يې وفرمايې ښه قدرت لرونكى دى

---

(۱) تفسيرالبحرالمحيط ۳۲۷/۷

(۲) شيخ زاده على البيضاوي ۳ /۱۲۵

(۳) مختصرابن كثير ۳ /۱۵۹ اوداچي نوم يې حبيب النجاروو له ابن عباس څخه روايت شوى دى.

اودغه بتان چي دي دوی نه ګټه رسوي اونه تاوان هغه ووچي حبيب نجار ايمان راووړ اودوی پروردګارته دعاوکړه هغه رنځ الله ترې واخيست نوکله چي دانطاکيې خلکوددغو استازودوڅلو هڅې کولې ده ورته رامندې کړې اوهغه يې وویل کوم چي قرآنکريم يې کيسه لولي (۱)﴿ قَالَ يَٰقَوۡمِ ٱتَّبِعُواْ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴾وويل (حبيب نجار) ای زما قومه متابعت وکړئ تاسي دمرسلانو(هغوی چي دالله توحيدته موبولي اوداچي ويې ويل ﴿ يَٰقَوۡمِ ﴾ ترڅوچي د دوی زړونه يې خپل کړي اونصيحت دمنلولپاره يې په نرمښت چمتو کړي وي او بيايې خپله وينا د تاکيداوبيان لپاره مکرره کړه ويې فرمايل: ﴿ ٱتَّبِعُواْ مَن لَّا يَسۡـَٔلُكُمۡ أَجۡرٗا وَهُم مُّهۡتَدُونَ ﴾ (متابعت وکړئ تاسي دهغه چاچي نه غواړي اجربدل حال داچي دوی پرسمه صافه لاره (دخير او صلاح رهي دي) يعني ددغو مخلصينوصادقينو چي له تاسي څخه په ايمان راوړلو کومه مزدوري نه غواړي متابعت وکړي. ﴿ وَمَا لِيَ لَآ أَعۡبُدُ ٱلَّذِي فَطَرَنِي وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ﴾ اوڅه مانع دی ماته (بلکه نشته چي دزړه له صدقه ) عبادت نه کوم دهغه الله چي زه يې پيداکړی يم اوخاص دغه الله ته تاسي بېولی کېږي ) دغه په ارشادکي تلطف دی لکه چي خپل ځان ته نصحيت کوي اودوی ته هم هغه غوره کوي کوم چي ځان ته يې غوره بولي اويوه ول ترتنه هم پکي نغښتي چي څرنګه دخپل خالق عبادت نه کوئ؟ ﴿ ءَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً ﴾ آيااونيسم (پيداکړم) بې له الله نورمعبودان؟ استفهام انکاري دی يعني څرنګه له الله پرته نور معبودان خپل کړم کوم چي نه ګټه رسوي نه اوري نه له خپله عابده (پلوي) څخه يوتکليف دفع کوي ﴿ إِن يُرِدۡنِ ٱلرَّحۡمَٰنُ بِضُرّٖ لَّا تُغۡنِ عَنِّي شَفَٰعَتُهُمۡ شَيۡـٔٗا ﴾ که ماته اراده وفرمايي رحمان د ضرررسولو نودفع به نکړي له ماڅخه سپارښت ددوی هيڅ شی (له هغه ضرره ) يعني دوی (بتان) دومره بېوزله اوخواري حقېري دبرې دي چي نه اوري نه سپارښت کوي اونه چاته ګټه رسوي ﴿ وَلَا يُنقِذُونِ ﴾ اونه به مي خلاص کړي (دالله له عذابه ) ﴿ إِنِّيٓ إِذٗا لَّفِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٍ ﴾ بېشکه زه (کله چي نور معبودان ونيسم) خامخاپه ښکاره ګمراهي کي يم ، اووروسته له وعظ نصيحت څخه يې دخپل اسلام اوايمان داسي اعلان وکړ: ﴿ إِنِّيٓ ءَامَنتُ بِرَبِّكُمۡ فَٱسۡمَعُونِ ﴾ بېشکه زه چي يم ايمان مي راوړی دی په رب ستاسي پس واورئ له مانه (وينازما اونصيحت مي ومنئ مفسرين کرام وايې کله چي دوی ته يې دغه پند اونصيحت واوراوو اودخپل ايمان راوړلو يې په ډاګه اعلان وکړنودوی ګرددېوتن په شکل ورباندي را وغورځېدل اوهغه يې وواژه دده هيڅوک ملاتړی نه ووچي له دوی څخه يې ژغورلای وای (۲) طبري وايې چي دوی هغه په لغتوو واهوترڅوچي مړشواوچابيياويلي چي په ډبروېې وويشت ترڅوچي مړ شو (۳)﴿ قِيلَ ٱدۡخُلِ ٱلۡجَنَّةَ ﴾ (وويل شو(ورته

---

(۱) القرطبي ۱۵/ ۱۸ اودغه روايت دوهب بن منبه دی چي قرطبي راوړی دی.
(۲) مختصرابن کثير ۳/ ۱۵۹
(۳) القرطبي ۲۲/ ۱۰۴

چي څه) ننوزه جنت ته ) يعني کله چي وفات شو الله ورته وويل له ابرارو شهيدانو سره جنت ته ننوزه چي دغه ستاد ربښتوني ايمان او بريمند شهادت جزاده ، ابن مسعودوايي ترهغويي په لغتو واهوترڅويي کولمي راووتلي او الله ورته وويل ﴿ ٱدْخُلِ ٱلْجَنَّةَ ﴾ نوداخل شواوهغه دجنت نعمتونه ورکول شول ددنیاغمونه اوکړاوونه نورپای ته ورسېدل (۱) ﴿ قَالَ يَٰلَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُونَ بِمَا غَفَرَ لِي رَبِّي وَجَعَلَنِي مِنَ ٱلْمُكْرَمِينَ ﴾ وويل ده کاشکي چي داقوم زماپوه شوی وي پدې چي ماته زمارب مغفرت وکړ اوزه يې له عزت ورکول شوي څخه وګرزولم ) دغه تمنايې پدې وکړه چي کاشکي دده قوم پدې سبب پوه شوی وای چي ده ته الله د ګناهونو مغفرت وکړ او جنت ته يې داخل کړخکه چي ده ايمان راووړ اوصبريې وکړ ابن عباس ﷺ وايي چي ده خپل قوم ته په ژونداومرګ دواړوکي نصيحت وکړ(۲) ابوالسعودوايي چي ده دغه تمنا ددې لپاره وکړه ترڅودوی له کفره توبه ګار په ايمان کي داخل اوداجر اوثواب وړ اومستحق وګرزي اودغه داوليااوو هغه تګلاره ده چي په دښمنانوهم مهرباني اوترحم کوي(۳) ﴿ وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِۦ مِنۢ بَعْدِهِۦ مِن جُندٍ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَمَا كُنَّا مُنزِلِينَ ﴾ اونه مو وو نازل کړی پرقوم ددغه (حبيب نجار) وروسته (له شهادته ) دده هيڅ لښکر(له جانبه د ) آسمانه اونه وو موږ نازلونکي (دلښکرودملاتکو ) دغه ددوی دشان سپکاوی اوتصغيردی ﴿ إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً فَإِذَا هُمْ خَٰمِدُونَ ﴾ نه وو(داعذاب ددې قوم) مګريوه چيغه وه (دحضرت جبريل ) پس يوناڅاپه دوی يخ کرخ پراخه وو(مړي لکه مړې ايرې ) داوړ مفسرين کرام وايي چي: په آيت شريف کي ددوی دهلاکولو تحقيردی يعني دوی ددې نه دي چي الله ورته دهلاکولولپاره د پرښتولښکري ورواستوي ؛ روايت شوی کله چي (حبيب النجار) شهيدشو نو دوي ته دالله ﷻ غضب په جوش راغی اوسمدستي يې داسي سزاورکړه چي حضرت جبريل ﷺ ورباندي يوه چيغه وکړه اويومخ ايزه ګردهلاک شول بياالله فرمايي ﴿ يَٰحَسْرَةً عَلَى ٱلْعِبَادِ ۚ مَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ ای حسرت افسوس دی په بندګانو (کافرانو ) نه دی راغلی دوی ته هيڅ رسول مګروو دوی چي په هغه پسي به يې توکي مسخرې کولې . اوهمداسي په هرځای اوهروخت کي دمجرمينودود اودستوروي .بيضاوي په حاشيه کي ليکي چي دوی ددې وړدي چي په ځانونو حسرت وخوري اويانورکسان ددوی په هکله حسرت اوافسوس ووايي ځکه ددوی کړه وړه په مسخرو ملنډو کي داسي پړاوته رسېدلي وو چي پخپلو استازيوبه يې استهزاګاني کولې که هرڅاليدلي وای نوبه يې ويل چي ای حسرته افسوس ددغومحرومو کسانوپه حال چي ايمان يې په کفر اونېکمرغي يې په بدمرغي بدله کړه (۴) اوهمدارازپه آيت شريف کي دقريشو کفاروته تعريض دی چي دسيدالمرسلين تکذيب يې

---

(۱) مختصرابن کثير ۳ /۱۷۰

(۲) دغه دابن عباس وينادده کشاف په مرفوع حديث شريف کي دغه خبره راوړي چي هغه په ژونداومرګ کي خپل قوم ته نصيحت وکړ مشهوره داچي دغه دابن عباس وينادده.

(۳) ابوالسعود ۴ /۲۵۲

(۴) حاشية زاده علی البيضاوي ۳ /۱۲۸

کاوونوکله چي يې ددوی لپاره داصحاب القريه مثال راوړ مشرکان يې پدې وترټل چي د پخوانيو له حاله څخه يې عبرت وانه خيستل ﴿ أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴾ آيا نه ويني دغه (کفار) چي څومره ډېر موږ له دوی نه پخوا اهل دزمانې هلاک کړي دي ؟ چي بېشکه هغه (هلاک کړې شوي دوی ته بيرته نه راګرزي ((۱)) ﴿ وَإِن كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴾ او نه دي دا ټول (خلګ پخواني) پخواني او بيرته راتلونکي مګر ټول زموږ په نزد حاضر کړی شوي دي لپاره دجزاء په ورځ د قيامت کي چي هريوه ته به پخپلو کړو وړو ددوی جزاورکړو که يې خيرکړی وو اوکه شر ؟ ابو حيان وايي چي: دغه جمله وروسته دهلاکت له يادوني راغلي چي ددې څرګندونه وکړي چي الله ﷻ دغه هلاک شوي کسان هم نه پرېږدي بلکه وروسته له هلاکته به يې دحساب لپاره راغونډوي اوبيا ثواب اوعقاب ورکول کېږي ((۲)).

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱ – تاکيدله يوه نه په زياتومؤکداتوباندي اوداهله چي مخاطب منکروي لکه ﴿ إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ ﴾ څکه چي دواړه ځايه په (ان) او(لام) باندي تاکيد راغلی اودغه ډول ته انکاري تاکيد وايي

۲ – تمثيلي استعاره چي فرمايي: ﴿ إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا ﴾ په آيت شريف کي دکفاروحال چي له هدايت اوايمان څخه ممانعت کوي له هغه چا سره تمثيل شوی چي لاسونه يې په طوقونوباندي له غاړي سره تړل شوي اوسريې جګ پاتي شوی وي نه يې ښکته کولای اونه يې يوبل لوري ته چي وګوري خوځولای شي اوهغه چي مخ په وړاندي يې دېوال وي خپل مقصودته نشي رسېدلای اودغه دتمثيلي استعارې په توګه راغلی دی.

۳ – دطباق صنعت د ﴿ مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا ﴾ او ﴿ وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا ﴾ ترمينځ.

۴ – دسلب طباق لکه ﴿ أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ ﴾ په کلام کي.

۵ - ناقص جناس لکه داچي ﴿ نَحْنُ نُحْيِي ﴾ څکه چي دځينوتوروتغيرپکي دی.

۶ – اطناب دفعل په تکرار سره لکه پدې کلام کي ﴿ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِينَ اتَّبِعُوا مَن لَّا يَسْأَلُكُمْ أَجْرًا ﴾.

۷ – استفهام دتوبيخ لپاره لکه ﴿ أَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِ آلِهَةً ﴾ چي راغلی دی.

۸ – حذف کوم وخت چي سياق ورباندي دلالت کوي لکه ﴿ قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ﴾ يعني کله چي يې په اسلام دايمان راوړلو اعلان وکړ اودوی وواژه نوورته وويل شول چي جنت ته ننوزه !.

۹ – اشتقاقي جناس چي د ﴿ تَطَيَّرْنَا... طَائِرُكُم ﴾ او ﴿ أَرْسَلْنَا... مُّرْسَلُونَ ﴾ ترمينځ دی.

---

(۱) مختصرابن کثير.

(۲) البحرالمحيط ۳۳۵/۷

۱۰ - دفواصلومراعات کول چي له قرآني خانګړتياووڅخه دي اودبيان ښه ښکلااوپه اورېدلو ښه اغيزپرې باسي.

تنبيه:
دقرآنکريم له محاسنواوخارق العاده بلاغته څخه يودادی چي په کيسواومهموخبرونو کي خورا له ايجاز اولنډون څخه کاراخلي دکيسي مغز اوروح ته اشاره کوي څکه له کيسوڅخه مقصدپنداو عبرت اخيستل وي له دي کبله بې دلته دهغه ښارنوم اودهغه چاچي دوی بې دالله لوري ته بلل يادنکړ نه بې داستازي کرامونومونه واخيستل څکه دغه دکيسي موخه اوهدف نه دي اوهمدارنګه ټولي قرآني کيسي داډول موندلای شی چي په خورا ايجاز کي بې بشپړبيان فرمايلی وي.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلْأَرْضُ ٱلْمَيْتَةُ أَحْيَيْنَٰهَا وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَأْكُلُونَ ﴿٣٣﴾ وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنَّٰتٍ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَٰبٍ وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ ٱلْعُيُونِ ﴿٣٤﴾ لِيَأْكُلُوا۟ مِن ثَمَرِهِۦ وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ ۖ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ﴿٣٥﴾ سُبْحَٰنَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلْأَزْوَٰجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلْأَرْضُ وَمِنْ أَنفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٦﴾ وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ ٱلنَّهَارَ فَإِذَا هُم مُّظْلِمُونَ ﴿٣٧﴾ وَٱلشَّمْسُ تَجْرِى لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴿٣٨﴾ وَٱلْقَمَرَ قَدَّرْنَٰهُ مَنَازِلَ حَتَّىٰ عَادَ كَٱلْعُرْجُونِ ٱلْقَدِيمِ ﴿٣٩﴾ لَا ٱلشَّمْسُ يَنۢبَغِى لَهَآ أَن تُدْرِكَ ٱلْقَمَرَ وَلَا ٱلَّيْلُ سَابِقُ ٱلنَّهَارِ ۚ وَكُلٌّ فِى فَلَكٍ يَسْبَحُونَ ﴿٤٠﴾ وَءَايَةٌ لَّهُمْ أَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِى ٱلْفُلْكِ ٱلْمَشْحُونِ ﴿٤١﴾ وَخَلَقْنَا لَهُم مِّن مِّثْلِهِۦ مَا يَرْكَبُونَ ﴿٤٢﴾ وَإِن نَّشَأْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيخَ لَهُمْ وَلَا هُمْ يُنقَذُونَ ﴿٤٣﴾ إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَٰعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴿٤٤﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّقُوا۟ مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٤٥﴾ وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ ءَايَةٍ مِّنْ ءَايَٰتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا۟ عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴿٤٦﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ أَنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنُطْعِمُ مَن لَّوْ يَشَآءُ ٱللَّهُ أَطْعَمَهُۥٓ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٤٧﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤٨﴾ مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً تَأْخُذُهُمْ وَهُمْ يَخِصِّمُونَ ﴿٤٩﴾ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً وَلَآ إِلَىٰٓ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ ﴿٥٠﴾ وَنُفِخَ فِى ٱلصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ ٱلْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ﴿٥١﴾ قَالُوا۟ يَٰوَيْلَنَا مَنۢ بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا ۜ ۗ هَٰذَا مَا وَعَدَ ٱلرَّحْمَٰنُ وَصَدَقَ ٱلْمُرْسَلُونَ ﴿٥٢﴾ إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴿٥٣﴾ فَٱلْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٥٤﴾ إِنَّ أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ ٱلْيَوْمَ فِى شُغُلٍ فَٰكِهُونَ ﴿٥٥﴾ هُمْ وَأَزْوَٰجُهُمْ فِى ظِلَٰلٍ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ مُتَّكِـُٔونَ ﴿٥٦﴾ لَهُمْ فِيهَا فَٰكِهَةٌ وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ ﴿٥٧﴾ سَلَٰمٌ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ ﴿٥٨﴾ ﴾ يس: ۳۳ - ۵۸

## مناسبت:

کله چي الله ﷻ داهل قریه کیسه راوړه اودهغوی هلاکت یې په چیغه باندي بیان کړنودلته الله پخپل قدرت اووحدانیت باندي دلائل اوبراهین ښيي هغه چي مړوې اوکښتونه شنه کوي شپه په ورځ رادبره کوي لمر اوسپوږمۍ دهغه په ځواک اوقدرت ځرخي وروسې یې دمشرکانو هغه شکوک اوشبهات چي دبعث اونشور په هکله یې درلودل په ډاګه کړل اوکوتلي دلائل اوښکاره براهین یې ورته وړاندي کړل.

## لغتونه:

(آیة) نښې اوعلامې ته وایي ځکه داهم دالله په وجود نښه اودلیل دی ابوالعتاهیة وایي:

وفي کل شئ له آیة * تدل علی انه واحد

په هرڅه کي داسي نښانې شته - چي پردې دلالت کوي چي الله واحد دی.

(الازواج) اقسام اوډولونه (نسلخ) (سلخ) کښلولته وایې الله فرمایې: ﴿ فَٱنسَلَخَ مِنۡهَا ﴾ (الاعراف ۱۷۵) ویل کېږي (سلخ الجزار جلد الشاة) قصاب دپسه پوستکی وکیښ غوښه یې بربنډه کړه (العرجون) له (انعراج) څخه اخیستل شوی اوکږوالي ته وایې اوعرجون هغه دخرمانښاخ ته ویل کېږي چي دتازه خرماوو وښکي پسې وي جوهري وایې چي دغه هغه دوښکونښاخ ته چي کوږوي اوکله چي وښکی ځني پرې کول شي دی په ونه پسي وچ کلک پاتي شي وهل کېږي (۱)(المشحون) ډک کړی شوی په درنوشیانو(صریخ) فریادرس(یخصمون) پخپلو چاروکي جګړه کونکی چي په خواوشاباندي آګاه نه وي (أجداث) دجدث جمع اوقبرته ویل کېږي (ینسلون) په منډه راوزي ویل کېږي(عسل الذئب ونسل) یعني چټک وځغلېدولېوه.

## تفسیر:

﴿ وَءَايَةٞ لَّهُمُ ٱلۡأَرۡضُ ٱلۡمَيۡتَةُ أَحۡيَيۡنَٰهَا ﴾ اویودلیل (دقدرت) دی دوی ته ځمکه مړه (وچه کلکه) چي موږ هغه ژوندی کوو (په اوبوسره دباران. مفسرین کرام وایې چي دځمکي مړینه وچوالی دی اوژوندی کول یې په باران باندي کېږي کله چي الله جل جلاله ورباندي باران وکړي نوو خوځېږي اوراوپړسېږي اوله هره ډوله نباتاتورا وټوکوي (زرغون کړي) ځکه الله له دې وروسته فرمایې ﴿وَأَخۡرَجۡنَا مِنۡهَا حَبّٗا فَمِنۡهُ يَأۡكُلُونَ ﴾ اوراوباسو موږ له هغې ځمکي څخه دانې نو له خینوددغو (دانوڅخه) دوی خوري (اوورباندي ژوندکوي قرطبي وایې چي الله جل جلاله دوی په دغه وینا باندي تنبیه کړل چي مړي هم داسي راژوندي کولی شي اودالله دتوحید اودکمال دقدرت یادونه یې ورته وکړه چي الله ځمکه له مړیني وروسته په نباتاتو زرغونولوژوندۍ کړه اوبیاله دغو خینودانو څخه دوی خوري اوغذائي مواد ترې جوړوي (۲)﴿ وَجَعَلۡنَا فِيهَا جَنَّـٰتٖ مِّن نَّخِيلٖ وَأَعۡنَٰبٖ ﴾ اوپیداکړي مودي په دغه ځمکه کي باغونه له (هره قسمه د) خرماووا وله (هرراز) انګورو یعني په دې ځمکه کي موښایسته باغونه پیدا کړي چي

---

(۱) القرطبي ۱۵/ ۳۷ -القاموس المحیط
(۲) القرطبي ۱۵/ ۴۰

خرماوي اوانگور پکې وي ﴿وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ الْعُيُونِ﴾ اوجاري کړي مودي په دغي (ځمکي) کي له چينو دخوړو (اوبو) څخه اونهرونو بهېدونکو په ډېروښارونو ملکونو کي ﴿لِيَأْكُلُوا مِن ثَمَرِهِ وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ﴾ لپاره ددې چي وخوري دوی له مېوودهغو(مذکوره شيانو) اوندي پيداکړي (دغه مېوې) لاسونوددوی . ابن کثيروايي کله چي الله په خپلومخلوقاتودکښتونوزرغونولو احسان په ياد کړ وروسته يې دمېوو اودهغودډولونويادونه وکړه او دغه يوازي دالله درحمت څرګندوی دی ددوی د خپل محنت اووس چاري خبره نه ده څکه الله وروسته فرمايي ﴿أَفَلَا يَشْكُرُونَ﴾ آياپس دوی شکر نه کاږي (په دغه نعمتونو دالله) ؟ اوداابن جريررايه ده چي (ما) (د الذی) په معنادی يعني ترڅووخوري دوی له هغومېوو اوله هغو چي ددوی لاسونو کښېنولي او کرلي دي([1]) ﴿سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا﴾ پاکي ده هغه الله ته چي پيداکړي يې دي دغه (تولي) جوړې تول (چي مختلف شکلونه رنګونه اوخوندونه لري) ﴿مِمَّا تُنبِتُ الْأَرْضُ وَمِنْ أَنفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ﴾ (له هغوڅيزونوچي ځمکه يې زرغونوي اوله ځانونو ددوی او له هغو (مخلوقاتو) چي دوی يې نه پېژني ) يعني هغه چي ځمکه يې شنه کوي لکه ونې، خرماوي ، کښتونه، مېوې، فصلونه اوله ځانونو ددوی نه نارينه او ښځينه اونورمخلوقات او عجيب او غريب شيان لکه چي الله فرمايي ﴿وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ (الذاريات ۳۹ )([2]) ﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ اللَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَإِذَا هُم مُّظْلِمُونَ﴾ اويودليل (دالهي قدرت ) دوی ته شپه ده چي راوباسو موږله هغې(شپې) څخه ورځ پس ناڅاپه دوی په تياروکي تنوتونکي وي) يعني دده(الله)په بشپړځواک اوقدرت يوه دانښاني ده چي له شپې څخه رڼابېلوي نودوی په تياره شپه کي ننوزي ، په آيت شريف کي دې لوري ته اشاره شته چي اصل تياره اوروښنايي عارضي بڼه لري کله چي لمر ډوب شي نوله شپې څخه ورځ ووزي (زائل شي) نوهغه اصل چي تياره ده رادبره شي ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ (بل دليل دالله د قدرت ) لمر(دی چي) خي پخپلي ټاکلي لاري ) باندي،پخپل فلک کي نه ځني خطاکېږي اونه ځني تجاوزکوي ترهغه وخته چي څوېږي وروستۍ نېټه راځي چي دقيامت ورځ ده اودنړۍ وراني به پېښېږي . ابن کثيروايي چي دالله ﷻ په دې ويناکي چي فرمايي ﴿لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ دوې خبري دي يوه داچي مرادله دې څخه دلمر مکاني مستقردی کوم چي ترعرش دلاندي ځمکي ته نژدې دی لکه چي دبخاري په حديث کي راغلي ؛ ابوذر ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ

---

([1]) مختصرابن کثير ۳ /۱۷۲

([2]) سبحان العلی القديرپخواداسي مشهوره اټکل ووچي نراوښځه دانسانانواوحيواناتوترمينځ شته قرآنکريم راغی اودغه معجزه يې وښودله چي نراوښځه په ډېروشيانوکي وجودلري بيايې په دې نژدې وروستيوکي پوهانوداکشف کړه چي نراوښځه دانسان ، حيوان ،نبات اواتومي ذرې ترمينځ لاهم شته کومه چي ترټولوکوچنۍ ماده ده له دوو مختلفوبرښنايي ورانګو جوړه شوي چي (سالبې ،موجبې) يې بولي کله چي سره يوځای شي نوموجوديت يې تثبيت شي همداسي دنباتاتو ترمينځ نارينه اوښځينه غړي شتون لري. ﴿سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنبِتُ الْأَرْضُ وَمِنْ أَنفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ﴾.

ماته وفرمايل: اى ابوذره ته پوهېږې چي لمرچېري لوېږي ؟ ماورته وويل: چي الله او رسول پرې ښه خبردي ويې فرمايل: لمردرومي ترڅودعرش لاندي سجده وکړي، دوهمه خبره داده چي مقصدله مستقرڅخه آني مستقردی چي دهغه دتگ وروستی منتهاء چي دقيامت ورځ ده اخيستل کېږي کله چي يې حرکت په سکون بدلېږي اوتگ يې پای ته رسېږي او گرده نړۍ نړېږي اوداسي قرائت هم شوی دی چي (لامستقرلها ) يعني قرار اوآرام نه مومي بلکه شپه او ورځ په حرکت کي وي نه ستومانه کېږي اونه

دربږي (۱) ﴿ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴾ دغه (حرکت دلمر اودوران يې په دقت سره) اندازه ده دښه غالب

(پخپله پاچهي کي) ښه دانا (پخپل مخلوق باندي) (۲) ﴿ وَٱلْقَمَرَ قَدَّرْنَٰهُ مَنَازِلَ ﴾ اوسپوږمۍ ته اندازه کړي دي موږ منزلونه چي په هغوکي درومي ترڅومياشتي ور باندي معلومي شي اودغه اته ويشت منزله داته ويشتوشپولپاره دي هره شپه په يومنزل کي راکوزېږي نه ترې خطاکېږي اونه ځني وزي کله چي

وروستي منزل ته ورسي نونړۍ باريکه اوکږه شي ﴿ حَتَّىٰ عَادَ كَٱلْعُرْجُونِ ٱلْقَدِيمِ ﴾ ترهغه پوري چي وگرزي (په نظر کي) لکه وچه څانگه دخرما (چي کلکه کږه زېړه او نرۍ شي. ابن کثير وايې الله پاک سپوږمۍ د مياشتو دمعلومولو لپاره هسي گرزولي لکه چي يې لمر دشپواوورځو د پېژندني لپاره خوددوی دتگ ترمينځ يې توپير کړی دی لمرهره ورځ را خېژي اوپرېوزي اود راختلو او پرېوتلو ځايونه په دوبي اوژمي کي بدلوي چي له دې کبله ورځي اوږدېږي اوشپې لنډېږي بيا شپې لوېږي او ورځي لنډېږي دغه ورځني کوکب (ستوری) دی او سپوږمۍ بيامنزلونه لري په لومړي منزل کي نړۍ چي خورالږ رڼالري راخېژي اوبيايې دوهمه شپه رڼا زياته اومنزل يې لوړشي او ورپسې هر څومره چي لوړېږي رڼايې زياتېږي ترڅو په څورلسمه شپه بېخي بشپړه او رڼا (نور) يې کامل شي له دې په هيسي بياورو وروررڼايې لږېږي ترڅو د مياشتي وروستي پړاوته ورسېږي اوهلته بيالکه د خرمادهغه پخواني وچي کلکي څانگي په شان لکه کږه لېنده غوندي نرۍ شي .مجاهدوايې چي د (عرجون) معنا دلمدوخرماوو اوښکي ته کله چي وچ، زوړ، اوکوږشي وايې او بيادبلي مياشتي په لومړيو کي نوي را دبره شي ﴿ لَا ٱلشَّمْسُ يَنۢبَغِي لَهَآ أَن تُدْرِكَ ٱلْقَمَرَ ﴾ (نه دی وړ لمر لره (اوله وسه يې پوره نه ده) چي سپوږمۍ لاندي کړي ) يعني لمرنشي کولای اونه ورسره ښايې چي له سپوږمۍ سره په شپه کي يوځای اودهغې رڼاورکه کړي څکه دغه

---

(۱) مختصرابن کثير ۳ /۱۲۲

(۲) شهيد سيدقطب پخپل تفسيرفی ظلال القرآن کي ليکي چي لمرپخپل ځان راتاوېږي گمان داکېدوچي هغه پخپل ځای ثابت دی چېري چي راڅرخي خوپه دې وروستيوکي دانتېجه ترلاسه شوي چي هغه پخپل ځای کي مستقرنه بلکه فعلا په يولوري باندي په دغه پراخه فضاء کي روان دی چي په دومره سرعت سره درومي کوم چي دفلکياتوپوهانودهغه چټکتيااوگرنديتوب په يوه ثانيه کي دوولس ميله مسافه ښودلي ده اوښه خبردار الله پرورگار دی دهغه په تگ اومصير خبردی کوم ذات چي فرمايې ﴿ وَٱلشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ﴾ دغه مستقرچي دی ور رسي هيڅوک پرې نه پوهېږي يوازي الله سبحانه وتعالی ته دهغه علم شته کله چي موږ تصوروکوودغه لمريوملیون واري تردې څمکه لوی دی اودادومره غټه کتله چي پدې فضاکي روانه وي اوهيڅ څېزيې تکيه اوټينگول نه کوي نودهغه ذات قدرت چي په دغه وجود کي تصرف کوي دهغه دځواک اوپوهي يوڅه درک موږ ته لگېدلی شي اوالله رښتيافرمايې چي ﴿ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴾.

دنياتاتو(تلوين) ته تاوان رسوي اودبندګانو د مصلحتونوخلاف دي. طبري وايي چي: لمرلره دالائقه نه ده چي سپوږمۍ لاندي کړي ور ورسي نوبه يې رڼاولاړه شي او ګرد وختونه به ورځ وي شپه په پکي هيڅ نه وي ﴿وَلَا ٱلَّيۡلُ سَابِقُ ٱلنَّهَارِۚ﴾ اونه شپه ړومبی کېدونکي ده له ورځي چي رڼايې يوسي اوټول وختونه شپه شي[1]﴿وَكُلّٞ فِي فَلَكٖ يَسۡبَحُونَ﴾ اودغه ټول (فلکي أجرام) په آسمان کي چورلېدونکي دي. . .

حسن رحمه الله وايي لمر، سپوږمۍ او ستوري په فلک کي دي چي د آسمان او ځمکي ترمينځ دی له کوم ځېزسره نښتي نه دي که نښتلي واى بيابه يې جريان نه درلود[2] دآيت شريف غرض دالله ﷻ دقدرت بيان دی چي په دې کائناتوکي يې په خورا دقيق اومنظم ډول دغه نظام پلی کړی چي لمرخپل مدارلري دسپوږمۍ خپل مداردی دستورو دهريوو جلاځانګړی مدار دی چي په خپل جريان اوچورلېدلوکي نه ترې خطاکېږي اونه هم ترې وزي اوتجاوز کوي نه خو يوله بله سره لګېږي لکه چي قتاده رحمه الله وايي هريوه ته ټاکلی حداونښه شته چي له هغه څخه نه وزي او نه هم کوتاهي کوي ترڅوچي وروستۍ نېټه يې راورسېږي چي دقيامت ورځ ده نوهلته به بيا الله لمر او سپوږمۍ دواړه سره يوځاى کوي لکه چي فرمايي ﴿وَجُمِعَ ٱلشَّمۡسُ وَٱلۡقَمَرُ﴾ (القيامة ۹) نوهله به د کائناتو نظام درهم برهم شي بشري ژوند به له دغي ځمکني ستوري څخه پاى ته ورسېږي[3]﴿وَءَايَةٞ لَّهُمۡ أَنَّا حَمَلۡنَا ذُرِّيَّتَهُمۡ فِي ٱلۡفُلۡكِ ٱلۡمَشۡحُونِ﴾ (اويوه نښه (دقدرت دالله) دوی ته داده چي بېشکه موږ سپاره کړي دوي اولاددوی په بېړۍ (دنوح) ډکه کړی شوي کي) يعني دالله په بشپړقدرت اوځواک يوه روښانه نښه داده چي موږ ددوی پلرونه دآدم اولاده دنوح ﷺ په بېړۍ کي سواره کړي ووچي الله ورته امرکړی ووسپاره کړه له هري جوړې دوه دوه په التسهيل کي وايي چي :دلته يې په ځانګړي توګه د اولادې يادونه وکړه ځکه دغه په احسان ځرګندولواوامتنان کي مبالغه ده اودوي ته اشاره ده چي ترقيامته نور وروستي هم په بېړيو کي سپروي ﴿وَخَلَقۡنَا لَهُم مِّن مِّثۡلِهِۦ مَا يَرۡكَبُونَ﴾ اوپيداکړي دي موږدوی ته په شان ددي(بېړۍ) هرهغه چي دوی پرې سپرېږي (اوليري ځايونوته يې رسوي اوچي دغو (نواقلو) ته يې دالله دپيدا ايښت نسبت وکړځکه چي الله جل وعلايې دجوړولو زده کړه انسان ته ورکړي ده. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي دغه اوښان اونورټول دسپرلي شيان دي ځکه دغه په ځمکه کي داسي حيثيت لري لکه بېړۍ په سمندر کي[4]﴿وَإِن نَّشَأۡ نُغۡرِقۡهُمۡ فَلَا صَرِيخَ لَهُمۡ﴾اوکه موږ اراده

---

[1] الطبري ۲۳/ ۷

[2] القرطبي ۱۵/ ۳۳

[3] شهيد سيد قطب رحمه الله وايي چي (دستوروا وسيارو ترمينځ خورا پراخه مسافه اوواټن شته الله دغه پراخ واټنونه پدې کون کي ددې لپاره پيداکړي چي دغه فلکي اجرام له ټکراولګېدلو څخه وژغوري ددغواجراموخوځښت اوحرکت په دغه ويره اوپراخه فضاء کي هغي بېړۍ ته ورته دی چي په پراخ سمندرکي روانه وي بېړۍ له خوراپنډوالي اولويوالي سره سره په سمندرکي داسي ايسي ته به وايو تکی (نقطه)لامبي همداسي دغه ستوري اوسيارې په دې وېرونکي فضاکي اوسي)!!

[4] تفسيرالقرطبي ۱۵/ ۳۵ هلته دابن عباس رضي الله عنهما څخه يوبل قول هم روايت شوی دی چي وايي (من مثله) معناداچي الله نوري بېړۍ دنوح دبېړۍ په شان پيداکړي چي دوی پکي سپرېږي اوداځرګندهم دی ځکه وروسته فرمايي :(وَإِن نَّشَأۡ نُغۡرِقۡهُمۡ).

وفرمايونوغرق كړي به مو وو دغه (سورلی د بېړی ) پس دوی لره به نه وي هيڅ فريادرس ﴿ وَلَا هُمْ يُنقَذُونَ ﴾ اونه به دوی خلاصولی کېږي (له ډوبېدلو ) ﴿ إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴾ مگر(نه يې غرقوو) په رحمت مهرباني خپلې سره او لپاره دنفعي اخيستلو ترنېټې (دمرگ ددوی) پوري. الله ﷻ دلته داسې بيان وفرمايو چې دغه په بحر کې ددوی سورلې په بېړيو کې له سترو نښانو څخه دي ځکه بېړۍ چې کله په درنوبارونو بار او سورلۍ پکې وي داوبوپه سرد پاسه يوه څرگنده معجزه ده چې يوازې داالله ﷻ دقدرت ، حکم او تصرف چلېږي چې په بېړۍ کې خواص داوبو خاصيت اودباد اوهوا خواص داگرددالله په حکم ، پيدا ينښت او تقدير پوري اړونددي ځکه نوخوراستره بېړۍ په سمندرکې لکه بڼه په هواکې داسې وي که دالله ﷻ رحمت او مهرباني يې ونه ژغوري نودشېې اوورځې په يوه شېبه کې به له ډوبېدلوسره مخامخ شي ، هغه کسان چې دبحري جهازونو سفرونه يې کړي اودسمندر وېرونکې خطرونه يې ليدلي پدې پوهېږي چې درياب اوسمندرڅومره وېرونکی دی دوی ته دالله رحمت ښه څرگندوي اوپدې پوهېږي چې يوازې داالله رحمت دی چې دوی له تونده بادونو ،اوچتوڅپو اوطوفانونو څخه ژغوري دوی ته ددې کلام چې ﴿ إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا ﴾ معناله ورايه څرگنده ده اوخورابنه پرې پوهېږي (فسبحان الله القديرالرحيم) ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّقُوا مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ (اوكله چې وويل شي دوی ته چې ځان وساتئ له هغه (دنيوي عذابه) چې ستاسې په مخ کې دی اوله هغه أخروي عذابه) چې وروسته درپسې راځي ښايي چې پرتاسې رحم وکړی شي ) نودوی مخ وگرزوي) کله چې الله تعالی د خپل قدرت دلائل او د رحمت آثاربيان کړل نودمشرکانوړندوالی اوله حق څخه څنگ کول يې داسې انځورکړل چې کله مشرکانوته وويل شي چې دالله له غضب اوقهرڅخه ووېرېږئ هغه قهرچې څرنگه يې ستاسې په مخکنيوأمتونو عذابونه نازل کړي ځکه چې دوی دخپلو انبياوو تکذيب کاوو او همداسې دآخرت له عذابونوڅخه ووېرېږئ ترڅو درباندې رحم وشي دشرط ځواب حذف شوی هغه دا چې دوی مخ وگرزوي اوتکبروکړي په دغه محذوف باندې داالله ﷻ داقول دلالت کوي چې ﴿ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴾ قرطبي وايې چې دشرط ځواب حذف شوی اوتقديريې داسې کېږي چې کله دوی ته داسې وويل شي نواعراض وکړي او دليل يې داوروسته راتلونکی آيت دی چې فرمايې ﴿ وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ ﴾ .. نوپه دې باندې يې له ځواب څخه بسنه (کفايت) وکړ[1] ﴿ وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴾ او نه راځي دوی ته هيڅ دليل له دلائلو(دقدرت) درب ددوی مگردي دوی له هغو(دلائلو) څخه مخ گرزونکې. ابوالسعودوايې چې دآيتونو اضافت رب ددوی ته لپاره د تفخيم دشأن دهغوی دی چې دوی په دې مخ گرزلو دسترې گناه مرتکب شوي دي مرادله آيتونوڅخه يا خوتنزيلي آيات دي چې دالله په بديع صنعت اوبشپړنعمت گواهي ورکوي اوياهم تکويني آيات دي چې معجزاتواوعجائب مصنوعاتو ته شامل دي اودهغوی څخه هغه هم دي چې ذکرشول کوم چې دالله په وحدانيت يې شاهدي

---

(1) القرطبي ١٥/٣٦

ویله (۱) ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ أَنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ ﴾ او کله چي وویل شي دوی (کفارو) ته په نصیحت ) چي نفقه ورکوئ (فقیرانو ته ) ځیني له هغو مالونو څخه چي الله تاسي ته روزي درکړي ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنُطْعِمُ مَن لَّوْ يَشَآءُ ٱللَّهُ أَطْعَمَهُۥٓ ﴾ نو وایي هغه کسان چي کافران شوي دي ( په استهزاء او ملنډو ) هغو کسانو ته چي ایمان یې راوړی دی آیا طعام ورکړو موږ هغه چاته که الله اراده فرمایلي وای نو طعام به یې ورکړی وو ؟ ! (دوی خو الله فقیران کړي دي) ﴿ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِى ضَلَـٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ نه یې تاسي (ای مؤمنانو) مګر په ښکاره ګمراهي کي یاست ؛ چي موږ ته وایاست هغو کسانو ته خواړه ورکړئ کوم چي الله فقیران کړي او مسکینان یې پیدا کړي دي . ابن عباس وایي : په مکه مکرمه کي یوه ډله زندیقان وو کله چي به ورته وویل شول مسکینانو ته خیرات صدقه ورکړئ نو دوی به ویل : نه والله که یې ورکړو یو څوک چي الله یې فقیر کوي موږ به هغه ته خوراک ورکوو ؟ ! (۲) مقصد د دوی په مؤمنانو باندي رد کول دي لکه چي دوی وایي : که څېري خبره داسي وي لکه چي تاسي (مؤمنان) ګمان کوی چي الله رازق دی نو دغو فقیرانو ته به یې روزي ورکړي وه ؟ نو تاسو ولي له موږ څخه د نفقې ورکولو غوښتنه کوئ ؟ هو دغه ناپوهان پدې نه پوهېږي چي د ارزاقو خزانې د خلاق ځينتن په لاس کي دي او همدغه ذات (چي څوک بډای او څوک نېستمن پیدا کړي دغه یې امتحان او ازموینښت دی چي بډای په بېوزله څرنګه لورېینه کوي او مسکین فقیر څرنګه صبر او زغم خپلوي له فقیر څخه یې مال دولت د بخل له امله نه دی بند کړی او همداسي بډای او دولت مند ته یې د نفقه کولو امر دارتیا او احتیاج له مخي نه دی صادر کړی بلکه دا یوازموینښت دی (والله یفعل مایشآء) دالله په مشیت او حکم باندي هیڅ ګوت نیونه (اعتراض) نشي کېدای ﴿ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴾ (الانبیآء ۲۳) وروسته بیا د مشرکانو انکار چي له آخرته یې کوي او یایې استبعاد له قیامته داسي بیانوي ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَـٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ﴾ او وایي (کفار) چي کله به وي دغه وعده (د قیامت چي موږ پرې وېروی) که څېري یې تاسي رښتوني صادقان (پخپله دعوی کي چي بعث او نشور حساب او عذاب شته ) الله د دوی په تردید کي داسي فرمایي : ﴿ مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً تَأْخُذُهُمْ ﴾ انتظار نه کوي (کفار) مګر د یوې چیغي (چي یو ناڅاپه به دوی ونیسي او خبر به هم نه وي) ﴿ وَهُمْ يَخِصِّمُونَ ﴾ حال داچي دوی به جګړې سره کوي (په خپلو بازارونو او معاملاتو کي نابیره به یې چیغه ونیسي او پخپلو ځایونو کي به ومري . ابن کثیر وایي چي دغه – والله اعلم – نفخة الفزع دی چي اسرافیل ﷺ به په شپېلۍ کي پو کړي او ګرد خلک به پخپلو کاروبارونو لګیاوي یو له بله به له دود عادت سره سم شخړې کوي چي الله ﷻ به اسرافیل ﷺ ته د پو کلو امر وکړي او هغه به یو پوکی اوږد اوزیات وکړي چي د ځمکي په مخ به هیڅوک پاتي نشي چي دغه شپېلۍ به له

---

(۱) ابو السعود ۴/ ۲۵۵
(۲) القرطبي ۱۵/ ۳۷ قرطبي وایي چي دغه خواب یې په مسلمانانو پسي د ملنډو او استهزآء په ډول کړی دی.

آسمانه اوري اوغاړه به ورته کړوي (۱) دغه دالله ﷻ وينا ده چي فرمايي: ﴿ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ ﴾ پس توان به يې ونشي دوصيت اونه به خپل اهل ته بيرته ورشي ځکه نورو خت تېر شوی دی. په حديث شريف کي راځي چي: قيامت به په داسي حال کي راځي چي دوو تنو به جامه غوړولي وي يوله بله به يې بيه کوي نه به يې پلورلي پېرلي وي اونه به يې نغښتلي وي همدارنګه به قيامت پداسي حال کي راشي چي يوځوک به تالاب په ختو پلستر کوي او جوړوي چي دهغه اوبه به يې لانه وي څښلي اوقيامت به داسي راشي چي يوچا به خولې ته ګوله پورته کړي وي خوړلي به يې نه وي (۲) بيا به دوهمه نفخه وي چي هغې ته (نفخة الصعق) وايې هغه چي په هغې به ګرد ساکښان پرته له الحی القيوم پروردګاره ومري او بيا دريمه نفخه ده چي هغه بيادبعث او نشور نفخه بولي هغه چي په هغې باندي خلګ له قبرونو را پاڅېږي اوداهغه نفخه ده چي پدې آيت شريف کي ورته اشاره کېږي ﴿ وَنُفِخَ فِي ٱلصُّورِ فَإِذَا هُم مِّنَ ٱلْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ﴾ اوبيا به پوکی وکړشي په صور شپېلۍ کي پس ناڅاپه به دوی له قبرونو څخه په طرف درب خپل منډي وهي ځغلي به. طبري وايې ﴿ يَنسِلُونَ ﴾ معناداچي منډي به وهي (نسلان) په تک کي ګرندي توب ته وايې (۳) ﴿ قَالُوا يَا وَيْلَنَا مَن بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا ﴾ وايې به دوی ای هلاک خرابي ده موږ ته چاراپاڅولو له ځايونو دخوبونو زموږ؟. ابن کثيروايې چي ددې دامعنانه ده چي ګواکي دوی په قبرونوکي آسوده وو عذاب نه ورکول کېدو بلکه هغه عذاب داوروستي ته داسي بلل کېږي لکه هغه چي آرام خوب وي کله چي دوی داووايې پرښتې اويامؤمنان به داسي ځواب ورکړي چي ﴿ هَٰذَا مَا وَعَدَ ٱلرَّحْمَٰنُ وَصَدَقَ ٱلْمُرْسَلُونَ ﴾ (دا هغه ددوهم ژوندون) دی چي وعده يې کړې ده رحمان رښتيا ويلي وو رسولانو) يعني دغه هغه څه دي چي الله درسره وعده فرمايلي ده دحساب او جزآء چي په بعث بعد الموت کي به وي اورښتياويلي وو پيغمبرانو چي داسي اخبار به يې کاوو ﴿ إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴾ نه به وي دغه مګر يوه چيغه داسرافيل (چي وشي نورابه شي دوی ټول) پس ناڅاپه دوی ټول په نزددرب زموږ به حاضر کړی شوي وي، صاوي وايې چي دغه چيغه دحضرت اسرافيل هغه وينا ده چي: ای ورستو هډوکو شلېدلي بندونواوپرې شوي ټوټو اوتارپه تارو ښتانو بېشکه الله درته امرکوي چي راټول شئ دحساب لپاره بيابه په شپېلۍ کي پوکړل شي چي ناڅاپه به ټول دحساب په تم ځای کي حاضرشي (۴) ﴿ فَٱلْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ (پس نن ورځ به ظلم ونه کول شي په هيڅ نفس باندي دهيڅ شي اونه به جزادرکوله

---

(۱) أخرجه البخاري

(۲) مختصر ابن کثير- دغه دابن کثيروينااوطبري غوره کړي ده اوداچي دلته مراد نفحة الفزع ده اوقرطبي بياوايې چي دغه نفحة الصعق دی چي ګردژوندي ساري به ورباندي مړه کېږي.

(۳) الطبري ۲۳/ ۱۱

(۴) حاشية الصاوي على الجلالين ۳/ ۳۲۸

کېږي تاسي ته مگر(جزآء) دهغو (اعمالو) چي تاسي به کول (له خیراوشره په دنیاکي ) یعني دغه دقیامت په ورځ به په هیڅ نفس دهیڅ ځېزظلم ونکړی شي که هغه نفس نېک اوکه فاجر وي اونه به یوڅوک دبل چادگناه پېټی په شاکړي بلکه هرچاته به پخپل عمل جزاء ورکول کېږي. ابوالسعودوایې چي دغه دهغه څه حکایت دی چي ژر دی هغوی ته به هغه وخت چي تیارشوی عذاب ووینې وویل شي ترڅودحق تحقق اوددوی لپاره تکونه (تقریع)شي(۱) اوکله چي د مجرمانوحال بیان شو اوس دنېمکرغه متقیانوحال داسي بیانوي: ﴿إِنَّ أَصۡحَٰبَ ٱلۡجَنَّةِ ٱلۡيَوۡمَ فِي شُغُلٖ فَٰكِهُونَ﴾ بېشکه خاوندان یاران دجنت به نن ورځ په مشغولیتاکي ( لذت اخیستونکي وي) دوی به د دوزخیانوپه حال کي چورت نه وهي له حوروسره به خوښ خوشحاله وي خوندور خواړه ځنباک او خوندوره سماع به ورته رسېدلي وي. ابوحیان وایې چي ظاهر خودادی چي دغه مشغولتیابه دوی له هر هغه څه څخه چي په زړه تېرېږي مشغوله کړي وي ابن عباس ﷺ وایې چي دوی به له جنتي پېغلوسره دکوروالي په کولو اوجنتي خوږو آوازونواوربدلو له خپلو خپلوانوڅخه چي په دوزخ کي دي مشغوله کړي وي دوی ته به هغه نه ورپه یادکېږي چي خوندونه اولذتونه بې ترخه نشي (۲) ﴿هُمۡ وَأَزۡوَٰجُهُمۡ فِي ظِلَٰلٍ عَلَى ٱلۡأَرَآئِكِ مُتَّكِـُٔونَ﴾ (دغه جنتیان اوښځي ددوی به په سیوروکي (ناست) وي پرتختونو باندي به تکیه وهونکی وي) یعني دوی به اوددوی مېرمني به هلته په جنتونو کي چي ګڼ سیوري به لري نه به لمراونه به زمهریرېخ وي په تختونوبه چي په ښکلوجامواوپردوبه ښایسته شوي وي ناست وي ﴿لَهُمۡ فِيهَا فَٰكِهَةٞ﴾ وي به دوی ته په دغه جنت کي (انواع) دمېوو ﴿وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ﴾ اووي به دوی ته هرهغه شی چي دوی يې غواړي ، لکه چي الله ﷻ فرمایې ﴿وَفِيهَا مَا تَشۡتَهِيهِ ٱلۡأَنفُسُ وَتَلَذُّ ٱلۡأَعۡيُنُ﴾ (الزخرف ۷۱) ﴿سَلَٰمٞ قَوۡلٗا مِّن رَّبّٖ رَّحِيمٖ﴾ وي به دوی ته سلام (چي ورته وبه ویلی شي) په ویلوسره له(طرفه د ) رب رحم والا ، په حدیث شریف کي راځي: کله چي جنتیان په نعمتونوکي وي له پاسه به یونور ووینې اوچي سرونه راپورته کړي الله ﷻ به لوړوي اوورته به ووایې السلام علیکم ای جنتیانو همدغه دالله وینااده چي ﴿سَلَٰمٞ قَوۡلٗا مِّن رَّبّٖ رَّحِيمٖ﴾ نوالله به دوی ته وګوري اودوی به الله ته ، نودجنت هیڅ نعمت ته به نه ملتفت کېږي ترڅوچي الله ته ګوري اوچي هغه ترې په حجاب شي نونوراوبرکت بې ددوی سره ددوی داوسېدلوپه ځای کي پاتي وي.

بلاغت:

پدې کلام کي چي دبدیع اوبیان کومې ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

(۱) ابوالسعود۴ /۲۵۷

(۲) البحرالمحیط ۷ /۳۴۲

۱ - تنکیر، تفخیم او تعظیم پدې کلام کې: ﴿ وَءَايَةٌ لَّهُمُ ﴾ یعني دالله په قدرت ستر او روښانه آیت او نښاني.

۲ - طباق د مرګ او ژوند ترمینځ لکه: ﴿ ٱلْأَرْضُ ٱلْمَيْتَةُ أَحْيَيْنَٰهَا ﴾ او د شپې او ورځي ترمینځ لکه ﴿ وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ ٱلنَّهَارَ ﴾.

۳ - تصریحي استعاره چې فرمایې: ﴿ وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ ٱلنَّهَارَ ﴾ دلته یې د ورځي د رڼا تلل او د شپې تیاره لوڅېدل د پسه له پوستکي ایستلو سره مشابه کړل او دغه پوستکی ایستل یې لپاره د زائل کولو او رااېستلو استعاره راوړو او له دې څخه یې ﴿ نَسْلَخُ ﴾ مشتق کړه چې د (نخرج) یعني موږ راباسو په معنا دی چې دغه یې د تصریحي استعارې په توګه راوړه چې بلیغه استعاره ده او د شپې او ورځي ترمینځ د طباق صنعت هم شتون لري.

۴ - مرسله مجمله تشبیه چې ﴿ حَتَّىٰ عَادَ كَٱلْعُرْجُونِ ٱلْقَدِيمِ ﴾ راغلي د شبه وجه مرکب دی له درېو شیانو څخه نري والی، کوږوالی او ژېړوالی او چې دغه یې یاد نکړل څکه یې مجمله بولو.

۵ - تقدیم د خبر په مبتداء باندي لپاره د دې چې نفي شوي حکم تقویه کړي لکه ﴿ لَا ٱلشَّمْسُ يَنۢبَغِى لَهَآ أَن تُدْرِكَ ٱلْقَمَرَ ﴾ څکه دا تر هغه أبلغ دی چې ویل شوي وای (لاینبغي للشمس ان تدرک القمر) او دا یې هم افاده کړه چې هغه تابع دی پرته له هغه چې ورته امر وشي نو رڅه نشي کولای نو ستا دا خبره چې یو چاته وایې (أنت لاتکذب) چې خبر رومبی راوړې تردې وړیناچې ورته ووایې (لاتکذب) لومړی عبارت تر دوهم عبارت په نفي د کذب کې أبلغ دی د قرآن رازونو او اسرار و ته فکر وکړه!.

۶ - غیرعاقل د عاقل پرځای راوړل لکه ﴿ وَكُلٌّ فِى فَلَكٍ يَسْبَحُونَ ﴾ چې د (یسبح) پرځای راوړل شوی دلته یې له لمر، سپوږمۍ او ستورو څخه د جمع مذکر په ضمیر سره یادونه کړي هغه څه چې دلامبلو وصف ورته رواکوي کوم چې هغه د عاقلانو له صفتونو څخه یو وصف دی([1]).

۷ - لطیفه استعاره پدې کلام کې چې: ﴿ مَنۢ بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا ﴾ دلته مراد له مرقد څخه ممات (مړینه) ده د دوی د مرګ حال یې د دوی له خوب سره مشابه کړ څکه له هره لوري ورسره خورا أشبه دی او تردې ویناچې ویلي یې وای (من بعثنا من مماتنا) ډېر أبلغ دی.

---

([1]) حاشیة الصاوي علی الجلالین: ۳/۳۳۲

۸ - ايجازبالحذف لکه ﴿ هَٰذَا مَا وَعَدَ ٱلرَّحۡمَٰنُ ﴾ يعني پرښتې به دوی ته وايې چي داهغه څه دي چي رحمان درسره وعده فرمايلي ده.

۹ - دطباق صنعت لکه: ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لِلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ﴾ اوهغه استفهام چي تهکم افاده کوي لکه: ﴿.. أَنُطۡعِمُ مَن لَّوۡ يَشَآءُ ٱللَّهُ أَطۡعَمَهُۥٓ ﴾.

۱۰ - غيرمتکلفه سجع دآيتونو په پای کي شته لکه: ﴿ وَأَخۡرَجۡنَا مِنۡهَا حَبّٗا فَمِنۡهُ يَأۡكُلُونَ ... وَفَجَّرۡنَا فِيهَا مِنَ ٱلۡعُيُونِ... وَمِنۡ أَنفُسِهِمۡ وَمِمَّا لَا يَعۡلَمُونَ... فَإِذَا هُم مُّظۡلِمُونَ ﴾ اوددې په مثل داهم دی چي: ﴿ حَتَّىٰ عَادَ كَٱلۡعُرۡجُونِ ٱلۡقَدِيمِ ... ذَٰلِكَ تَقۡدِيرُ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡعَلِيمِ ﴾ اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.[1]

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَٱمۡتَٰزُواْ ٱلۡيَوۡمَ أَيُّهَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ﴿٥٩﴾ ۞ أَلَمۡ أَعۡهَدۡ إِلَيۡكُمۡ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعۡبُدُواْ ٱلشَّيۡطَٰنَۖ إِنَّهُۥ لَكُمۡ عَدُوّٞ مُّبِينٞ ﴿٦٠﴾ وَأَنِ ٱعۡبُدُونِيۚ هَٰذَا صِرَٰطٞ مُّسۡتَقِيمٞ ﴿٦١﴾ وَلَقَدۡ أَضَلَّ مِنكُمۡ جِبِلّٗا كَثِيرًاۖ أَفَلَمۡ تَكُونُواْ تَعۡقِلُونَ ﴿٦٢﴾ هَٰذِهِۦ جَهَنَّمُ ٱلَّتِي كُنتُمۡ تُوعَدُونَ ﴿٦٣﴾ ٱصۡلَوۡهَا ٱلۡيَوۡمَ بِمَا كُنتُمۡ تَكۡفُرُونَ ﴿٦٤﴾ ٱلۡيَوۡمَ نَخۡتِمُ عَلَىٰٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ وَتُكَلِّمُنَآ أَيۡدِيهِمۡ وَتَشۡهَدُ أَرۡجُلُهُم بِمَا كَانُواْ يَكۡسِبُونَ ﴿٦٥﴾ وَلَوۡ نَشَآءُ لَطَمَسۡنَا عَلَىٰٓ أَعۡيُنِهِمۡ فَٱسۡتَبَقُواْ ٱلصِّرَٰطَ فَأَنَّىٰ يُبۡصِرُونَ ﴿٦٦﴾ وَلَوۡ نَشَآءُ لَمَسَخۡنَٰهُمۡ عَلَىٰ مَكَانَتِهِمۡ فَمَا ٱسۡتَطَٰعُواْ مُضِيّٗا وَلَا يَرۡجِعُونَ ﴿٦٧﴾ وَمَن نُّعَمِّرۡهُ نُنَكِّسۡهُ فِي ٱلۡخَلۡقِۚ أَفَلَا يَعۡقِلُونَ ﴿٦٨﴾ وَمَا عَلَّمۡنَٰهُ ٱلشِّعۡرَ وَمَا يَنۢبَغِي لَهُۥٓۚ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرٞ وَقُرۡءَانٞ مُّبِينٞ ﴿٦٩﴾ لِّيُنذِرَ مَن كَانَ حَيّٗا وَيَحِقَّ ٱلۡقَوۡلُ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿٧٠﴾ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّا خَلَقۡنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتۡ أَيۡدِينَآ أَنۡعَٰمٗا فَهُمۡ لَهَا مَٰلِكُونَ ﴿٧١﴾ وَذَلَّلۡنَٰهَا لَهُمۡ فَمِنۡهَا رَكُوبُهُمۡ وَمِنۡهَا يَأۡكُلُونَ ﴿٧٢﴾ وَلَهُمۡ فِيهَا مَنَٰفِعُ وَمَشَارِبُۚ أَفَلَا يَشۡكُرُونَ ﴿٧٣﴾ وَٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ ءَالِهَةٗ لَّعَلَّهُمۡ يُنصَرُونَ ﴿٧٤﴾ لَا يَسۡتَطِيعُونَ نَصۡرَهُمۡ وَهُمۡ لَهُمۡ جُندٞ مُّحۡضَرُونَ ﴿٧٥﴾ فَلَا يَحۡزُنكَ قَوۡلُهُمۡۘ إِنَّا نَعۡلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعۡلِنُونَ ﴿٧٦﴾ أَوَلَمۡ يَرَ ٱلۡإِنسَٰنُ أَنَّا خَلَقۡنَٰهُ مِن نُّطۡفَةٖ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٞ مُّبِينٞ ﴿٧٧﴾ وَضَرَبَ لَنَا مَثَلٗا وَنَسِيَ خَلۡقَهُۥۖ قَالَ مَن يُحۡيِ ٱلۡعِظَٰمَ وَهِيَ رَمِيمٞ ﴿٧٨﴾ قُلۡ يُحۡيِيهَا ٱلَّذِيٓ أَنشَأَهَآ أَوَّلَ مَرَّةٖۖ وَهُوَ بِكُلِّ خَلۡقٍ عَلِيمٌ ﴿٧٩﴾ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُم مِّنَ ٱلشَّجَرِ ٱلۡأَخۡضَرِ نَارٗا فَإِذَآ أَنتُم مِّنۡهُ تُوقِدُونَ ﴿٨٠﴾ أَوَلَيۡسَ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ

[1] موږ ځيني دبلاغت مثالونه يادکړل ترڅوچي انسان دقرآنکريم يوڅه بياني خوندوڅکي که نه قرآنکريم خومعجزالهي کتاب دی چي له ګردوبياني اوبلاغي ښکلاووا وصفاتوبيانولوڅخه دانسان ژبه عاجزه ده اونه هم په شمېرکي راځي (فسبحان الله منزل القرآن).

بِقَٰدِرٍ عَلَىٰٓ أَن يَخۡلُقَ مِثۡلَهُمۚ بَلَىٰ وَهُوَ ٱلۡخَلَّٰقُ ٱلۡعَلِيمُ (۸۱) إِنَّمَآ أَمۡرُهُۥٓ إِذَآ أَرَادَ شَيۡـًٔا أَن يَقُولَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ (۸۲) فَسُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيۡءٖ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ (۸۳) ﴾ يس: ۵۹ ـ ۸۳

## مناسبت:

کله چي الله تبارک وتعالی دنېکمرغه نېکانوحال په جنت کي دتلپاتي نعمتونوپه هکله ووايو وروسته دلته دبدمرغه فجاروحال راوړي څرنګه به په رسوايي اوهلاکت کي اوسي اوهمدغه د قرآنکريم اسلوب دی چي ترغيب اوترهيب يوځای راوړي په پای کي دبعث بعدالموت اوحساب جزاء ددلائلوبيان دی اوسورت ورباندي بشپړېږي.

## لغتونه:

(امتازوا) له تميزاوانفصال څخه دی اوددووڅېزونوترمينځ جلاوالي ته وايي (جبلا) دجيم په کسره سره مخلوق ته وايي (دجبلة) جمع ده لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَٱلۡجِبِلَّةَ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ (الشعرآء۱۸۴) له (جبل الله الخلق) څخه چي د(خلق الله ) په معنادی راځي (طمسا ) طمس ديوڅېزله مينځ تللوته لکه چي ببخي نه وي پيداشوی وايي (اصلوها) دننه شي اوداورلمبي وڅکئ(مسخناهم) مسخ يوشيزپه بل باندي اوبنتلوته وايي (نعمره) له تعمېرڅخه اخيستل شوی دعمراوږدوالي ته ويل کېږي کوم چي تربوډا والي ورسېږي (ننکسه) تنکيس يوشی سرپه څېږه اړولونسکوراوپوته ته وايي کله چي وويل شي (نکست الشئ نکسا ) معنی داچي په سرنسکورمي واړاووواوله دي څخه دي ﴿ ثُمَّ نُكِسُواْ عَلَىٰ رُءُوسِهِمۡ ﴾ (الانبيآء۶۵) (رميم) وراسته اوايرې شوي ته وايي.

## دنزول سبب:

روايت کېږي چي دقريشي کفاورويوسردار (أبی بن خلف ) يوپخواني وروست هډوکی دپيغمبرﷺ په وړاندي رېزمرېز کړاوبيايي وويل: ای محمده ﷺ ته ګمان کوې چي داهډوکی به الله وروسته له ورستوالي راژوندی کوی ؟ رسول الله ﷺ ورته وويل: هوبيابه دي راپاځوي اواورته به دي دننه کړي نوالله ﷻ داآيت شريف نازل کړ﴿ أَوَلَمۡ يَرَ ٱلۡإِنسَٰنُ أَنَّا خَلَقۡنَٰهُ مِن نُّطۡفَةٖ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٞ مُّبِينٞ (۷۷) وَضَرَبَ لَنَا مَثَلٗا وَنَسِيَ خَلۡقَهُۥۖ قَالَ مَن يُحۡيِ ٱلۡعِظَٰمَ وَهِيَ رَمِيمٞ ﴾ (۱) .

---

(۱) تفسيرالقرطبي ۵۸/۱۵ والبحرالمحيط ۳۴۸/۷

تفسير:

﴿ وَٱمْتَٰزُوا۟ ٱلْيَوْمَ أَيُّهَا ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ او(ورته وبه ويل شي) راجداشي نن ورخ اى مجرمانو! كافرانوله مؤمنانوڅخه ، يوطرف ته شي قرطبي وايې دابه هغه وخت ورته وويل شي چي كله دسوال پوښتني په تم ځاى كي ودرېږي اوهلته چي جنتيانوته جنت ته اودوزخيانوته دوزخ ته دتللو امرصادرشي(١)﴿ أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ ﴾ آياتاسي ته مي حكم نه ووكړى (درسولانوپه ژبه سره)اى دآدم زامنو؛ استفهام دتوبيخ اوتكولولپاره دي اوپدي كي دكفارو مجرمينو لپاره توبيخ دى ﴿ أَن لَّا تَعْبُدُوا۟ ٱلشَّيْطَٰنَ ﴾پدې سره چي دشيطان عبادت مه كوئ تاسي (چي كله موزما معصيت ته بولي) ﴿ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ بېشكه دغه شيطان تاسي ته ښكاره دښمن دى ، دغه دمنعي اونهى لپاره علت دى يعني ددې امله چي هغه ښكاره دښمن دى نوڅرنګه به انسان دخپل دښمن خبره مني؟ ﴿ وَأَنِ ٱعْبُدُونِى ۚ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾ او(داسي حكم مي نه ووكړى بلكه كړى مي ووچي) يوازي زماعبادت كوي (اوامر مي مني ) دغه (عبادت زما ) سمه لاره دصحيح دين دى اودحق سيخه لاره ده) ﴿ وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا ﴾ اوخامخاپه تحقيق شيطان ګمراه كړي ووله تاسي ډېرخلګ ؛ دغه د تعليل لپاره تاكيددى يعني شيطان ستاسي ډېرخلګ ګمراه كړي اوله سمي لاري يې بې لاري ته اړولي دي. طبري وايې معناداچي دغه شيطان ډېرخلګ زما له عبادت څخه بند كړي ترڅوچي دده شيطان عبادت يې غوره كړى دى (٢)﴿ أَفَلَمْ تَكُونُوا۟ تَعْقِلُونَ ﴾ آيا پس نه يئ تاسي چي عقل چلوى !؟(اودشيطان له طاعته اودالله دامرله مخالفته موراوګرزوي، دغه د مشركانوكفارو فجارو لپاره بل توبيخ دى او ورپسې دهغه څه زېرى ور كوي چي هغه سترعذاب او دوى ته ستركي په لاره دي فرمايې:﴿ هَٰذِهِۦ جَهَنَّمُ ٱلَّتِى كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴾ دادوزخ دى هغه چي وى تاسي چي (په دنياكي) بې درسره وعده شوي وه (درسولانوپه ژبه اوتاسويې تكذيب كاوو. صاوي وايې چي دادهغي ګړى خطاب دى چي دوى ددوزخ په غاړه ولاړوي اومقصدورڅخه زياته ترټنه او خورونه ده(٣) ﴿ ٱصْلَوْهَا ٱلْيَوْمَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ (ځئ ننوزئ په دې كي نن ورخ په سبب دهغي چي وى تاسي (په دنياكي) چي كافران كېدلاى ) يعني ددغه اورتودوخه وڅكئ اودقسماقسم عذابونو اندازه يې ولګوئ په سبب دهغه كفرستاسوچي په دنياكي موكاوو دغه امر داهانت اوتحقيرلپاره دى لكه چي فرمايې: ﴿ ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْكَرِيمُ ﴾ (الدخان ٤٩ ) وروسته له دې الله ﷻ ددوى هغه دګردو خلګوپه وړاندي دقيامت په ورځ كي ددوى رسوايې داسي بيانوي: ﴿ ٱلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰٓ أَفْوَٰهِهِمْ ﴾

---

(١) القرطبي ٤٦/١٥
(٢) الطبري ١٢/٢٣
(٣) حاشية الصاوي ٣٢٩/٣

نن ورځ به مهر ووهو په خولو ددوی (کفاروچي خبري به نشي کولای) ﴿ وَتُكَلِّمُنَآ أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴾ او خبري به وکړي له موږسره لاسونه ددوی اوشاهدي به ورکړي پښي ددوی په هغو کارونو چي وو دوی چي کول به يې (په دنياکي) ابن جرير طبري له ابي موسى الاشعري څخه روايت کوي چي هغه وويل: چي کافراومنافق به دقيامت په ورځ دحساب لپاره راوبلل شي اوالله ﷻ به ددوی عملونه ورته وړاندي کړي هغه به منکرشي اووبه وايي ای پروردګاره زمادي ستاپه عزت سوګندوي که به مادغه عملونه کړي وي دغه پرښتې ناحقه راپسي ليکلي دي نوملائک به ووايې چي آياپه فلانى ورځ او فلاني ځای کي دي دغه کارنه وو کړی نوبه هغوی ووايې نه قسم ستاپه عزت دی ای پروردګاره چي نه مي دی کړی نوبه يې په خوله مهر ولګول شي او اندامونه به يې خبري شروع کړي اوبيايې داآيت تلاوت کړچي: ﴿ ٱلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰٓ أَفْوَٰهِهِمْ ﴾ ([1]) اوپه حديث شريف کي راځي چي: بنده به ووايي ای پروردګاره آياتاماته له ظلم څخه پناه نه وه راکړي الله ﷻ به ورته وايي هودرکړي مي وه نوبنده به وايي چي زه پخپل ځان پرته له ځانه بل شاهد تېرول نه غواړم الله ﷻ به وفرمايي (کفى بنفسک اليوم عليک شهيدا) نن ستالپاره پرتادخپل ځان ګواهي اودپرښتو شاهدي چي کرام الکاتبين دي کافي ده بيابه يې په خوله مهرووهل شي اواندامونو غړوته به يې وويل شي چي خبري وکړئ نوبه هغوی خبري پيل کړي اوددوی عملونه به په ډاګه کړي وروسته به بيادی د خبرو کولوتوان ومومي خپلوغړو اندامونوته به وايي هلاکت دي وي تاسوته مابه (په دنياکي) ستاسي څومره پاملرنه کوله ستاسي لپاره مي هلي ځلي کولي اوله تاسي څخه مي دفاع کوله ! ﴿ وَلَوْ نَشَآءُ لَطَمَسْنَا عَلَىٰٓ أَعْيُنِهِمْ فَٱسْتَبَقُوا۟ ٱلصِّرَٰطَ فَأَنَّىٰ يُبْصِرُونَ ﴾ اوکه اراده فرمايلي وای موږ نو خامخا هوار والی به راوستی وو موږ پر سترګو ددوی (رانده کړي به موو ای) پس وړاندي شوي به وو دوی هغي لاري ته (چي پخپل عادت تل پرې تلل)پس څرنګه به دوی ليدله هغه لاره ؟ . ابن عباس وايې معناداچي که موږ اراده وفرمايو دوی به دهدايت څخه رانده کړو بيابه هيڅکله هم دحق لوري ته لاره نه مومي([2]) دغه دقريشو لپاره تهديدی ﴿ وَلَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنَٰهُمْ عَلَىٰ مَكَانَتِهِمْ ﴾اوکه اراده فرمايلي وای موږ خامخامسخ کړي به وو موږ دوی په ځايونو خپلوکي ﴿ فَمَا ٱسْتَطَٰعُوا۟ مُضِيًّا وَلَا يَرْجِعُونَ ﴾ پس طاقت به يې نه وو دوړاندي تللو اونه به بيرته (شاته) ګرزېدلی شوو ، دغه دکفارومجرمانولپاره يوبل تهديدی وروسته الله دکفارو په مسخ کولو دخپل قدرت دليل دعمر په اوږدولو فرمايي﴿ وَمَن نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِى ٱلْخَلْقِ ﴾ (اوهر چاته چي اوږدعمر ورکړو موږ نونسکور به کړو هغه په پيدايښت کي) يعني هرچاته چي اوږدعمر ورکړو نوهغه به په پيدايښت کي اپوته کړو لکه وړوکی ماشوم غونډي به يې وګرزوو په څه به نه پوهېږي قتاده رحمه الله وايې چي هغه به دبوډاتوب هغي مرحلې ته ورسېږي چي (هرم) يې بولي اوله وړکتوب سره مشابه

([1]) الطبري ۲۳/ ۱۷
([2]) القرطبي ۱۵/ ۴۹

ده دعمراوږدوالي ځواني په زوړوالي قوت په کمزوري او زيادت په نقصان اړوي ﴿ أَفَلَا يَعْقِلُونَ ﴾ (آياپس دوی عقل نه چلوي (چي الله ددوی په مسخ کولو او ړندولو قادر دی؟)ابن جزي وايي چي له دې دنياڅخه مقصدداالله ﷻ په قدرت استدلال کول دی چي همدغه ذات د کفاروپه مسخ کولوداسي توانادی لکه څرنگه چي په بوډاتوب کي دانسان د حواسوپه نسکورولو قادردی(۱)﴿ وَمَا عَلَّمْنَٰهُ ٱلشِّعْرَ وَمَا يَنۢبَغِى لَهُۥٓ ﴾ اونه دی ښوولی موږ دغه (محمد ﷺ ) ته شعراونه ښائېږي ورسره(شعرويل چي شاعروي) قرطبي وايي چي دغه په کفارو باندي ردکول دي چي هغوی به ويل محمد ﷺ شاعردی اوڅه چي يې راوړي هم دشعرله ډوله دي هو ! رسول الله شاعرنه دی اونه هم قرآنکريم شعردی ځکه چي شعربومزخرف موزون کلام دی چي په چتي اوهاماو خوشي خيالونو ولاړ وي آن تردې چي خلگ وايي هغه شعرچي ترټولوزيات درواغ پکي وي ترټولو زيات خوندوروی يعني (أعذبه أكذبه) نوچېري قرآن مجيدهغه چي دبشرله کلام سره له مماثلت څخه منزه دی اوچېري دغه شعر؟ خلگودشعرپه صفت اوبدي کي زښته ډېرڅه ويلي دي خودانصاف خبره هغه ده چي حضرت شافعي ﷫ کړي اووايي چي شعرکلام دی په کلام کي ښه اوبد دواړه شته ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ وَقُرْءَانٌ مُّبِينٌ ﴾ نه دی دغه (قرآن) مگر خالص ذکرپند دی اوقرآن دی ښکاره کونکی د احکامو چي په هيڅ حال له شعرسره نه گډېږي ﴿ لِّيُنذِرَ مَن كَانَ حَيًّا ﴾ لپاره ددی چي ووېروي (په دې قرآن)هرهغه چي ژوندی وي(زړه دده اوبصيرت يې پرخای وي اودغه واقعي مؤمنان دي چي ورباندي گټه اخلي) ﴿ وَيَحِقَّ ٱلْقَوْلُ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ اوثابته شي(خبره دعذاب) پرکافرانو(۲)ځکه دوی لکه مړي دغسي دي څه چي ورته ويل کېږي په هغونه پوهېږي بيضاوي وايي چي دوی يې دهغه چاپه مقابله کي ودرول چي هغوی ژوندي دي ترڅودا وښيي چي دوی دخپل کفرپه سبب اوداچي دليل نلري اوفکراوسوچ نه کوي په حقيقت کي مړي دي (۳)وروپسې الله خپل نعمتونه ورښيي اودخپل وحدانيت دلائل بيانوي ترڅوله آثاروڅخه يې په وجود دليل ونيسي فرمايي: ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَآ أَنْعَٰمًا ﴾ (آيانهويني دوی (بلکه ويني يې) چي بېشکه موږ پيداکړي دوی ته له هغه چي جوړکړي دي لاسونو (دقدرت) زموږ چارپايان) همزه لپاره د انکاراو تعجب دی يعني آيادوی دعبرت په ليدلونه ويني چي موږپرته له کومي واسطې اوبې شريکه اومرستياله ددوی لپاره چارپايان پيداکړي لکه اوښان ، غوايي اوپسونه ترڅودوی ته دغه زموږ په وحدانيت اوبشپړقدرت استدلال وکړي ﴿ فَهُمْ لَهَا مَٰلِكُونَ ﴾ پس دوی دهغوی مالکان (واکداران) دي (څرنگه چي يې خوښه شي هغسي تصرف پکي کوي ﴿ وَذَلَّلْنَٰهَا لَهُمْ ﴾ اوذليل ، عاجزاېل کړي مودي دغه (چارپايان) دوی ته . ابن کثيروايي معناداچي دوی موداسي درته اېل کړي چي تاسويې وهی ترتی خوبياهم هغوی ممانعت

---

(۱) التسهيل في علوم التنزيل ۳ /۱۲۲
(۲) تفسيرابو السعود ۴ /۲۷۱
(۳) البيضاوي ۲ /۱۳۶

نکوي بلکه که يوماشوم د اوښ مهار نيسي نوهغه به چوکړي اوکه وغواړي هغه به ولاړکړي اوروان به يې کړي پداسي حال کي چي دغه اوښ به ددغه ماشوم داوامرومتابعت کوي اوهمداسي که دسلواوښانو يو کتار ديوه واړه ماشوم په لاس روان کړي ورسره ځي به، پاکي ده هغه الله لره چي بندګانوته يې دغه ټول اهل او مسخرکړي دي (۱) ﴿فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ وَمِنْهَا يَأْكُلُونَ﴾ پس ځيني له دوی سورلی ددوی دي (لکه اوښان چي درانه بارونه وړي) اوله ځيني ددوی خوري (غوښي لکه غوايان اوپسونه)

﴿وَلَهُمْ فِيهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ﴾ اوشته دوی لره په دغو (چارپايانو) کي نفعي ډېري (پرته له خوراک اوسپرلی لکه څرمني، وړی وزغني) او دڅښلومشارب (چي دوی يې شيدې څښي لکه چي الله فرمايي ﴿مِنۢ بَيۡنِ فَرۡثٖ وَدَمٖ لَّبَنًا خَالِصٗا سَآئِغٗا لِّلشَّٰرِبِينَ﴾ (النحل ۶۶) ﴿أَفَلَا يَشۡكُرُونَ﴾ آياپس دوی شکرنه وباسي؟!

﴿وَٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ ءَالِهَةٗ لَّعَلَّهُمۡ يُنصَرُونَ﴾ (او نيولي دي دغو (مشرکانو) بې له الله (نور) معبودان چي ښايې دوی سره به مدد وکړي) يعني دوی مشرکانو هغه ګونګي کنې ډېري په خدايي نيولي هغه چي نه غږ اوري او نه هم چاته خواب ورکولای شي ﴿لَا يَسۡتَطِيعُونَ نَصۡرَهُمۡ﴾ نه لري طاقت دغه (معبودان) دنصرت له دوی سره (په هيڅ حال داحوالوکي اونه مرسته ورسره کوي نه يې سپارښتنه (شفاعت) کوي

﴿وَهُمۡ لَهُمۡ جُندٞ مُّحۡضَرُونَ﴾ حال داچي دغه (مشرکان) به دوی ته لښکري حاضري کړی شوي وي (چي له دوی څخه به يې دفاع کوله اوپه ځان اومال به ددوی لپاره قرباني ته حاضروو سره له دې چي دغه معبودان دوی ته هيڅ ګټه نه رسوي قتاده وايې چي مشرکان به په دنياکي پخپلو خدايانو خفه کېدل چي چابه يې سپکاوی وکړ خو معبودان يې يوازي بتان دي چي نه دوی ته ګټه رسولای شي اونه شر ورڅخه دفع کولای شي مشرکان لکه چي ددغوبتانو خدمتګاران (چوپړيان) وي(۲) قرطبي وايې معناداچي دوی خوزمونږ دقدرت نښي نښانې وليدلې خوله هغه سره سره يې بياهم بتان په خدايې سره ونيول هغوی چي اصلاً دهيڅ شي توان نلري اوکفارو به په دنياکي له دوی څخه هر راز دفاع کوله اولکه ملاتړلي لښکر غوندي به يې چوپړته ولاړ وو اوس دغه بتان ددغوعابدانو هيڅ ډول مرسته نشي کولای (۳) ﴿فَلَا يَحۡزُنكَ قَوۡلُهُمۡۘ﴾ پس نه دي غمجن کوي تاخبري ددوی (چي تاته ددروغجن نسبت کوي يادي شاعر بولي اويادرته کوډګروايې دغه درسول الله ﷺ لپاره ډاډينه اوتسلاده اودلته کلام بشپړشو بياالله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّا نَعۡلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعۡلِنُونَ﴾ بېشکه مونږ ته معلوم دی هغه(حسداو بغض چي پټوي يې دوی (په سينوکي) اوهغه (اقوال افعال) چي ښکاره کوي يې دوی نو مونږ به دوی ته وربانديې جزاء ورکړو (وکفی بربک شهيدا) وروسته الله تعالی په بعث اونشور باندي کوټلي برهان اوغوڅ دليل داسي

---

(۱) مختصرابن کثير
(۲) داهغه وينا ده چي طبري غوره کړي اوښه يې بللي ده الطبري ۲۳/ ۲۰
(۳) القرطبي ۱۵/ ۵۰

وړاندي کوي: ﴿ أَوَلَمْ يَرَ ٱلْإِنسَـٰنُ أَنَّا خَلَقْنَـٰهُ مِن نُّطْفَةٍ ﴾ آیانه ویني انسان نه پوهېږي چي بېشکه موږ پیداکړی دی له نطفې (یوه څاڅکي اوبو دغه استفهام انکاري اودتوبیخ اوتقریع لپاره راغلی دی یعني ولي انسان د عبرت په کتلونه ګوري اودالله ﷻ په قدرت کي سوچ نه کوي چي هغه موله یو څاڅکي خوارواوبو چي دنجاست له ځایه راوزي پیداکړی دی؟ ﴿ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُّبِينٌ ﴾ پس ناڅاپه دی سخت ښکاره جګړه کونکی دی ،چي د خپل رب له قدرت څخه منکرېږي اوبعث اونشور دروغ ګڼي آیاهغه پیداکونکی ذات چي انسان یې له نطفې څخه پیداکړی پدې قادر نه دی چي بل ځل یې له مرګه وروسته راپاڅوي ؟ مفسرین کرام وایې چي دغه دأبی بن خلف په باب نازل شوی چي یو وروست هډوکی یې درسول الله ﷺ په مخ کي رېزمرېز توته توته کړاوبیایې درېشخند په توګه وویل ای محمده ته ګمان کوې چي الله به موږ چي داسي ایرې شو راپاڅوي ؟نورسول الله ﷺ ورته وویل هوالله به دي راپاڅوي اورته به دي واچوي (¹) ﴿ وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَنَسِيَ خَلْقَهُۥ ﴾ (اوتړي پرموږیوري مثل (دوراسته هډوکي) اوخپل پیدائښت یې هېرکړی دی) یعني دغه کافردوراسته هډوکي مثال زموږ دپاره وړاندي کړی چي دانسان پیدائښت وروسته له مرګه مستبعدګڼي اودایې هېره کړي چي موږ هغه له مړې نطفې څخه پنځولی اوژوندمو ورکړی دی دغه هغه خپل غریب او عجیب خلقت له یاده ایستلی او داسي وایې چي ﴿ قَالَ مَن يُحْيِ ٱلْعِظَـٰمَ وَهِىَ رَمِيمٌ ﴾ وایې چي څوک به ژوندي کړي دغه هډوکي حال داچي دغه وراسته دي صاوي وایې چي داسي یوه عجیبه وینایې وکړه چي په غرابت کي لکه متل داسي دی چي زموږ قدرت یې دمخلوق له قدرت سره پرتله کړ(²) ﴿ قُلْ يُحْيِيهَا ٱلَّذِىٓ أَنشَأَهَآ أَوَّلَ مَرَّةٍ ﴾ ووایه (ای محمده ده ته ) بیابه ژوندي کړي دغه وراسته هډوکي ) هغه (مطلق قادر) چي اول ځلي یې پیداکړي دي (دغه خبره دده د چُپ کولواوتبکیت لپاره ده) ﴿ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ ﴾حال داچي دغه (الله) په هرقسم پیدائښت ښه عالم دی(چي د اجسادو بیاراژوندي کول ورته سخت نه دي ﴿ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُم مِّنَ ٱلشَّجَرِ ٱلْأَخْضَرِ نَارًا ﴾ هغه مطلق قادرچي پیداکړي یې دي تاسي ته له شنې وني څخه اور (چي هغه ونه سوزوي نوهغه چي څه وغواړي څوک یې مانع نشي کېدای اونه هم وراسته هډوکي بیرته راپاڅول اوژوندي کول ورته مشکل دي (³) ابوحیان وایې الله ﷻ دلته هغه څه یادکړل چي دانسان ترپیدائښت لاعجیب اونادردي هغه چي یوځېزله ضد دهغه څخه راایستل دي اودغه تر ټولو عجیب اوغریب دي چي له شنې زرغونې وني څخه اوربل شي آیاته نه ګورې چي اورپه اوبو مړي اوله دې سره سره اورله هغه څه راوزي چي هلته اوبه هم وي کوچیانوبه (هغه وخت ) اور دونو له دووڅانګو چي (مرح) او(عُفار) نومېدو بلاوو اوپه متلونوکي یې راغلي وو (وفي کل شئ نار واستمجد المرح والعُفار) اوشاعر خومره ښه ویلي دي چي:

---

(¹) په البحرکي وایې اوچاپیاویلي دي چي دغه د(عاص بن وائل )په هکله نازل شوی خوصحیح داده چي په شان نزول کي هم لیکلي شوي دي

(²) حاشیة الصاوي علی الجلالین۳ /۳۳۱

(³) الطبري ۲۳/ ۲۷

جمع النقيضين من إسرار قدرته * هذا السحاب به ماء به نار.

دالله دقدرت له رازونوڅخه يودادي چي نقيضين يې سره يوځای کړي دي دغه وريځ ګوری چي هم پکې اوبه اوهم پکي اور (تندر) شته ﴿ فَإِذَآ أَنتُم مِّنْهُ تُوقِدُونَ ﴾ پس ناڅاپه تاسي له هغي وني څخه اوربلوی ﴿ أَوَلَيْسَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِقَٰدِرٍ عَلَىٰٓ أَن يَخْلُقَ مِثْلَهُم ﴾ آيانه دی هغه (مطلق قادر) چي آسمانونه اوځمکه يې پيداکړي قادرپه دي چي پيداکړي ددوی په شان؟ يعني آيا دغه ذات چي لوی لوی آسمانونه اوځمکي يې پيداکړي دي په دې قادرنه دی چي دبنيادمانو اجساد وروسته له فنا را ژوندي کړي ؟ ﴿ بَلَىٰ وَهُوَ ٱلْخَلَّٰقُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ هو !(قادردی په دې باندي هغه په خلق اوتكوين كي مبدع، خالق او پيداكونكی دی په هرڅه عالم دی) ﴿ إِنَّمَآ أَمْرُهُۥٓ إِذَآ أَرَادَ شَيْـًٔا أَن يَقُولَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴾ بېشكه هم داخبره ده چي امر حكم دالله هركله چي اراده وفرمايي (دپيداكولو) ديوشېز دادی چي هغه ته وفرمايي چي (جوړ)شه نو(جوړ)شي يعني دهغه امر د كاف اونون ترمينځ دی هركله چي يوشی پيدا كول غواړي سمدستي پيداكېږي هيڅ زيار محنت او كړاو نه غواړي ﴿ فَسُبْحَٰنَ ٱلَّذِى بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَىْءٍ ﴾ پس پاكي ده هغه الله ته چي په لاس (دقدرت) دده كي پاچهي دهرشېزده ) يعني له ګردو نقصونوڅخه پاكي هغه ذات لره ده چي دده په لاس كي پراخه پاچهي اوبشپړقدرت خواک په ټولو شيانوشته ﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ اوخاص هم ده ته بيابېولی كېږي (په آخرت كي دجزاء لپاره ، سورت يې په دغه خوندوره خاتمه چي دالله په بشپړقدرتِ اوسترعظمت اوسلطان دلالت كوي پای ته ورساوو.

بلاغت:

پدې آيتونوكي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱– سلبي طباق لكه: ﴿ أَن لَّا تَعْبُدُوا۟ ٱلشَّيْطَٰنَ ۖ وَأَنِ ٱعْبُدُونِى ﴾ لومړی سلب اودوهم ايجاب دی.

۲– انكاري استفهام چي دتوبيخ اوتقريع لپاره راغلی لكه: ﴿ أَفَلَا يَشْكُرُونَ أَفَلَمْ تَكُونُوا۟ تَعْقِلُونَ ﴾؟

۳– طباق چي د ﴿ يُسِرُّونَ ..يُعْلِنُونَ .. مُضِيًّا ..يَرْجِعُونَ ﴾ اودغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل كېږي

۴– بليغه تشبيه پدې كلام كي چي: ﴿ وَهُمْ لَهُمْ جُندٌ مُّحْضَرُونَ ﴾ يعني لكه لښكرپه خدمت اودفاع كي دتشبيه ادات اوتشبيه وجه يې حذف كړي نوبليغه تشبيه ګرزېدلي ده.

۵- دعام يادونه وروسته له خاص څخه لکه داچي: ﴿وَلَهُمْ فِيهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ﴾ وروسته له دي قوله چي ﴿فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ﴾ راغلی دی اوفائده يې دنعمت تعظيم اوداحسان تفخيم دی.

۶- دمقابلې صنعت لکه داچي ﴿لِّيُنذِرَ مَن كَانَ حَيًّا﴾ چي انذاراواعذاريې دمؤمنانواوکفارو لپاره راوړ﴿وَيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ يې وفرمايواودغه خورالطيف اونرم تعبيردی.

۷- تمثيلي استعاره چي فرمايي: ﴿مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا أَنْعَامًا﴾ چارپايان پيداکول کېږي اوجوړېږي نه خوددوی پيدايښت يې دالله په تکوين اوخلقت کي داسي مشابه کړلکه چي يوڅوک په لاس کوم څيزپخپله جوړوي اوديپداکولولپاره يې دجوړولولفظ استعاره راووړچي دغه تمثيلي استعاره ده(۱).

۸- دمبالغې صيغې لکه﴿خَصِيمٌ مُّبِينٌ.. الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ﴾.

۹- بله تمثيلي استعاره لکه داچي ﴿أَن يَقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ﴾ دالله دقدرت چټک اغيزيې له هغه منل شوي امرسره چي هيڅ ډيل پکي نه راځي مشابه کړکله چي څه وغواړي سمدستي هغه موجودېږي هيڅ ځنډاوتاخير پکي نه راځي(۲) دغه له لطيفه استعاراتوڅخه يوه ده.

فائده:
علامه ابن کثيروايي هغه چي له رسول الله ﷺ څخه ثابت شوي چي دخندق په ورځ يې دعبدالله بن رواحه هغه بيتونه ويل چي: (اللهم لولاانت مااهتدينا) اوياچي دحنين په ورځ کله چي په خپله اوښه سپور وو داسي يې ويل: (انا النبي لاكذب * انا ابن عبدالمطلب) اوداچي ويلي يې وو: (هل انت الااصبع دميت * وفي سبيل الله مالقيت) دغه هرڅه په ناڅاپي توګه اوپه غيرقصدي ډول په شعري بڼه راغلی اودرسول الله صلى الله عليه وسلم په ژبه جاري شوی دی چي داټول دالله ﷺ له دې وينا څخه معلومېږي چي ﴿وَمَا عَلَّمْنَاهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنبَغِي لَهُ﴾ سوچ پرې وکړه دغه د اهميت وړده.(۳)

دالله تعالى په مرسته د(يس) سورت تفسيربشپړشو.

***

(۱) حاشية شيخ زاده على البيضاوي ۳/ ۱۴۰
(۲) تلخيص البيان في مجازات القرآن للرضي ۱/ ۱۹۲
(۳) مختصرابن کثير ۳/ ۱۷۲

# د (الصافات) سورت مکي او يو سل اودوه اتيا آيتونه لري

## د سورت په وړاندي:

دالصافات سورت مکي اوداسلامي عقيدې دبنسټونو په هکله موضوعات راوړي چي هغه توحيد، وحی اوبعث اوجزاء دي داهم دنورومکي سورتونو په شان دايمان ستني ټينګوي

سورت په پيل کي دهغو پرښتو خبرراوړي چي په لمانځه کي صف صف ولاړ اويادالهي اوامرو دتر سره کولو لپاره وزرونه صف صف په انتظاردرېږي هغه چي وريځي کوم لوري ته چي دالله خوښه وی بيايي، بيادپېريانو خبرراخلي هغوی چي په ستورو ويشتل کېږي اودغه دجاهليت دهغوافسانوترديدکوي کوم چي دوی به ويل دالله ﷻ اوپېريانوترمينځ خپلوي شته ، ورپسې دبعث اوجزاء په هکله غږېږي اودمشرکانو انکاربيانوي چي دوی بيرته راپاڅېدل کله چي هډوکي وراسته اوايرې شي مستبعد ګڼي.

ددې خبري دتاکيد لپاره چي په بعث باندي دايمان عقيده رښتوني ده دمؤمن اوکافرکيسه او خبري اترې راوړي هغه چي ددوی ترمينځ په دنياکي کېدلې اوبيادهريوه وروستی برخه ليک چي مؤمن به په جنت کي تل ترتله اوکافربه په دوزخ کي تلپاتي وي ښيي.

په سورت کي دځيني انبياء عليهم السلام کيسې وړاندي کېږي چي دنوح ﷺ له کيسې څخه پيلېږي بياابراهيم بيااسماعيل وروسته موسی اوهارون بياوروسته الياس اولوط عليهم الصلوات والتسليمات بيانوي اوپه تفصيل سره دايمان اوازموينت کيسه دحضرت ذبيح اسماعيل ﷺ په پېښه کي راوړي کوم چي حضرت ابراهيم ﷺ خوب وليدوچي خپل زوی دي حلال اوذبح کړي اوهغه په پوره باور اوبشپړاخلاص دي کارته اقدام وکړ چي وروسته دقرباني پسه الله ﷻ ورته راواستاوو اوپدې کي دمسلمانانو لپاره سبق دی چي دأحکم الحاکمين ذات دامر لپاره بايدهمداسي غاړه ايښودونکي اومنقادوي.

په پای کي سورت دې ټکي ته کتنه کوي چي الله تبارک وتعالی خپلو انبياوو اولياووته په دنيا او آخرت کي مرسته ورکوي او وروستی بری دنېکانو دی

## تسميه اونومول يې:

ځکه دغه سورت ته (الصافات) وايې چي بندګانو ته دهغو پرښتو ابرارو اوملائکو اطهارو يادونه وکړي کوم چي په ملأ الاعلی کي دالله له عبادته يوه شېبه هم نه وزګارېږي ﴿ يُسَبِّحُونَ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ لَا يَفۡتُرُونَ ﴾ (الانبيآء۲۰) اودوی ددندوچي ورباندي ګمارل شوي ستاينه وشي.

الله تعالى فرمايي:

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ وَالصَّافَّاتِ صَفًّا (١) فَالزَّاجِرَاتِ زَجْرًا (٢) فَالتَّالِيَاتِ ذِكْرًا (٣) إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ (٤) رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ الْمَشَارِقِ (٥) إِنَّا زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِزِينَةٍ الْكَوَاكِبِ (٦) وَحِفْظًا مِّن كُلِّ شَيْطَانٍ مَّارِدٍ (٧) لَّا يَسَّمَّعُونَ إِلَى الْمَلَإِ الْأَعْلَىٰ وَيُقْذَفُونَ مِن كُلِّ جَانِبٍ (٨) دُحُورًا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ (٩) إِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ ثَاقِبٌ (١٠) فَاسْتَفْتِهِمْ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَم مَّنْ خَلَقْنَا ۚ إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّن طِينٍ لَّازِبٍ (١١) بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ (١٢) وَإِذَا ذُكِّرُوا لَا يَذْكُرُونَ (١٣) وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ (١٤) وَقَالُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ (١٥) أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ (١٦) أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ (١٧) قُلْ نَعَمْ وَأَنتُمْ دَاخِرُونَ (١٨) فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ فَإِذَا هُمْ يَنظُرُونَ (١٩) وَقَالُوا يَا وَيْلَنَا هَٰذَا يَوْمُ الدِّينِ (٢٠) هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ (٢١) ۞ احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ (٢٢) مِن دُونِ اللَّهِ فَاهْدُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطِ الْجَحِيمِ (٢٣) وَقِفُوهُمْ ۖ إِنَّهُم مَّسْئُولُونَ (٢٤) مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ (٢٥) بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ (٢٦) وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ (٢٧) قَالُوا إِنَّكُمْ كُنتُمْ تَأْتُونَنَا عَنِ الْيَمِينِ (٢٨) قَالُوا بَل لَّمْ تَكُونُوا مُؤْمِنِينَ (٢٩) وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ ۖ بَلْ كُنتُمْ قَوْمًا طَاغِينَ (٣٠) فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَا ۖ إِنَّا لَذَائِقُونَ (٣١) فَأَغْوَيْنَاكُمْ إِنَّا كُنَّا غَاوِينَ (٣٢) فَإِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ (٣٣) إِنَّا كَذَٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ (٣٤) إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ (٣٥) وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُو آلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُونٍ (٣٦) بَلْ جَاءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِينَ (٣٧) إِنَّكُمْ لَذَائِقُو الْعَذَابِ الْأَلِيمِ (٣٨) وَمَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (٣٩) إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ (٤٠) أُولَٰئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ (٤١) فَوَاكِهُ ۖ وَهُم مُّكْرَمُونَ (٤٢) فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ (٤٣) عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ (٤٤) يُطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ (٤٥) بَيْضَاءَ لَذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ (٤٦) لَا فِيهَا غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ (٤٧) وَعِندَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ عِينٌ (٤٨) كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ (٤٩) فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ (٥٠) قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ (٥١) يَقُولُ أَئِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِينَ (٥٢) أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَدِينُونَ (٥٣) قَالَ هَلْ أَنتُم مُّطَّلِعُونَ (٥٤) فَاطَّلَعَ فَرَآهُ فِي سَوَاءِ الْجَحِيمِ (٥٥) قَالَ تَاللَّهِ إِن كِدتَّ لَتُرْدِينِ (٥٦) وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّي لَكُنتُ مِنَ الْمُحْضَرِينَ (٥٧) أَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِينَ (٥٨) إِلَّا مَوْتَتَنَا الْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ (٥٩) إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (٦٠) لِمِثْلِ هَٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعَامِلُونَ (٦١) ﴾ الصافات: ١ – ٦١

لغتونه:

(الزاجرات) له زجرڅخه اخيستل شوی اوديوشي شړلوته ويل کېږي هغه که په لاس وي اوکه په ژبه مثلاشپون رمه په غږ شړي اوراګرزوي (مارد) سرغړونکی (ثاقب) سخت سوزونکی(واصب) همېشه تلپاتې (لازب) سرېښناکه يوله بله نښتی (معين) بهېدونکي چينې (غول) هغه څه چي عقل له کاره باسي ابوعبيده وويل چي د(غول ) معناعقل له مينځه وړونکی دی (کاس) دلغت پوهان هغه جام ته چي پکي شراب څښل کېږي (کاْس) وايې خوترڅوچي شراب پکي وي اوکله چي له شرابوتش شي بيايې (اناء) لوښی (پياله) بولي (ينزفون) مسته ول اونشه کولوته وايې کله چي څوک مست شي نو ورته (منزوف) وايې.

تفسير:

﴿ وَالصَّٰٓفَّٰتِ صَفًّا ﴾ (قسم دی پرهغوپرښتوچي صف تړونکي دي په صف تړلوسره) الله ﷻ دغه سورت پخپلو ځينو مخلوقاتو باندي په سوګند کولوپيل کړترڅود هغوی لوړشان اوستري ګټې وښيي اوبندګان دهغوپه اوچت قدر وپوهوي نوېې ددغو پرښتوپه ډلوقسم وخوړکوم چي صف تړونکي په لمنځونو او ياوزرونو دالله دامر دځارني لپاره تيارسئ منتظرې دي. ابن مسعود ﷺ وايې چي داهغه پرښتې دي چي په آسمان کي په عبادت اوذکرکولو کي صفونه ولاړدي اوپه حديث شريف کي راځي: ولي داسي صفونه نه تړی لکه پرښتې چي يې دالله په وړاندي تړي؟ موږ ورته وويل چي ای رسول الله څرنګه؟ پيغمبرﷺ وفرمايل چي لومړني صفونه بشپړوئ اوسم سيخ درېږئ (۱) الله پاک په پرښتوڅخه سوګند اخلي چي دهغولوړ قدر اوزيات عبادت وښيي دوی سره له دې چي دسترخلقت اولوی شان او شوکت لرونکي دي بياهم دالله عبادت نه پرېږدي اوداسي صف صف درېږي لکه چي مؤمنان په لمنځونو کي ولاړوي هغوی دعزيزجبارذات په وړاندي په خشوع اوعاجزي درېږي هغه ذات چي دهغه دجلال له هيبته خلګ ورته غاړي ايږدي همداسي حملة العرش اونوري پاکيزه پرښتې درېږي ﴿ فَٱلزَّٰجِرَٰتِ زَجۡرٗا ﴾ (بياپه هغوشړونکوپه شړلوسره ) يعني هغه پرښتې چي وريځي هغه لوري ته شړي او بيايې کوم ته چي دالله ﷻ خوښه وي ﴿ فَٱلتَّٰلِيَٰتِ ذِكۡرًا ﴾ (بياپه هغولوستونکيوپه ذکرکولوسره ) دغه دملائکولپاره دريم صفت دی، ترڅوددوی دمناقبواومحاسنوستاينه وشي يعني هغه پرښتې چي دالله په أنبياوو اولياوودالله ﷻ آيتونه سره له دې چي تسبيح ، تمجيد ، تقديس اوتحميدکوي لولي ﴿ إِنَّ إِلَٰهَكُمۡ لَوَٰحِدٞ ﴾ (چي بېشکه معبودستاسي خامخايودی ) دغه مقسم عليه دی. مقاتل وايې چي د مکې کفاروبه ويل:( أجعل الآلهة الهاواحدا ) يعني ډېرمعبودان يې يوجوړکړي؟آيادې ګرد مخلوق لپاره يو معبودبس دی ؟نوالله ﷻ په دغو ملائکوسره تشريفاتي قسم وکړ(۲) اوبيايې دالوهيت او وحدانيت معناداسي څرګنده کړه چي:

﴿ رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَا ﴾ چي رب دآسمانونواو ځمکي دی او د هغو(شيانو )چي په مينځ ددوی کي دی (له مخلوقاتواو موجوداتو څخه. خکه وجود د دې دواړو او پدغه ښکلي ډول انتظام يې دالله په

---

(۱) مختصرابن کثير ۳/ ۱۷۴-أخرجه مسلم

(۲) القرطبي ۱۵/ ۲۲

وجود باندي له څرګندو دلائلو څخه يو دليل دی ﴿ وَرَبُّ ٱلْمَشَـٰرِقِ ﴾ اورب د مشرقونو (او مغربونو) يعني الله رب دلمر دختيزونو اولويديزونو دی چي په ځمکه اودوبي کي وي. طبري وايي چي يوازي يې په مشرقونو اكتفاء وكړه څکه چي په مغربونو باندي كلام دلالت كوي (۱) اوبياورسته له وحدانيته د الله ﷻ له قدرت څخه د آسمانونو په ستورو دښايسته کولو اخبار داسي فرمايي: ﴿ إِنَّا زَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنْيَا بِزِينَةٍ ٱلْكَوَاكِبِ ﴾ بېشكه موږ ښايسته كړی دی دغه آسمان نژدې په ښايست سره چي ستوري دي (داسي ځلېږي ته به وا ملغلري دي) ﴿ وَحِفْظًا مِّن كُلِّ شَيْطَـٰنٍ مَّارِدٍ ﴾ او ساتلی دی موږ دا (آسمان) په ساتني سره له هره شيطانه سرکښه (نافرمانه) قتاده وايي چي ستوري د دريو څېزونو لپاره پيداشوي يوداچي شيطانان ورباندي ويشتلی شي بل داچي روښانه اولاره ورباندي مونډل كېږي اودريم د نژدې آسمان لپاره ښكلاپكې ده (۲) ابوحيان وايي چي نژدې آسمان يې څكه خانګړی ونوماوو چي هغه په سترګو ليدل كېږي اوهغه يوازي د شيطانانو څخه د ژغورلو ځای دی (۳) ﴿ لَّا يَسَّمَّعُونَ إِلَى ٱلْمَلَإِ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ (غوږنه نيسي دغه (شيطانان) طرف (دخبرو) د هغه ټولي لوبي پورته ته) يعني دوی نشي كولای چي د هغوملكو خبروته غوږ ونيسي كومي چي په عالم علوي كي دي ، چابيا ويلي معناداچي ددې لپاره چي غوږ ونه نيسي ﴿ وَيُقْذَفُونَ مِن كُلِّ جَانِبٍ دُحُورًا ﴾ او ويشتلی شي له هره لوري (د آسمانه چي دوی يې د ختلو اراده وكړي) لپاره د شړلو له اوربدلو د آسماني خبرونو. طبري وايي چي (دحر) شړلو اوليري كولو ته وايي (۴) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ ﴾ اوشته دوی ته عذاب (په آخرت كي) تل ترتله پرله پسې ﴿ إِلَّا مَنْ خَطِفَ ٱلْخَطْفَةَ ﴾ مګرغوږنيسي هغه (شيطان) چي غوټه اچوي په يوكرت غوټه اچولو ﴿ فَأَتْبَعَهُۥ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴾ پس ژر ورپسي راځطاشي لمبه (رڼا) كونكى سوځونكى. مفسرين كرام وايي چي سرغړونكى شيطان په يو.رپ دسترګوكي هغه حالات چي په ملأ الاعلى كي ورباندي خبري كېږي اختطاف كوي بيارڼاكونكى لمبه ورپسي راځطاشي او ور باندي ولګېږي نوبيې وسوځوي . قرطبي وايي چي شهاب ستوری له ثوابتوستورو څخه نه دی څكه هغوی چي كله روان وي حركت يې نه ليدل كېږي اوددغو شهاب ستوروحركت له ورايه ليدل كېږي (۵) ﴿ فَٱسْتَفْتِهِمْ ﴾ پس وپوښته ته دغه مشركان (ای محمده ! چي دوی له بعثه منكردي) ﴿ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَم مَّنْ خَلَقْنَآ ﴾ (چي آيادوی سخت دي له جهته د پيدا ينبته كه هغه څوک چي موږ پيداكړي دي) يعني آيادوی غټ زورور اوقوي دی كه دغه آسمانونه ، ځمكي

---

(۱) القرطبي ۲۴/۱۵
(۲) القرطبي ۲۴/۱۵
(۳) البحرالمحيط ۳۵۲/۷
(۴) الطبري ۲۳ /۲۷
(۵) القرطبي ۲۷/۱۵

او ترمينځ ددوې له پرښتو او عجيبه غريبه مخلوقاتو څخه ﴿ إِنَّا خَلَقْنَٰهُم مِّن طِينٍ لَّازِبٍ ﴾ بېشکه موږ دوی پيدا کړي دي له سريښناکي ختي څخه) يعني نرمه سريښناکه چي قوت او ټينګښت پکي نه وي. طبري وايي چي سريښناکه يې ځکه وبلله چي دغه په او بولړلي خټه ده کوم چي بني آدم له خاورو او له او بو پيدا شوی دوه نور عنصرونه يې اور او هوا دي هو کله چي خاوره له او بو سره ګډه شي سريښناکه وګرزي (۱) مقصد له دې آيت شريف څخه د انسان په اعاده او بعث باندي برهان راوړل دي) هغه ذات چي انسان يې له عدم څخه پيدا کړی پدي هم قادر دی چي اجسام وروسته له فنا بيرته راژوندي او وپنځوي

﴿ بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ ﴾ بلکه ته تعجب کوي (ددوی په تکذيب او انکار) حال دا چي دوی (په تاپوري) مسخرې کوي ابوالسعود وايي معنا دا چي ته دالله په قدرت چي داسي ستر مخلوقات يې پيدا کړي تعجب کوې چي دوی څرنګه له دې سره سره له بعث څخه انکار کوي خو دوی بيا ستا پر تعجب او د بعث په هکله ټينګار باندي مسخرې کوي (۲) ﴿ وَإِذَا ذُكِّرُوا۟ لَا يَذْكُرُونَ ﴾ او هر کله چي و پوهول شي دوی نه پوهېږي (پند نه اخلي سوچ پکي نه وهي) ﴿ وَإِذَا رَأَوْا۟ ءَايَةً يَسْتَسْخِرُونَ ﴾ او هر کله چي وويني دوی کومه نښه دليل (د قدرت معجزه) نو پرې مسخرې کوي) يعني کله چي دوی کومه څرګنده معجزه او نښه ووينې چي ستا په رښتنولي دلالت کوي لکه د سپوږمۍ توټه کېدل او يا دونو او ډېرو خبري کول نو دوی پرې مسخرې کوي يا نور هم د استهزآء او ملنډو لپاره رابولي ﴿ وَقَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ او وايي (منکران) چي نه دي دا (چي موږ وليد) مګر ښکاره کوډي دي، په البحر المحيط کي وايي چي په (هذا) سره اشاره هغو معجزاتو ته ده کوم چي د رسول الله ﷺ په لاس ښکاره شوي دي (۳) ﴿ أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَٰمًا أَءِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴾ او وايي (منکران) آيا هر کله چي مړه شو او خاوري (او وروسته) هډوکي آيا موږ به خامخا بيا ژوندي راپاڅول کېږو؟ استفهام د انکار او استهزآء لپاره دی ﴿ أَوَءَابَآؤُنَا ٱلْأَوَّلُونَ ﴾ که پلرونه رومبني زموږ (هم راژوندي کېږي؟) زمخشري وايي معنا دا چي زموږ پلرونه به هم راژوندي کېږي؟ دغه په استبعاد کي نور زياتوالی دی يعني هغوی خو ډېر رومبی وو د هغوی راپاڅېدل ډېر مستبعد او خورا باطل دی ﴿ قُلْ نَعَمْ وَأَنتُمْ دَٰخِرُونَ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) هو (ټول راژوندي کېږي) حال دا چي تاسي به ذليل هم يی! ﴿ فَإِنَّمَا هِىَ زَجْرَةٌ وَٰحِدَةٌ ﴾ پس بېشکه هم دا خبره ده چي دغه قيامت يوه چيغه ده کله چي اسرافيل ﷺ په شپېلۍ کي پو کړي ترڅو خلګ له قبرونو راپاڅېږي ﴿ فَإِذَا هُمْ يَنظُرُونَ ﴾ پس ناڅاپه دوی به ګوري (يو بل ته) چي څه را کېږي؟) قرطبي وايي چي (زجرة) معنا (صيحة) او هغه دوهمه شپېلۍ ده ځکه يې (زجرة) بولي چي مقصود پکي زجر دی لکه چي داو ښانو او

---

(۱) الطبري ۲۳/۲۷
(۲) ابوالسعود ۴/۲۲۲
(۳) البحر المحيط ۷/۳۵۵

آسانو دشرلوپه وخت کي کومه کلمه (۱) په کارېږي وروسته له دي الله تبارک وتعالی ددوی حسرت او ندامت کله چي د قیامت کړاوونه ویني داسي بیانوي ﴿ وَقَالُوا۟ يَٰوَيْلَنَا هَٰذَا يَوْمُ ٱلدِّينِ ﴾ اووايي به (منکران) ای خرابي ده موږ ته (نو وايي به ملائکي دوی ته) دا خو هغه دجزاء ورځ ده، ملائکي به دغه د دوی دتوبيخ اوتقريع لپاره وواېي ﴿ هَٰذَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ٱلَّذِى كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ ﴾ دا همغه ورځ د فيصلي ده هغه ورځ چي وی تاسي چي پدې باندي به مونسبت ددروغو کاوو ، بيضاوي وايي چي مراد له فصل څخه قضاده اوداچي په دې ورځ کي به نېکان اوبدان سره بېلېږي (۲) ﴿ ٱحْشُرُوا۟ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ وَأَزْوَٰجَهُمْ ﴾ (الله به ملائکوته وفرمايي چي) راټول کړئ تاسي هغه کسان چي ظلم يې کړ ی وو (په ځانونو او کافران شوي وو) او (کافراني) ښځي ددوی يعني ظالمان اوددوی هم مثله راټول کړئ لکه هرانسان له خپله ساري سره . قرطبي وايي: معناداچي زاني له زاني سره ،شرابي له شرابي او غل له غله سره (۳) اوهمداسي په بل روايت کي ابن عباس رضي الله عنهما وايي معناداچي : ظالمان اودهغوی کافراني ښځي راټولي کړئ اوهمداسي بياپه بل روايت کي ابن عباس هم له ازواجو څخه امثال اوسيالان اخلي (۴) ﴿ وَمَا كَانُوا۟ يَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ اوهغه چي وو دوی چي عبادت به يې کاوو بې له الله ، لکه بتان اونورمعبودان ترڅو ددوی حسرت اوخجالت يوپه دوه شي ﴿ فَٱهْدُوهُمْ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلْجَحِيمِ ﴾ پس برابر کړي دوی ددوزخ لاري ته اودوزخ ته يې ورسوي ، په دې لفظ کي چي : (أهدوهم) تهکم اوملنډي دي کله چي دوی په دنياکي سمه لاره ونه موندله نوپه آخرت کي دي ددوزخ لاره ومومي ﴿ وَقِفُوهُمْ ۖ إِنَّهُم مَّسْـُٔولُونَ ﴾ او ودروئ دوی (په دغه لاره کي) بېشکه دوی پوښتېدلی شي يعني ترې ددوی داقوالو وافعالو پوښتنه کېږي اوبياورته دتوبيخ اوتکوني په توګه ويل کېږي ﴿ مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ ﴾ څه مانع دی تاسي ته چي يوله بله سره مرسته نه کوی ؟چي هريو ستاسي مرستي ته محتاج ياست. مفسرين کرام وايي چي دغه دابوجهل هغي وينا ته اشاره ده چي د بدرپه ورځ يې ويل: ﴿ ...... نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴾ (القمر: ۴۴) (۵) اود (تناصرون) اصل تتناصرون وو له دووتوروڅخه يې يو دتخفيف لپاره حذف کړی دی ﴿ بَلْ هُمُ ٱلْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ ﴾ بلکه دوی نن ورځ پخپله خپل ځانونه تسليموي (که عابدان دي که معبودان دي وبل له مرستي رسولو څخه ټول عاجزدي ) ﴿ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَآءَلُونَ ﴾ اومخ به وګرزوي ځيني ددوی پرځينونورو (کشرانو اومشرانو) پوښتنه به کوي (په ملامتي اوشخړه سره). ابو السعودوايي چي د دوی پوښتنه به دشخړي ، توبيخ اومجادلي

---

(۱) القرطبي ۱۵/ ۷۲

(۲) البيضاوي ۲/ ۱۳۸

(۳) تفسير القرطبي چي له عمربن الخطاب څخه يې راوړی.

(۴) دادواړه روايتونه البحر المحيط راوړي ۷/ ۳۵۶

(۵) القرطبي ۱۵/ ۷۴

وي(¹) ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَأۡتُونَنَا عَنِ ٱلۡيَمِينِ ﴾ وبه وايي (كښران مشرانوته ) چي بېشكه تاسي وى تاسي (په دنيا كي ) چي راتلى به موږته له جانبه دقسم (يازور او قوت) يعني تابعان به متبوعانوته ووايي چي تاسو وى موږته به موباطل ښايسته كاوواودهدايت دلاري له پلوي كولوبه موراګرزولو(²). طبري وايي چي معناداتاسي به وى چي ددين اوحق له بابه به راتلى اوموږبه موغولولوتېرايستلوبياوايي چي(يمين) دعربوپه كلام كي څواک اوقوت ته وايي چا بيا ويلي چي دديې معناداچي تاسوبه دوسوسي له لاري موږته راتلى هغه چي غالبًاپه پټه ترسره كېږي(³) ﴿ قَالُواْ بَل لَّمۡ تَكُونُواْ مُؤۡمِنِينَ ﴾ وبه وايي (تابعان متبوعانوته نه ده داسي) بلكه نه وى تاسي پخپله ايمان راوړونكي. ابن كثير وايي: معنا دا چي داسي نه ده لكه تاسي ګمان كوى بلكه ستاسي زړونوايمان نه منو اوكفر، عصيان يې خوښ وو (⁴)﴿ وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيۡكُم مِّن سُلۡطَٰنِۭ ﴾ اونه وو موږ ته پر تاسي باندي هيڅ زورتسلط چي تاسي دځان پلويان كړو ﴿ بَلۡ كُنتُمۡ قَوۡمًا طَٰغِينَ ﴾ بلكه وى تاسي يوقوم سركښه (له حده وتونكي، په تاسي كي طغيان اوفجور اودعصيان لپاره استعداد وو څكه تاسي زموږ پلوي وكړه ﴿ فَحَقَّ عَلَيۡنَا قَوۡلُ رَبِّنَآۖ ﴾ پس ثابته شوه پرموږ(ټولو ) خبره درب زموږ (چي دعذاب وعيدوو ) ﴿ إِنَّا لَذَآئِقُونَ ﴾ بېشكه موږ خامخا څكونكي يو(دعذاب ) ﴿ فَأَغۡوَيۡنَٰكُمۡ إِنَّا كُنَّا غَٰوِينَ ﴾ (پس موږ ګمراه كړى تاسي بېشكه (لكه) چي موږ ګمراهان وو) يعني موږ تاسوته باطل ښايسته كړاوسرغړوني ته موراوبللى څكه موږ په ګمراهي او سرغړونه كي ووبيا الله ددوى دحال اخبارداسي فرمايي: ﴿ فَإِنَّهُمۡ يَوۡمَئِذٖ فِي ٱلۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُونَ ﴾ پس بېشكه چي دوى نن ورځ په عذاب كي سره شريكان دي (لكه چي په سركښي اوطغيان كي هم په دنيا كي سره شريكان وولكه چي الله فرمايي: ﴿ وَلَن يَنفَعَكُمُ ٱلۡيَوۡمَ إِذ ظَّلَمۡتُمۡ أَنَّكُمۡ فِي ٱلۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُونَ ﴾ (الزخرف ۳۹ ) ﴿ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَفۡعَلُ بِٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴾ بېشكه موږ هم داسي (لكه چي له دوى سره موو كړل) كووله ټولو مجرمانوسره اوالله يې سبب داسي څرګندوي چي: ﴿ إِنَّهُمۡ كَانُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَهُمۡ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ يَسۡتَكۡبِرُونَ ﴾ بېشكه دوى ووكله چي وبه ويل شو دوى ته چي نشته بل برحق معبود هيڅوک مګر يوازي الله دى نو تكبربه يې كاوو ﴿ وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُوٓاْ ءَالِهَتِنَا لِشَاعِرٖ مَّجۡنُونِۭ ﴾ اووايي (دغه منكران) چي آيا بېشكه موږ خامخاپرېښودونكي يودخپلو خدايانولپاره ديولېوني شاعر(چي پردې كلمه باندي به يې رسول الله ﷺ قصدكاوو ، الله ددوى په ترديد كي فرمايي ﴿ بَلۡ جَآءَ بِٱلۡحَقِّ وَصَدَّقَ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴾ (نه ده داسي ) بلكه راغلى دى (محمد ) په حق (دين)

---

(¹) ابوالسعود ۴/ ۳۶۸
(²) داوېنا ابن كثيرله سدي څخه رانقل كړي اوڅرګنده ده.
(³) دغه معنافي الظلال راوړي ښه باريكه معناده خودلغت له پلوه مرستندوى نلري.
(⁴) مختصرابن كثير ۳/ ۱۷۷

سره اوربښتونی بولی (محمد) ټول پخواني رسولان) يعني محمد ﷺ خوتوحيد او اسلام راوړی چي هغه ببخي ښکاره برحق دی او لکه چي نورو پيغمبرانو څه راوړي وو داهم دغسي دی. ابوحيان وايي چي مشرکانو دوحدانيت او رسالت انکار يوځای وکړ او بيايې دغه ويناهم پخپل کلام کي ګډه کړه چي لېونی شاعر دی ځکه شاعرخودومره فهم اوځيراکت لري چي ښايسته معناګاني وپېيي اودغوره کلماتو او جملوپه قالب کي يې توی کړي اوکوم چي لېونی وي هغه بياپخپل کلام کی ګډي وډي اوچټيات وايي (١) ﴿ إِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا۟ ٱلْعَذَابِ ٱلْأَلِيمِ ﴾ بېشکه چي تاسي خامخاڅکونکي ياست دعذاب دردناک ﴿ وَمَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ اوجزابه نه درکوله کېږي مګرپه قدرد(هغه) عمل چي تاسي به کاوو(په دنياکي صاوي وايي داله دې امله چي د شرجزاء فقط دهغه په اندازه وي او دخيرجزا څوچنده ورکول کېږي (٢) کله چي يې دکفارو يوڅه حال او عذاب ياد کړ ورپسې دمؤمنانوڅه احوال اونعمتونه رااخلي اوهمدغه دقرآنکريم تګلاره ده چي ددواړو ډلو ترمينځ موازنه وساتي اوترغيب له ترهيب سره يوځای راوړي فرمايي: ﴿ إِلَّا عِبَادَ ٱللَّهِ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ مګرهغه بندګان دالله چي مخلصين (موحدين) دي دغه استثناء منقطع ده دغه کسان به عذاب ونهويني اونه به په حساب کي ورسره مناقشه وکړی شي بلکه الله به يې له ګناهونو څخه ورتېرشي او نېکي به يوپه لسه آن تراووسوو پوري جزاورکړي اوبيايې جزاداسي بيانوي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ ﴾ دغه (مخلصين چي دي) شته دوی ته روزي معلومه، په جنت کي سبابېګاه لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴾ (مريم ٦٢) ابوالسعود وايي چي دمعلوم معناداچي خصائص او ځانګړتياوي به يې معلوم وي منظربه يې حسين خوند به يې لذيذ، بوی به يې ښکلی وي (٣) او بياد روزي تفسير هسي فرمايي ﴿ فَوَٰكِهُ ۖ وَهُم مُّكْرَمُونَ ﴾ رنګارنګ مېوې اودوی ته به عزت ورکړی شوی وی؛ فواکه يې ځکه ځانګړي يادکړل چي په جنت کي چي هرڅه خوړل کېږي هغوی به دفاکهې اوتلذذ لپاره وي ﴿ فِى جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ په جنتونو دانوله نعمتونوکي ﴿ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴾ (ناست به وي) په تختونوسره مخامخ) يعني دوی به په ښايسته تختونو ناست وي چي له ملغلرو، ياقوتو څخه به جوړوي بل مزيت يې دادی چي دغه تختونه به هرځنګه چي دوی غواړي هغسي څرخي اوراګرزي. مجاهدوايي د(متقابلين) معنا داچي يوبه دبل شاته نه ګوري اوله محبت څخه به ټول سره مخامخ يو دبل له ليدلو خوشحالېږي (٤) ﴿ يُطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ ﴾ ګرزولی به شي پردوی (له طرفه دجنتي ساقيانو) له جامونودصافو شرابودچينو(بهېدونکي)دجنت، کله چي يې دخوراک ذکروفرمايو ورپسې يې دشرابو يادونه وکړه چي دجنت خدمتګاران به دجنتي شرابوله وياله ډک جامونه جنتيانوته وړاندي کوي. صاوي وايي چي دجنت شراب يې په (معين) ځکه وستايل چي هغه لکه اوبه

(١) البحر المحيط ٣٥٧/٧
(٢) حاشية الصاوي على الجلالين ٣٣٧/٣
(٣) تفسير أبي السعود ٢٢٨/٤
(٤) القرطبي ٧٧/١٥

بهېدونکي دي[۱] او ابن عباس ﷺ وايي هرځای چې په قرآنکریم کي د(کأس) یادونه راغلي معنا يي شراب او معين بهېدونکي (۲) ﴿ بَيۡضَآءَ لَذَّةٖ لِّلشَّٰرِبِينَ ﴾ تک سپين خوند ورکونکي لپاره دڅښونکو. حسن رحمه الله وايي چي دجنت شراب ترشيد و لازيات سپين دي ﴿ لَا فِيهَا غَوۡلٞ وَلَا هُمۡ عَنۡهَا يُنزَفُونَ ﴾ نه به وي په دغو (شرابو) کي څه علت آفت او نه به وي دوی له هغو (شرابو) څخه مست بېخوده (لکه چي ددنيا شراب په دې مفاسدو ډک دي. ابن کثير وايي: الله تعالی دجنت شراب له هغو څېزونو څخه پاکيزه کړي دي کوم آفتونه چي ددنيا په شرابو کي وي لکه (دسردرد وندوالی، دګېډي درد او دعقل بېول دجنت شراب خونديې لکه رنګ ښکلی او پاکيزه دی له (غَول) څخه مراد ابن عباس دسردرد اخيستی دی او قتاده وايي چي دسر او ګېډي درد ته (غَول) وايي دغه دجنت دشرابو خورا ښايسته ښکلي اوصاف دي چي خونديې دشرابو او آفتونو فسادونه پکي نه وي نه مستي پکي شته چي دسردروندوالی پيښوي، نه بېخودي او بېهوښي لري چي سړی له خوندونو څخه محروموي لکه چي په دنيوي شرابو کي موندل کېږي

﴿ وَعِندَهُمۡ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرۡفِ ﴾ (او وي به په نزد ددوی کي حوري ټيټي لرونکي دسترګو) يعني دوی ته به هغه عفيفي حياناکي حوري وي چي يوازي خپلو مېړونو ته به ګوري بل چاته به له حيا او عفته نه ګوري ابن عباس ﷺ وايي چي ﴿ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرۡفِ ﴾ معنادا چي داسي عفيفي چي له خپلو مېړونو بغير بل چاته نه ګوري(۳) ﴿ عِينٞ ﴾ (غټي سترګي) يعني دوی له عفت سره سره دښکلو سترګو خاونداني هم وي. طبري وايي: معنادا چي دغټو سترګو خاونداني به وي چي حسن او جمال به هم لري او داهغوته وايي چي خورا ښايسته غټي سترګي لري (۴) ﴿ كَأَنَّهُنَّ بَيۡضٞ مَّكۡنُونٞ ﴾ (ګواکي دوی هګۍ دي پټي ساتلي شوي) يعني لکه چي دوی په صدف کي پټي ملغلري دي دغه وينا ابن عباس کړي او دالله ﷻ په دې قول يي استشهاد کړی دی چي: ﴿ وَحُورٌ عِينٞ كَأَمۡثَٰلِ ٱللُّؤۡلُوِٕ ٱلۡمَكۡنُونِ ﴾ (الواقعة ۲۲ - ۲۳) (۵) او حسن رحمه الله وايي چي د(مکنون) معنادا چي لاس به نه وي ورورړل شوی او غرض دا چي دی به له دغه وتلي جمال سره سره داسي خوندي ساتلي شوي وي لکه چي ملغلري په صدف کي سره له نرموالي، لطف او ښکلا ﴿ كَأَنَّهُنَّ بَيۡضٞ مَّكۡنُونٞ ﴾ يعني چي نه لاس ورغځېدلی او نه هم سترګو ليدلي دي او عرب ښځه له هګۍ سره تشبيه کوي او دشبه وجه يي صفايي او سپين والی بولي. ابوحيان وايي الله تعالی پدغه آيتونو کي لومړی دروزي يادونه وکړه او دا هغه څه دي چي انسان ورباندي تلذذ اخلي دوهم يي اکرام و فرمايل هغه چي نفوس ورباندي خوند اخلي بيايي دمحل يادونه وکړه چي جنات النعيم دي بيايي داجتماع او ميني دلذت

---

(۱) حاشية الصاوي ۳/ ۳۳۷
(۲) تفسير الطبرى ۲۳/ ۳۴
(۳) مختصر ابن کثير ۳/ ۱۷۹
(۴) تفسير الطبري ۲۳/ ۳۶
(۵) القرطبي ۱۵/ ۸۱

ذکروکړ چي ﴿ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴾ يې يادکړچي د خوښي اوالفت د بشپړاوي لپاره وي ورپسې يې دمشروب چي ښايسته سپين خوندور شراب پداسي حال کي چي د جنت ساقيان به يې ورته وړاندي کوي پخپله به يې نه رااخلي اوله دې نه وروسته يې په جسدي لذت ختم کړهغه چي ترګردولذتونو اوچت اوهغه په مېرمنوباندي خوند اخيستل دی (۱) ور پسې الله ﷻ د هغه څه اخبارفرمايي کوم چي جنتيان د خوښي مجالس په شرابي دسترخوانونو جوړوي اويوله بله سره به خبري اتري کوي الله وايي: ﴿ فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَآءَلُونَ ﴾ پس مخ به وګرزوي ځيني ددې جنتيانو پرځينونورو جنتيانوچي پوښتنه به سره کوي يوله بله (له احوالوددنياچي دغه نعمتونه ګوره دغه دايمان ثمره ده) ﴿ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ ﴾ نووبه وايې يوويونکی له دوی نه چي بېشکه زه چي وم وو مالره يو انډيوال (منکرله بعثه) ﴿ يَقُولُ أَءِنَّكَ لَمِنَ ٱلْمُصَدِّقِينَ ﴾ چي ويل يې (ماته) آيابېشکه ته چي يې له باورکونکويې (په بعث بعد الموت) ﴿ أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَٰمًا أَءِنَّا لَمَدِينُونَ ﴾ آياهرکله چي موږ مړه شو اوموږ خاوري شو اوهډوکي آيابېشکه موږ ته به خامخا جزا راکړی شي؟ ! (دغه به يې دتعجب ، تکذيب اواستبعادپه توګه ويل) ﴿ قَالَ هَلْ أَنتُم مُّطَّلِعُونَ ﴾ (بياوايي آيا تاسي کتونکي يی؟ ) يعني دغه مؤمن نوروجنتي ورونوته وايي آيا تاسي په دوزخ کي ددغه ملګري حال ګوری؟ الله تعالی فرمايي: ﴿ فَٱطَّلَعَ فَرَءَاهُ فِي سَوَآءِ ٱلْجَحِيمِ ﴾ پس وبه ګوري دغه (قائل) پس وبه ويني هغه (منکرملګری) په مينځ ددوزخ کي) هلته چي داورلمبې به پورته کېږي) ﴿ قَالَ تَٱللَّهِ إِن كِدتَّ لَتُرْدِينِ ﴾ وبه وايي (قائل منکرته دملامتياپاره) په الله قسم دی چي نژدې وې ته چي ددوزخ په کنده کي مي وغورځوې ﴿ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّي لَكُنتُ مِنَ ٱلْمُحْضَرِينَ ﴾ که دالله انعام (فضل) درب زمانه وای خامخاوم به زه له حاضرکړی شويو (دوزخ ته سره له تا) يعني که الله ﷻ ماته په ايمان ثبات نه وای رابښلی نوله تاسره به په دې دوزخ کي حاضرکړی شوی وم ورپسې به دغسي استهزاء ورباندي کوي لکه چي هغه پرده باندي په دنياکي کوله ﴿ أَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِينَ ۝ إِلَّا مَوْتَتَنَا ٱلْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴾ آياپس نه يوموږ مړه کېدونکي ؟ (ته اوس هم په هغه عقيدې يی چي نه به مرو) مګرهغه مرګ زموږ رومبنی (په دنياکي ) اونه يوموږ په عذاب کړ ی شوی ؟) دغه ته اسلوب ساخروايي چي له ده کافرملګري څخه به دتشفي په ډول پوښتي ؛ اوبياتحديث په نعمت داسي څرګندوي چي ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ بېشکه چي دغه (ابدي خوندورحيات) خامخاپه مرادرسېدل بری ډېرلوی دی ﴿ لِمِثْلِ هَٰذَا فَلْيَعْمَلِ ٱلْعَٰمِلُونَ ﴾ خاص لپاره ددې (نعمتونو ) پس ښايي چي عمل وکړي عمل کونکي . مفسرين کرام وايي چي په دغو آيتونوکي دهغو دوو شريکانوکيسې ته اشاره شوي کوم چي اته زره درهمه يې درلودل يوه ددنياپه کار وباراوتجارت کي چندان چورت نه واهواودنيوي چاروته يې زياته پاملرنه نه کوله اوهغه بل دمال په

(۱) البحر المحيط ۳۵۹/۷

دپرولوکي يومخ ډوب وو نوله خپله شريکه څخه بېل شو څکه هغه دنيايي کاروبار ته دېره ملانه تېتوله اوهرکله چي به دغه ګډندوی شريک يوڅېز رانيول لکه سرای، مينځه اوباغ نوبه يې دوهم ملګري ته وراندي وړاندي کاووا وفخربه يې کاووچي زماڅومره مال زيات دی اوچي مؤمن به دغه واوربدل هغومره به يې دالله ﷻ په لاره کي صدقه اوخيرات ورکاوو ترڅوپه جنت کي ماڼۍ رانيسي اوچي ملګري به يې ورسره وليدل ورته ويل به يې په مال دولت دي څه وکړل ؟ هغه به ورته ويل هغه مي دالله په لارکي خيرات کړنوهغه به پسي خندل اوملنډي به يې وربانديوهلې چي آيا ته له صدقه ورکونکي څخه يې؟ انوددوی دغه حال الله په خپل سپېڅلي کتاب کي بيان کړ(۱)

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- دطباق صنعت چي ﴿ بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ ﴾ څکه سخريه دتعجب په مقابل کي راغلي ده.

۲ تاکيد په (ان) او(لام) سره چي پدې کلام کي دی ﴿إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ﴾ دغه دکلام هلته تقاضا او غوښتنه ده چي مخاطب منکروي.

۳- تهکمي اسلوب چي فرمايي: ﴿ فَاهْدُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطِ الْجَحِيمِ ﴾ دلته هدايت دتهکم اواستهزاء لپاره راوړل شوی څکه هدايت خوجنت ته وي دوزخ ته نه وي

۴- ايجاز بالحذف چي پدې کلام کي دی ﴿إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ ﴾ يعني تاسووواياست (لااله الا الله) خودغه حذف شوی دی څکه چي دکلام سياق وربانديدلالت کوي

۵- دالتفات صنعت چي له غيبت څخه خطاب ته راغلی لکه ﴿ إِنَّكُمْ لَذَائِقُو الْعَذَابِ الْأَلِيمِ ﴾ اصل خوداسي ووچي (انهم) خودغه التفات يې دزياتي تقبيح اوشناعت لپاره راووړ

۶- کنايه چي پدې کلام کي شته ﴿ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ عِينٌ ﴾ پدې باندي يې له حورالعين څخه کنايه راوړه څکه هغوی عفيفي دي له خپلو مېړونو پرته بل هيچاته نه ګوري

۷- مرسله تشبيه اومجمله لکه ﴿ كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ ﴾ چي راغلي دي دلته يې دشبه وجه حذف کړي نومجمله ګرزېدلې ده.

۸- دفواصلومراعات کول چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي لکه ﴿ طِينٍ لَّازِبٍ ، شِهَابٌ ثَاقِبٌ ، عَذَابٌ وَاصِبٌ ﴾ ترآخره پوري چي ټول يوډول راغلی دی

(۱) الطبري ۲۳/ ۳۸ مختصرابن کثير ۳/ ۱۸۱ هلته دکيسي تفصيل شته .

الله تعالی فرمایي:

﴿ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ (٦٢) إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِّلظَّالِمِينَ (٦٣) إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ (٦٤) طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ (٦٥) فَإِنَّهُمْ لَآكِلُونَ مِنْهَا فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ (٦٦) ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ (٦٧) ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ (٦٨) إِنَّهُمْ أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ ضَالِّينَ (٦٩) فَهُمْ عَلَىٰ آثَارِهِمْ يُهْرَعُونَ (٧٠) وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ الْأَوَّلِينَ (٧١) وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ (٧٢) فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ (٧٣) إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ (٧٤) وَلَقَدْ نَادَانَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيبُونَ (٧٥) وَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ (٧٦) وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ (٧٧) وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ (٧٨) سَلَامٌ عَلَىٰ نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ (٧٩) إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ (٨٠) إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ (٨١) ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ (٨٢) ۞ وَإِنَّ مِن شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ (٨٣) إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ (٨٤) إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَاذَا تَعْبُدُونَ (٨٥) أَئِفْكًا آلِهَةً دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ (٨٦) فَمَا ظَنُّكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ (٨٧) فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ (٨٨) فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ (٨٩) فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِينَ (٩٠) فَرَاغَ إِلَىٰ آلِهَتِهِمْ فَقَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ (٩١) مَا لَكُمْ لَا تَنطِقُونَ (٩٢) فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِينِ (٩٣) فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ (٩٤) قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ (٩٥) وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ (٩٦) قَالُوا ابْنُوا لَهُ بُنْيَانًا فَأَلْقُوهُ فِي الْجَحِيمِ (٩٧) فَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَسْفَلِينَ (٩٨) وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ (٩٩) رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصَّالِحِينَ (١٠٠) فَبَشَّرْنَاهُ بِغُلَامٍ حَلِيمٍ (١٠١) فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّي أَرَىٰ فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ فَانظُرْ مَاذَا تَرَىٰ ۚ قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ ۖ سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ مِنَ الصَّابِرِينَ (١٠٢) فَلَمَّا أَسْلَمَا وَتَلَّهُ لِلْجَبِينِ (١٠٣) وَنَادَيْنَاهُ أَن يَا إِبْرَاهِيمُ (١٠٤) قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا ۚ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ (١٠٥) إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْبَلَاءُ الْمُبِينُ (١٠٦) وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ (١٠٧) وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ (١٠٨) سَلَامٌ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ (١٠٩) كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ (١١٠) إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ (١١١) وَبَشَّرْنَاهُ بِإِسْحَاقَ نَبِيًّا مِّنَ الصَّالِحِينَ (١١٢) وَبَارَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلَىٰ إِسْحَاقَ ۚ وَمِن ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ مُبِينٌ (١١٣) ﴾ الصافات: ٦٢ - ١١٣

**مناسبت:**

کله چي الله تعالی هغه څه چي دابرارولپاره يې په دارالنعيم کي تيارکړي ووبيان کړل وروسته دهغه څه يادونه کوي کوم چي داشرارولپاره يې په جحيم کي چمتوکړي دي ترڅوددواړو ډلو ترمينځ فرق اوبېلتون وشي وروسته دنوح عليه السلام کيسه اوبيادابراهيم عليه السلام کيسه راوړي اوهغه څه چي پدې کيسوکي پندونه اوعبرتونه دي لپاره دهغه چاچي وربانديي پند اخلي بيانوي

**لغتونه:**

(نزلا)مېلمستياهغه چي دمېلمنوپه وياړله خوراک څښاک اونوراکرام څخه تيارېږي (طلعها) مېوه دهغوڅکه يې طلع بولي چي رادبره کېږي (لشوبا) له شاب څخه اخيستل شوی اوګډمخلوط ته وايې

(يهرعون) منډي وهي فرآء وايي چي (اهراع) هغه منډي ته وايي چي لرزېدل ورسره وي اومبردوايي چي (مهرع) هغه څوک دی چي چاپسي رااخيستی اومنډي وهي لکه چي وايي: (فلان يهرع الى النار) معناداچي فلانی ديخني له لاسه اورته منډي وروهي (١)(شيعة) ملګري اومرستندويان دهغه اوهغه کسان چي دده په پله روان وي (افکا) دروغ اوباطل (سقيم) ناروغ اورنځور(راغ) په يوځېزباندي ميلان کول دي.

تفسير:

﴿ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ ﴾ آيادغه (جنتي نعمتونه) غوره دي له جهته دمېلمستيا (جنتيانوته) که ونه دزقوم (غوره ده دوزخيانوته؟ کوم يوبهتردی؟مېوې، خوراکونه اوفواکه د جنتيانو لپاره دي زقوم ددوزخيانوخواړه دي مقصدله دې څخه دکفاروتوبيخ دی ﴿ إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً لِّلظَّالِمِينَ ﴾ بېشکه موږ ګرزولي ده دغه ونه فتنه (عذاب) لپاره د ظالمانو(ګمراهانومفسرين کرام وايي کله چي کفارو دزقوم دوني واورېدل نويې وويل چي څرنګه ونه په اورکي کېدای شي ؟ اورخو ونه سوځوي او ابوجهل به خپلوملګروته ويل چي آياتاسوپوهېږئ چي زقوم څه شی دی ؟ هغه کوچ (مسکه) او خرما دي اوبيابه يې هغه راوغوښتل اوملګروته به يې ويل: (راځئ چي زقوم سره وخورو !) داهغه څه دي چي محمد ﷺ موږ ورباندي وېروي (٢)﴿ إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِي أَصْلِ الْجَحِيمِ ﴾ بېشکه چي داونه ده چي راووزي په بېخ ددوزخ کي (اوبياښاخونه کوي) ﴿ طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ ﴾ وږي دهغې ګواکي دشيطانانو سرونه دي (په زيات قباحت اوکراهيت کي. ابن کثيروايي چي دشيطانانوله سرونوسره يې مشابه کړل که څه هم مخاطبينوته هغه معلوم نه دی څکه چي په زړونوکي دې باوراستقرارموندلی چي شيطانان خوراقبيح منظردرلودونکی دی (٣)﴿ فَإِنَّهُمْ لَآكِلُونَ مِنْهَا فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ ﴾ پس بېشکه دوی خامخاخوړونکي دي له هغه (زقوم) څخه پس ډک کونکي به وي له هغه (زقوم) څخه دنسونو خپلو(له جهته دډېري لوږي) دغه ددوی پرځای دجنتيانو دخوړوفاکهو خواړه اوفاکهه ده په حديث شريف کي راځي که چېري يوڅاڅکی دزقوم ددنيا په سيندونوکي ولوېږي دځمکني اوسېدونکو ژوند به تريخ کړي نودهغه به څه حال وي چي همدايې خواړه وي ؟(٤)﴿ ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ ﴾ (بيا بېشکه دوی ته پرهغه (ونه دزقوم) خامخاګډول به وي له اوبوايشول شوي څخه ) يعني کله چي دوی ماړه شي اوتنده ورباندي غلبه وکړي نوبه يې خواړه په ايشېدلواوبو ورولړل شي ترڅوچي دزقوم تريخوالی اوايشېدلی اوبه سره يوځای وروڅښول شي اودغه ددوی دعذاب سخت والی دی ﴿ ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَإِلَى الْجَحِيمِ ﴾ بيابېشکه ورتله ددوی به خامخاډېری داورته وي. مقاتل وايي چي حميم له جحيم څخه وتلی دی دوی به حميم ته بېول

---

(١) القرطبي ١٥/ ٨٨
(٢) تفسيرالطبري ٢٣/ ٤٧
(٣) مختصرابن کثير٣ /١٨٢.
(٤)أخرجه الترمذي وقال حديث حسن صحيح.

کبږي چي هلته ځنباک وکړي بیابه بیرته جحیم ته راوستل کېږي او ابوالسعودوايي زقوم اوحمیم ددوزخیانومېلمستیاده چي تر ورننوتلوله مخه به ورته وړاندي کېږي (۱) ﴿ إِنَّهُمْ أَلْفَوْا ءَابَآءَهُمْ ضَآلِّينَ ﴾ بیشکه چي دوی موندلي دي پلرونه خپل ګمراهان ﴿ فَهُمْ عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِمْ يُهْرَعُونَ ﴾ نودوی په قدمونو (پلو) دهغوی پسې منډي وهي ځغلي (دهغوی تقلیدکوي دلیل اوبرهان ته نه ګوري). مجاهدوايي چي دغه تګ یې له منډوسره تشبیه کړلکه چي یو څوک یوڅېزته په ځغاسته ورځي ﴿ وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ أَكْثَرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ اوخامخاپه تحقیق ګمراه شوي وو پخواله دوی نه اکثره ړومبنیو (امتونوځخه په تقلیداوترک ددلیل سره) ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا فِيهِم مُّنذِرِينَ ﴾ اوخامخاپه تحقیق لېږلي موږ په دوی کي وېرونکي (انبیاء) چي دوی یې دالله له عذابه وېرول خودوی بیاهم په کفراوګمراهي کي غوپه وو ﴿ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُنذَرِينَ ﴾ وګوره چي څرنګه ووعاقبت آخره خاتمه دوېرول شویو؟(آیاموږهلاک نکړل اودنورو لپاره موعبرت ونه ګرزول؟) ﴿ إِلَّا عِبَادَ ٱللَّهِ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ مګرهغه بندګان د الله چي پاک کړی شوي دي (په طاعت سره نودوی له عذابه ژغورل شوي دي اوله دې په هیسته دنوح ﷺ کیسه پیلوي فرمايي چي: ﴿ وَلَقَدْ نَادَىٰنَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ ٱلْمُجِيبُونَ ﴾ (اوقسم دی) په تحقیق موږ ته غږکړی وونوح پس خامخانه خواب ورکونکي یو موږ) لام دقسم لپاره توطئه کېدونکی اودجمع په صیغه سره ﴿ٱلْمُجِيبُونَ ﴾ دتعظیم او کبریاء لپاره راوړل شوی دی. صاوي وايي چي الله تعالی په دې سورت کي اوه کیسي یادي کړي دي: دحضرت نوح، ابراهیم، ذبیح اسماعیل، موسی او هارون، الیاس، لوط اویونس علیهم السلام کیسي چي په دې ګردوکي درسول الله ﷺ لپاره تسلیت اوډاډینه ده اودهغه چالپاره چي دده له امت څخه کافرشوی تحذیر دی(۲) ﴿ وَنَجَّيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥ مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ اونجات ورکړموږدغه (نوح) ته اواهل ددغه (نوح) ته له غمه ډېرلوی (چي غرقېدل وو) مفسرین کرام وايي چي دوی (نجات موندلی) اتیاتنه نارینه اوښځینه وو ﴿ وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُۥ هُمُ ٱلْبَاقِينَ ﴾ اووګرزوله موږ اولاده ددغه (نوح) هم دوی باقي پاتي کېدونکي (په ځمکه کي وروسته له هلاکته دقوم څخه یې ابن عباس ﷺ وايي چي دځمکي دسرخلګ ګردد حضرت نوح ﷺ له اولادې څخه دي(۳) په التسهیل کي وايي چي داله دې سببه چي کله الله تعالی په طوفان کي ټول خلګ غرق کړل اونوح ﷺ یې له خپلوملګروسره په بېړۍ کي وژغورل نودده له دریو زامنوهریوه سام، حام، اویافث څخه اولاده وزېږېدله چي اوسني خلګ دهغوی له

(۱) تفسیرأبي السعود ۴ /۲۷۱
(۲) الصاوي على الجلالین ۳ /۳۴۰
(۳) البحرالمحیط ۷ /۳۷۴

ذوذاته دي(۱) ﴿ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴾ او پرې مو ښودل پر دغه (نوح مدح اوثنا) په وروستيو خلکو کې (ترقيامته پورې) ﴿ سَلَامٌ عَلَىٰ نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ ﴾ (پاکيزه) سلام دی (له الله) پرنوح په عالميانو کې (تل ترتله) ﴿ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴾ موږ همداسې (لکه ښکه جزادنوح نيکه) جزا ورکوو محسنانو نيکوکارانو ته (چې تر قيامت يې ذکر جميل ژوندی ساتو) ﴿ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴾ بېشکه چې دغه (نوح) زموږ له (خاصو) مؤمنانو بندګانو څخه دی يعني هغه په عبادت کې مخلص او په ايمان اويقين کې کامل دی دبيضاوي په حاشيه کې وايې چې دغه عزت يې دهغه په هکله ددې لپاره ولورول چې هغه داحسان ور کسانو څخه وو اوبيايې دهغه نيکوکارۍ پدې وستايله چې دی مؤمن ووترڅودايمان سترقدر په ډاګه کړي او داچې دنيايې دده په اولاده ډکه کړه ترڅو چې دده ښکه ستاينه اوثناد ټول عالم په ژبه جاري وي (۲) ﴿ ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ ﴾ بيا غرق کړل موږ (قوم دده) هغه نور (کفار دنوح په غوښتنه کوم چې په نوح ﷺ يې ايمان نه راووړ، نوهيڅ يو ژوندی ساری موترې پرې نه ښودل اونوم اونښان يې ولاړ ورک شوپسې د ابراهيم ﷺ کيسه داسې بيانوي ﴿ وَإِنَّ مِن شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ ﴾ بېشکه يوله تابعانو ددغه (نوح) خامخا ابراهيم دی (چې دده مرستندوی اودده په لاره لاروی دی. بيضاوي وايې چې دنوح ﷺ او ابراهيم ﷺ ترمينځ دوه زره شپږسوه څلوېښت کاله موده وه ددوی ترمينځ دوه انبياء هود او صالح عليهما السلام تېرشوي دي (۳) ﴿ إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴾ کله چې راغی (ابراهيم) خپل رب ته سره له زړه ښه سالم، پاک له شکه اوشرکه ﴿ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَاذَا تَعْبُدُونَ ﴾ کله چې وويل (ابراهيم) پلار خپل اوقوم خپل ته څه شی دی چې تاسې يې عبادت کوئ؟ (له بتانو څخه دغه يې د انکار اوتوبيخ په ډول ورته وويل) ﴿ أَئِفْكًا آلِهَةً دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ ﴾ آياتاسې په دروغو سره معبودان غواړئ نورغيرله الله څخه؟ يعني آياتاسو غيرله الله نه دنورو معبودانو عبادت کوی ددروغو لپاره .دلته يې مفعول لأجله چې ﴿ أَئِفْكًا ﴾ دی په مفعول به باندې له مخه راووړ ترڅو ددوی تقبيح وکړي اودشرک بطلان يې په ډاګه کړی او په اصل کې خوداووچې (أتريدون الآلهة من دون الله افکا) يعني آياتاسو پرته له الله نورخدايان په دروغونيسی . قرطبي وايې چې د(افک) معنابدترين دروغ دي هغه چې ښخي نشي ثابت کېدای (۴) ﴿ فَمَا ظَنُّكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ پس څه ګمان مودی په رب دعالميانو ،استفهام لپاره دتوبيخ اوتحذير دی يعني آياتاسو ګمان کوی چې الله به مو بې له عذابه پرېږدي اوتاسو دغيرالله عبادت کوی؟ طبري وايې معناداچې ای قومه تاسو څه ګمان کوی چې کله له الله سره مخامخ شی هغه به څه درسره کوي

---

(۱) التسهيل في علوم التنزيل ۳ /۱۷۲

(۲) حاشية شيخ زاده ۳ /۱۷۵

(۳) البيضاوي ۲ /۱۴۱

(۴) القرطبي ۱۵ /۱۹۲

؟ حال داچي تاسو غيرله الله دبل چاعبادت کاوو(۱) ﴿ فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي ٱلنُّجُومِ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ ﴾ (پس نظريې واچاوو يونظر په ستوريوکي پس وويل (ابراهيم) چي بېشکه زه ناجوړه يم ) يعني کله چي يې دوی دغيرالله په عبادت وترټل نويې ددې اراده وکړه چي دوی ته وروښيي چي دغه بتان نه ضرررسوي اونه ګټه اوداېې وغوښتل چي يوازې شي اوهغوی زېر اوزيرمات کړي نويې دغه پلمه وسنجوله ترڅوله دوی سره د اخترمېلې ته ولاړنشي اوددوی له عادت اوددوسره سم (چي هغوی نجوميان ستوري پېژندونکي وو ) آسمان ته يې وکتل اودوی ته يې داسي په پام کي وروستله چي ګواکي ستوري پدې دلالت کوي چي زه به سبارنځورشم نويې وويل: زه ناروغ يم يعني که له تاسوسره بهرووتلم ناجوړبه شم اودغه دروغ نه دي بلکه يوډول (تورية) وړاندوينه ده چي شرعي مقصدپه کي پټ دی لکه چي وايي: (ان في المعاريض لمندوحة عن الكذب) يعني په توريوکي له دروغوڅخه خلاصون دی چي دروغ نه ګڼل کېږي مباح دی اوياداچي مقصديې داووچي زه دبتانوله عبادت څخه دزړه رنځوريم (۲) ﴿ فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِينَ ﴾ (پس وګرزېدل هغوی له ابراهيم څخه پداسي حال کي چي دوی شاکونکي وو )يعني هغه يې پرېښود اودوی خپل جشن ته لاړل ﴿ فَرَاغَ إِلَىٰٓ ءَالِهَتِهِمْ ﴾ پس پټ راغی (ابراهيم) معبودانو ددوی ته. ابن کثيروايي معناداچي ددوی له تګ نه وروسته هغه په منډه پټ بتانوته ورغی ﴿ فَقَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴾ پس وويل (ابراهيم دغومعبودانوته ) چي آيانه خوری (تاسي له دغودرته ايښودل شويو خوراکونوڅخه؟ ابن کثيروايي داپدې چي دبتانوپه مخ کي دثواب ترلاسه کولولپاره خوراکونه ايښي ووچي بت پرستانو پردې تبرک نيول (۳) ﴿ مَا لَكُمْ لَا تَنطِقُونَ ﴾ څه شوي دي پرتاسي چي خبري نه کوی ؟ يعني ولې زما پوښتني ته ځواب نه راکوی ؟. ابوحيان وايي: داچي دخوړلوپه هکله يې ورته وويل اووايي دخبرو کولوپه هکله ترې وپوښتل دغه داستهزاء اوسخريې په توګه وو ځکه دوی ترخپلو عابدانولاهم په ټيټه مرتبه کي دي چي نه څه خوړلای شي اونه ځواب ورکولای شي(۴) ﴿ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًۢا بِٱلْيَمِينِ ﴾ پس پټ ورننوت پردوی په وهلوسره په قوت ) يعني پټ ورغی اوپه هغه تبرچي ورسره ووپخپل زور سره يې ورباندي واروکړ. بيضاوي وايي چي: دغه په (يمين) ښی لاس سره مقيدکول په قوت باندي ددلالت کولولپاره راوړي شوي داسبابوقوت دفعل په قوت پسي اړه لري (۵) قرطبي وايي چي دغه وهل ټکول يې په (يمين) ښی لاس پسي ځکه ځانګړي کړل چي هغه ترټولو سخت اوقوي دی(۶) ﴿ فَأَقْبَلُوٓا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ ﴾ پس مخامخ شول متوجه شول (نمروديان) دغه (ابراهيم ) ته چي ورپسي منډې يې وهلې دنيولولپاره

(۱) الطبري ۲۳/۴۵
(۲) دمفسرينو اقوال په الطبري کي وګوره ۱۵/۲۳
(۳) مختصرابن کثير ۳/۱۸۵
(۴) البحر المحيط ۷/۳۶۶
(۵) البيضاوي ۲/۱۴۲
(۶) القرطبي ۱۵/۹۴

اوکله چي يې ومونډنوې ورته وويل: افسوس پرتا مورېې عبادت کوواوتامات کړل؟ هغه په خواب کي ورته د توبيخ په توګه هسي وويل: ﴿ قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ ﴾ وويل: (ابراهيم) دوی ته په خواب کي آياعبادت کوی تاسي دهغه چي تاسي يې تراشی (اوپخپلولاسونوېې جوړوی) ﴿ وَٱللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ ﴾

حال دا چي الله پيداکړي يی تاسي اوهغه عمل چي تاسي يې کوی(اوټول شيان د هغه مخلوق دي نوتاسي ولي دمخلوق عبادت کوی اوخالق موپرېږ اينبی دی ای خلګو آياتاسوعقل نلری ؟! ابن جزي وايې چي ځيني مفسرينود(ما) توری مصدريه ګڼلی معناداچي الله تاسو پيداکړي ياست اوستاسي اعمال يې پيداکړي اوهمدغه آيت شريف ددوی لپاره قاعده دی چي د بندګانو افعال هم دالله مخلوق دي اوځينو مفسرينوبيا(ما) موصوله بللي ده چي معنايې داسي کېږي چي الله تاسي پيداکړي ياست اوهغه بتان يې پيداکړي چي تاسي يې جوړوی همدغه دکلام له سياق سره ښه ور او لائق دي ځکه چي په هغو کسانواحتجاج دی کوم چي دبتانوعبادت يې کاوو([1]) ﴿ قَالُوا۟ ٱبْنُوا۟ لَهُۥ بُنْيَٰنًا فَأَلْقُوهُ فِى ٱلْجَحِيمِ ﴾ وويل (کفارو) چي جوړه کړي (دغه ابراهيم) ته يوه بنا اوله خس خاشاکوېې ډکه کړئ اور ورواچوئ) پس وغورځوئ دغه (ابراهيم) داورپه(دغه) ډېری کي. مفسرين کرام وايې کله چي ابراهيم عليه السلام په دليل ويلوکي ورباندي بريالی شونودوی دزور اوقوت له منطق څخه کاروا خيست اوپخپل مينځ کي يې ورروسته له مشورې داسي پرېکړه وکړه چي هغه دخپلوبتانولپاره په اور کي وغورځوي ﴿ فَأَرَادُوا۟ بِهِۦ كَيْدًا فَجَعَلْنَٰهُمُ ٱلْأَسْفَلِينَ ﴾ پس اراده وکړه دوی له ابراهيم سره د فريب (لپاره دهلاکولوسوځولو) پس وموګرزول دوی لاندي(سپکه سپانده چي په حضرت خليل مو اورګلزارکړ او دوی موخواراوذليل کړل ځکه چي چل فريب يې ونه چلېدو ﴿ وَقَالَ إِنِّى ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّى سَيَهْدِينِ ﴾ (وويل (ابراهيم) بېشکه زه تلونکی يم(ماموربه د )خپل رب ته ژربه ماته لاره راوښيي(رب زماکله چي الله له اوره وژغورل اود فجاروله فريبه يې ورته نجات ورکړنوېې دهجرت اراده وکړه اوقوم يې پرېښود. مقاتل وايې چي حضرت ابراهيم لومړنی ځوک ووچي له خلګوڅخه يې دشام لورته هجرت وکړ([2]) ﴿ رَبِّ هَبْ لِى مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ ای زماربه راوبښه ماته زوی له صالحانو(چي له ماسره په پردېسي کي پام غلطونکي (مؤنس) وي ابن کثيروايې له الله يې وغوښتل چي مطيع اولادونه ورکړي ترڅوچي دقوم اوتيرپرځای يې همدااولادونه ودرېږي ([3]) ﴿ فَبَشَّرْنَٰهُ بِغُلَٰمٍ حَلِيمٍ ﴾ پس زېری ورکړمونږ دغه (ابراهيم)ته په داسي هلک چي ډېرتحمل والاوي (دلوی توب په وخت کي). ابوالسعود وايې چي: الله درې زېري ورته يو ځای ورکړل يوداچي نارينه به وي بل داچي لوی توب ته به رسېږي بل به تحمل والاوي ځکه چي ماشوم پدغه صفت نه موصوف کېږي اوتردي به کوم حلم اوتحمل پورته وي چي کله يې پلارورته وويل زه دي حلالوم هغه عليه السلام په خواب کي

---

([1]) التسهيل فی علوم التنزيل ۳ / ۱۷۳
([2]) القرطبي ۱۵ / ۹۷
([3]) مختصرابن کثير ۳ / ۱۸۲

ورته وویل: ﴿ يَٰٓأَبَتِ ٱفۡعَلۡ مَا تُؤۡمَرُۖ سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ او جمهور د مفسرينو پردې دي چې دغه زېرى د حضرت اسماعيل ﷺ په باب ورکول شوى وو ځکه چې الله د ذبحې د کيسې بيان په پاى کې فرمايي: ﴿ وَبَشَّرۡنَٰهُ بِإِسۡحَٰقَ نَبِيّٗا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ نو دا پردې دلالت کوي چې ذبيح حضرت اسماعيل ﷺ دى (١) ﴿ فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ ٱلسَّعۡيَ ﴾ (پس کله چې ورسېدو اسماعيل سره له ده (خپله پلاره) حد سعى ته) يعني کله چې حضرت اسماعيل زنى (زلمى) شو او هغه ځاى ته ورسېدو چې نور نو له خپله پلاره سره د ژوندانه په چارو او کارونو کې زيار او کوښښ وکړي مفسرين کرام وايي چې دغه دېرلس کلن عمر دى ﴿ قَالَ يَٰبُنَيَّ إِنِّيٓ أَرَىٰ فِي ٱلۡمَنَامِ أَنِّيٓ أَذۡبَحُكَ ﴾ وويل (ابراهيم) اى زما زويکيه بېشکه زه (پرله پسې) وينم په خوب کې داسې چې بېشکه زه تا ذبح کوم. ابن عباس وايي چې د انبياوو خوبونه وحى دي او دغه آيت يې ولوست او محمد بن کعب بيا وايي چې: انبياوو ته به په خوب او بيدارۍ کې وحى راتله ځکه د انبياوو عليهم السلام سترګې ويدې مګر زړونه يې نه ويدېږي (٢) ﴿ فَٱنظُرۡ مَاذَا تَرَىٰۚ ﴾ پس ته هم نظر وکړه چې ځرنګه مصلحت ګڼې؟ ابن کثير وايي او دا چې زوى يې پدې خبر کړ تر څو چې ورته آسانه شي او دده زغم، صبر او عزم يې وازمويې چې هغه د الله په طاعت او د پلار په فرمان ورلو کې څومره پابندي لري؟ که څوک وايي چې ولې يې ورسره په يو حتمي کېدونکي امرکې مشوره کوله؟ ځواب دا چې مشوره يې ددې لپاره ورسره نه کوله چې ګواکې دده رايې ته به وګرزي بلکه ددې لپاره چې هغه وپوهوي خبره داسې ده تر څو هغه پخپل ځان باندې په صبر کولو چمتو کړي هماغسې ذبيح هم تر ټولو ښه ځواب ورکړچې: ﴿ قَالَ يَٰٓأَبَتِ ٱفۡعَلۡ مَا تُؤۡمَرُۖ سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ وويل (اسماعيل) اى زما پلاره هغه وکړه کوم چې درباندې حکم شوى دى ژردى چې ما به ومومې انشاء الله له صبر کونکيو؛ دا د هغه چا ځواب دى چې حلم، صبر او د الله دا وامرو امتثال ورکول شوى دى او د الله په قضا باندې يې رضا ده ﴿ فَلَمَّآ أَسۡلَمَا وَتَلَّهُۥ لِلۡجَبِينِ ﴾ پس کله چې غاړه کښېښوده دواړو (د الله حکم ته) او واېې چاوو اسماعيل (پرمخې) ابن عباس وايي چې ﴿ وَتَلَّهُۥ لِلۡجَبِينِ ﴾ معنا دا چې پرتندي يې واچاوو ﴿ وَنَٰدَيۡنَٰهُ أَن يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ ﴾ او غږ وکړ موږ ده ته چې اى ابراهيم ﴿ قَدۡ صَدَّقۡتَ ٱلرُّءۡيَآۚ ﴾ په تحقيق رښتيا کړ تا خوب (خپل او مقصد تر سره شو. روايت کېږي چې هغه څوځلې په خپل توان سره چاړه د حضرت ذبيح په غاړه راکښله خو غاړه نه غوځېدله. صاوي وايي چې په دغې کيسې کې حکمت دا دى چې الله ﷻ حضرت خليل غوره کړى وو او کله چې هغه د زوى غوښتنه وکړه او الله ورته زوى عنايت کړ د زړه يوه برخه يې د زوى په مينه کې مشغوله شوه نو الله ورته د زوى د حلالولو امر وفرمايو چې د خلت صفايي څرګنده شي هغه هم د الله ﷻ د امر امتثال ته غاړه کښېښوده او د الله مينه يې د زوى پر مينه غوره کړه. ابن عباس وايي کله چې يې زوى د ذبح کولو لپاره په

---

(١) دغه تفصيل زموږ په کتاب النبوة والانبياء کې وګوره او ابن کثير ٣/١٨٢ هم ولوله چې خوندوره څېړنه پکې شته.

(٢) القرطبي ١٥/١٠٢

ارخ واچاووهغه ورته وويل: اى پلاره زماپرې اورسى، تينګي وتړه چي زه ونه خوځېږم اوخپلي جامې دې ښې ونغاړه چي زماپه وينو ونه لړل شي چي بيابه يې زمامور ووينې اوغمجنه به شي اوچاړه ښه تېره کړه اوژرژر يې زماپه مرۍ راکاږه چي مرګ راته آسان شي اوچي کله مي مورته ورشې زماسلام ورته ووايه اوکه دي خوښه شوه زما قميص هم وروسپاره چي هغه به ددې لپاره زماپه بېلتون کي تسلي اوورکوي.

حضرت ابراهيم عليه السلام ورته وويل چي: اى زويکيه ته دالله دحکم په ترسره کولوکي زمابنه مرستندوى يې (۱) ﴿ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ (بېشکه موږ همداسي (لکه نېکه جزاء دابراهيم نيکه جزاورکوو محسنانو نيکوکارانو ته) دغه د مشکلاتو دحل لپاره علت دى يعني لکه چي ستامشکل مو حل کړ همداسي موږ نورنيکو کاران هم دهغوي په کړاوونو کي بريالي کوو اوله سختي څخه وروسته ورته آسانتياراولو ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلْبَلَٰٓؤُا۟ ٱلْمُبِينُ ﴾ بېشکه چي همدا (ذبحه ) خامخاهم داابتلاء او ښکاره ازموينه وه (چي مخلص له منافق څخه پکي بېلېږي) ﴿ وَفَدَيْنَٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ ﴾ اوفديه مو ورکړه دغه (اسماعيل) ته په ذبحي لويي (جنتي پسه سره ) ابن عباس رضي الله عنهما وايې چي دغه سترپسه ووچي څلوېښت کاله په جنت کي څرېدلى وو(۲) ﴿ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِى ٱلْءَاخِرِينَ ﴾ اوباقي پرېښود موږ پرده په وروستنيو خلګو کي (ښايسته ثناترقيامته پوري) ﴿ سَلَٰمٌ عَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ سلام دي وي (زموږ له لوري عاطر سلام) پر ابراهيم ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ إِنَّهُۥ مِنْ عِبَادِنَا ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ همداسي (په مثل دنېکي جزا دابراهيم نيکه جزا ورکوو محسنانو نېکانو ته بېشکه چي دى له هغو(خالصو) بندګانوزموږدى چي (خاص) مؤمنان دي ) جزاېې مکرره ياده کړه ترڅوېې په ثناکي مبالغه کړي وي اوبيايې ددې علت هسي څرګند کړچي هغه له راسخو مؤمنانو څخه وو په ايمان ، يقين او اطمينان کي يې هيڅ شک اوشبه نه وه ﴿ وَبَشَّرْنَٰهُ بِإِسْحَٰقَ نَبِيًّا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ (اوزېرى ورکړموږ دغه (ابراهيم ) ته (پس له اسماعيله) په اسحاق چي نبي وو له صالحانو ) يعني موږ له دغي پېښي وروسته دبل زوى زېرى هم ورکړ چي هغه اسحاق دى اوژر دى چي نبي به غوره کېږي. ابن عباس وايې چي داسحاق په نبوت يې تر زېږېدولاله وړاندي بشارت ورکړ(۳) او نژدې داسي برېښي چي آيت شريف په صراحت سره دا ښودلي دي چي ذبيح حضرت اسماعيل دى اسحاق نه دى ﴿ وَبَٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلَىٰٓ إِسْحَٰقَ ﴾ اوبرکت اچولى وو موږ پردغه (ابراهيم ) اوپر اسحاق (برکتونه ددنيا اودين) ﴿ وَمِن ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ مُبِينٌ ﴾ اوله اولادې ددوى دواړو څخه څوک نيکو کار دى (په ايمان اوطاعت سره ) اوڅوک ظالم دى په ځان خپل ښکاره. طبري وايې چي محسن مؤمن اوظالم بياکافردى (۴) ابوحيان وايې چي په آيت شريف کي ديهودانو لپاره وعيد شته اوهمداسي د دوى

(۱) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ / ۳۴۳
(۲) مختصرابن کثير ۳ /۱۸۷
(۳) مختصرابن کثير ۳ /۱۸۷
(۴) الطبري ۲۳ / ۵۷

دوارړوله اولادې څخه دهغه چالپاره وعیدی چاچې په رسول الله محمدعلیه افضل الصلوة وأزکی التسلیم باندې ایمان نه دی راوړی او په آیت شریف کې ددې دلیل هم شته چې کله کله له نیکو کاره څخه بدکاره زیږي او دا کوم عیب او نقص نه دی (۱).

بلاغت:

پدې آیتونو کې چې دبیان او بدیع کومې ښکلاوې شته لندیزیې دادی:

۱-تهکمي اسلوب لکه چې فرمایي: ﴿ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ ﴾ دلته دزقوم په هکله په خیرسره تعبیرپردوی باندې استهزآء دی.

۲-ناقص جناس پدې کلماتوکې چې: ﴿ مُّنذِرِينَ ..الْمُنذَرِينَ ﴾ څکه مقصدله لومړي څخه پیغمبران اوله دوهم څخه اُمتونه دي.

۳-تشبیه لکه پدې کلام کې چې ﴿ طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ ﴾ یعني په کراهیت اونفرت کې دغه ته مرسله مجمله تشبیه وایي.

۴-تبعیه استعاره چې فرمایي: ﴿ إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴾ دمسلمان مخلص په پاک زړه الله ته راتلل یې لههغه چاسره مشابه کړل چې پاچاته یې ډېره قیمتي ډالۍ (سوغات) راوړي وي اودباچاخوښې اومننه یې ترلاسه کړي وي دې ته تبعیه استعاره وایي.

۵-دطباق صنعت چې د ﴿ مُحْسِنٌ ..وَظَالِمٌ ﴾ ترمینځ راغلی دی

۶-اشتقاقي جناس چې د ﴿ ابْنُوا ..بُنْيَانًا ﴾ ترمینځ شتون لري

۷-لطیفه کنایه لکه دا چې ﴿ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴾ چې له ښایسته مدح اوښکلي ثناڅخه یې وربانديکنایه راوړې ده.

۸-دفواصلومراعات لکه چې فرمایي: ﴿ وَإِنَّ مِن شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ ، إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴾ ترپایه اوداهم دبدیعي محسناتو اودقرآنکریم له خصائصو اوځانګړتیاوو څخه دی چې خوند، جمال او په اوریدونکي باندې اغیزتاثیرپکې شته

---

(۱) البحرالمحیط ۳۷۲/۷

## الله تعالى فرمايے:

﴿ ولقد مننا على موسى وهرون (١١٤) ونجينهما وقومهما من الكرب العظيم (١١٥) ونصرنهم فكانوا هم الغلبين (١١٦) وءاتينهما الكتب المستبين (١١٧) وهدينهما الصرط المستقيم (١١٨) وتركنا عليهما في الآخرين (١١٩) سلم على موسى وهرون (١٢٠) إنا كذلك نجزي المحسنين (١٢١) إنهما من عبادنا المؤمنين (١٢٢) وإن إلياس لمن المرسلين (١٢٣) إذ قال لقومه ألا تتقون (١٢٤) أتدعون بعلا وتذرون أحسن الخلقين (١٢٥) الله ربكم ورب ءابائكم الأولين (١٢٦) فكذبوه فإنهم لمحضرون (١٢٧) إلا عباد الله المخلصين (١٢٨) وتركنا عليه في الآخرين (١٢٩) سلم على إل ياسين (١٣٠) إنا كذلك نجزي المحسنين (١٣١) إنه من عبادنا المؤمنين (١٣٢) وإن لوطا لمن المرسلين (١٣٣) إذ نجينه وأهله أجمعين (١٣٤) إلا عجوزا في الغبرين (١٣٥) ثم دمرنا الآخرين (١٣٦) وإنكم لتمرون عليهم مصبحين (١٣٧) وباليل أفلا تعقلون (١٣٨) وإن يونس لمن المرسلين (١٣٩) إذ أبق إلى الفلك المشحون (١٤٠) فساهم فكان من المدحضين (١٤١) فالتقمه الحوت وهو مليم (١٤٢) فلولا أنه كان من المسبحين (١٤٣) للبث في بطنه إلى يوم يبعثون (١٤٤) فنبذنه بالعراء وهو سقيم (١٤٥) وأنبتنا عليه شجرة من يقطين (١٤٦) وأرسلنه إلى مائة ألف أو يزيدون (١٤٧) فءامنوا فمتعنهم إلى حين (١٤٨) فاستفتهم ألربك البنات ولهم البنون (١٤٩) أم خلقنا الملئكة إنثا وهم شهدون (١٥٠) ألا إنهم من إفكهم ليقولون (١٥١) ولد الله وإنهم لكذبون (١٥٢) أصطفى البنات على البنين (١٥٣) ما لكم كيف تحكمون (١٥٤) أفلا تذكرون (١٥٥) أم لكم سلطن مبين (١٥٦) فأتوا بكتبكم إن كنتم صدقين (١٥٧) وجعلوا بينه وبين الجنة نسبا ولقد علمت الجنة إنهم لمحضرون (١٥٨) سبحن الله عما يصفون (١٥٩) إلا عباد الله المخلصين (١٦٠) فإنكم وما تعبدون (١٦١) ما أنتم عليه بفتنين (١٦٢) إلا من هو صال الجحيم (١٦٣) وما منا إلا له مقام معلوم (١٦٤) وإنا لنحن الصافون (١٦٥) وإنا لنحن المسبحون (١٦٦) وإن كانوا ليقولون (١٦٧) لو أن عندنا ذكرا من الأولين (١٦٨) لكنا عباد الله المخلصين (١٦٩) فكفروا به فسوف يعلمون (١٧٠) ولقد سبقت كلمتنا لعبادنا المرسلين (١٧١) إنهم لهم المنصورون (١٧٢) وإن جندنا لهم الغلبون (١٧٣) فتول عنهم حتى حين (١٧٤) وأبصرهم فسوف يبصرون (١٧٥) أفبعذابنا يستعجلون (١٧٦) فإذا نزل بساحتهم فساء صباح المنذرين (١٧٧) وتول عنهم حتى حين (١٧٨) وأبصر فسوف يبصرون (١٧٩) سبحن ربك رب العزة عما يصفون (١٨٠) وسلم على المرسلين (١٨١) والحمد لله رب العلمين (١٨٢) ﴾ الصافات: ١١٤ – ١٨٢

مناسبت

کله چي الله تعالی دابرهیم خلیل الله کیسه بیان کړه اوپه ترڅ کي یې دحضرت ذبیح اسماعیل د قرباني کیسه هم راوړه وروستې یې دځینوانبیاوو علیهم السلام لکه دحضرت موسی اوهارون ، یونس اولوط علیهم السلام کیسې یادي کړې څکه چي پکي عبرتونه اوپندونه خوندي دي اوپه پای کي یې دغه مبارک سورت پدې ختم کړ چي وروستنی بری اوغلبه دپیغمبرانو علیهم السلام اودهغوی دپیروانو مؤمنانو ده.

لغتونه:

(أبق) وتښتېد و(المشحون) ډک( ساهم) قرعه یې واچوله اواصل یې له (سهام) څخه اخیستل شوی چي دوی به دغه غېشي راایستل اوقرعه به یې ورباندي اچوله (المدحضین) مغلوبین اصل یې له (دحض) څخه اخیستل شوی ویل کېږي(أدحضها الله) یعني الله مغلوبه کړه شاعروایي :

قتلنا المدحضین بکل فج * فقد قرت بقتلهم العیون.

مغلوب دښمن موپه هره لاره کوڅه کي وواژو ددوی په وژلو موسترګي یخي شوې (ملیم) ملامت کړی شوی (العرآء) دښته بېدیاچي پکي ونه اوځلي نه وي. فراء وایي چي د(عرآء) معناداګ اوتشه پراخه ځمکه ده (البقطین) کدو. جوهري وایي چي یقطین هغه ته وایي چي ونه یې تنه نلري لکه کدو اونور شیان (ساحتهم) غولي ددوی ته .

تفسیر:

﴿ وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَىٰ مُوسَىٰ وَهَـٰرُونَ ﴾ اوخامخااحسان موکړی ووپه موسی اوهارون )لام دقسم لپاره توطئه کونکی دی یعني زموږ دي په خپل عزت اوجلال قسم وي چي موږپه موسی اوهارون باندي قسماقسم نعمتونه اومنافع دیني اودنیوي لورولي دي اویوله هغوڅخه نبوت اورسالت وو ﴿ وَنَجَّيْنَـٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ اونجات موورکړدغودواړو ته اوقوم ددوی ته له لویه غمه (چي هغه دفرعون استعبادوو اوددوی ښځي به یې په چوپړګمارلي زامن به یې ور وژل اودوی ته یې ورباندي تعذیب ورکاوو ﴿ وَنَصَرْنَـٰهُمْ فَكَانُوا۟ هُمُ ٱلْغَـٰلِبِينَ ﴾ اونصرت موورکړ دغو(موسی ، هارون او بني اسرائیلو ) ته پس وو دوی (پردښمنانو قبطیانو باندي) بریالیان (وروسته له هغه چي دهغوی تر لاس لاندي وو ﴿ وَءَاتَيْنَـٰهُمَا ٱلْكِتَـٰبَ ٱلْمُسْتَبِينَ ﴾ اوورکړی موده دغو(دواړو ورونوته) کتاب (تورات) ډېرښه بیانونکی (شرائعو احکامولره) ﴿ وَهَدَيْنَـٰهُمَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴾ اوښودلي موده دغو دواړو (ورونو)

ته سمه لاره (چي كږوالي پكي نشته ) طبري وايي چي مقصدله دې څخه اسلام دی هغه سپېڅلی دين چي الله تعالی خپل پيغمبران وربانديز را استولي دي ﴿ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِي الْآخِرِينَ ﴾ اوپرې ښودمونږپردوی دواړو ورونو(ښه ثناوښکلی ياد) په وروستنيوخلكو كي ﴿ سَلَامٌ عَلَىٰ مُوسَىٰ وَهَارُونَ ﴾ سلام دوي (زمونږله طرفه) په موسی اوهارون ﴿ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ إِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴾ ببشكه مونږ همداسي (په مثل دنېكي جزاء دموسی اوهارون نيكه) جزا وركوو نيكوكارانو ته بېشكه دوي دواړه له هغوبندګانو مؤمنانو څخه وو دي ﴿ وَإِنَّ إِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ او بېشكه الياس خامخا(يو) له مرسلانوڅخه دی هغوی چي بني اسرائيلوته رااستول شوي وو ترڅوپي سمي لاري ته رهبري كړي ابوالسعودوايي چي دغه الياس بن ياسين دهارون عليه السلام چي د موسی وروردی له لمسيانو څخه دی (١)﴿ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَلَا تَتَّقُونَ ﴾ كله چي خپل قوم ته يې وويل آيانه وېرېږی (له عذابه دالله چي دغيرالله عبادت كوی؟) ﴿ أَتَدْعُونَ بَعْلًا وَتَذَرُونَ أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ ﴾ آياتاسي عبادت كوی دهغه (بت چي نوم يې) بعل (دی) اوپرېږدی تاسي(عبادت د) ښه پيداكونكي ﴿ اللَّهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ ﴾ چي الله دی رب ستاسي اورب دهغوړومبنيو پلرونو ستاسي ، قرطبي وايي چي بعل دهغه بت نوم وو چي دوی به يې عبادت كاوو اوپه همدغه نامه ددوی ښار چي (بعلبک) دی ونومول شومعنادا چي تاسي دهغه رب عبادت كوی كوم چي تاسوپخپله جوړكړی اوهغه پيداكونكی ذات چي ستاسواوستاسو دپخوانيو پلرونو پيداكونكی ذات (الله) دی پرېږدی؟ (٢)﴿ فَكَذَّبُوهُ فَإِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ ﴾ پس تكذيب وكړدوی دهغه پس ببشكه دوی به خامخاحاضركړی شوي دي (دوزخ ته) ﴿ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴾ مگرتكذيب ونكړ(ددوی هغو) دالله بندگانوچي مخلصان دي (نو دوی له عذابه وژغورل شول ﴿ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴾ اوپرې ښوده مونږ(پردغه الياس ښايسته مدح او ښكلي ثنا) په وروستنيوخلكو كي (تر قيامته) پوري ﴿ سَلَامٌ عَلَىٰ إِلْ يَاسِينَ ﴾ (سلام دی (زمونږله لوري پرده او )پرآل ياسين باندي. مفسرين كرام وايي چي مراد اومقصدله (آل ياسين) څخه الياس اودهغه قوم مؤمنان دي تغليبًا يې سره يوځای جمع كړل لكه چي (مهلب) اوقوم ته يې (مهلبون) وايي (٣)او طبري بيادا غوره كړي چي دغه داالياس لپاره نوم دی لكه الياس اوالياسين په مثل د(مېكال او (مېكائيل) اوداچي دده دوه نومونه دي يوالياس اوبل الياسين (٤)﴿ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴾ ببشكه مونږ

---

(١) تفسيرابي السعود ٤ / ٢٧٦

(٢) تفسيرالقرطبي ١٥ / ١١٢

(٣) جلالين ٢ / ٣٤٢

(٤) الطبري ٢٣ / ٦٧

همداسي (په مثل دنبکه جزاد الیاس نیکه) جزا ورکوونږکو بندګانو ته بېشکه چي دی زموږ له
مقربندګانو څخه دی چي (خاص) مؤمنان دي .داچي دهرپیغمبرله یادوني وروسته یې دغه دوه مبارک
آیتونه راوړي اوسلام یې ورباندي استولی دغه داحسان اوایمان دبهتري اوفضل بیان دی اوداچي دغه
ګردپیغمبران په دغوصفتونوموصوف دي نودوی دسلام تحیې اونېکي مدحي او ښکلي
ثناوړاومستحق دي فسلام الله وصلواته علیهم أجمعین ﴿ وَإِنَّ لُوطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ اوبېشکه چي لوط
وو خامخا له مرسلانوڅخه (چي خپل قوم ته لارښوونه وکړي) ﴿ إِذْ نَجَّيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ أَجْمَعِينَ ﴾ کله چي
نجات ورکړموږ ده ته او اهل دده ته ټولوته ﴿ إِلَّا عَجُوزًا فِي الْغَٰبِرِينَ ﴾ مګریوې زړې ښځي ته (مونجات
ورنکړ) چي وه دا په باقي پاتي کېدونکو (د عذاب) کي ﴿ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِينَ ﴾ بیاموږګردسره هلاک کړل
نور(کفار) یعني بیاموددده دقوم ټول مکذبین په سخت عذاب باندي هلاک کړو چي کلی یې مونسکور له
پاسه راوویشتل اوډبري مو ورباندي واوروليٰ څکه یې په (دمّرنا) سره ورڅخه تعبیروفرمایو ﴿ وَإِنَّكُمْ
لَتَمُرُّونَ عَلَيْهِم مُّصْبِحِينَ وَبِالَّيْلِ ﴾ اوبېشکه چي تاسي خامخاتېرېږی (ای دمکې خلکو) پردوی په دې حال
کي چي صباکونکي یې (دورځي) اودشپې ؛ یعني ای دمکې خلکو تاسوپه خپلوسفرونوکي ددوی په
کنډوالوسهاراوبېګاتېرېږی ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ آیاپس عقل نه چلوی ! ؟آیاله دې نه وېرېږی چي تاسوته
هم هغه عذاب ورسېږي کوم چي دوی ته رسېدلی وو؟ ﴿ وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ اوبېشکه چي یونس
خامخا له مرسلانوڅخه دی ﴿ إِذْ أَبَقَ إِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ﴾ کله چي وتښتېد (له خپل قوم څخه) طرف
دهغي ډکي بېړی ته ﴿ فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ ﴾ پس قرعه واچوله (له دغوخلګودبېړی سره) پس
شوله مغلوب کړی شویو نه (په پچه ختلوکي چي هرواربه یې پچه ختله بیایې سیندته واچاوو) مفسرین
کرام وایې چي یونس ﷺ له خپل ټبرڅخه زړه تنګی شو څکه چي هغوی تکذیب کاووایمان یې نه
راووړنووده هغوی د نژدې عذاب په راتلوتهدید کړل اوپخپل خواشینی څني روان شو چي پدې غصه
اوقهرکي دسیند غاړي ته راغی اوهلته یوه په سپرلیوډکه بېړی وه په هغې کي چي سپورشوبېړی په
طوفان اوڅپو کي په چورلېدوشوه اوماڼوګانوویل چي په بېړی کي داسي یوڅوک سپوردی چي له
خپله باداره تښتېدلی دی نواورمروبه دبېړی دنجات لپاره نوموړی مربی سیندته غورځول کېږي چي
ګرده بېړی له غرقېدلوڅخه وژغورو دګردوپه نامه څو څله پچي واچولی شوې اوهرڅل دحضرت یونس
ﷺ په نامه راختله نویې هغه سیندته وغورځاوو ﴿ فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ وَهُوَ مُلِيمٌ ﴾ پس ماهي یوه مړی (ګوله)
کړدغه (یونس) لره حال داچي دی پخپله ځان ملامت کونکی وڅکه چي ده هغه کارکړی ووچي
دملامتي وړ ووچي درسالت دنده یې خوشي کړي اوپه خفګان له خپله قومه راروان شوی دالله ﷻ اجازه
یې نه وه ترلاسه کړي ﴿ فَلَوْلَآ أَنَّهُۥ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِينَ ﴾ پس که نه وی دغه (خبره) چي دغه (یونس) وو له
تسبیح کونکوڅخه (په ژوندکي) ﴿ لَلَبِثَ فِي بَطْنِهِۦٓ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴾ (نوخامخاپاتي به ووپه نس ددې

ماهي کي ترهغې ورځې پورې چې بيا ژوندی راپاځولی شي) يعني دماهي ګېډه به دده قبرجوړشوی وه او هيڅکله به يې نجات نه وو موندلی خو هغه دماهي په ګېډه کي دالله تسبيح کوله الله ته يې چيغې وهلې او استغفارېې کاوو چې:

﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبۡحَٰنَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (الانبياء۸۷) نو الله يې دعا ومنله ﴿ فَنَبَذۡنَٰهُ بِٱلۡعَرَآءِ وَهُوَ سَقِيمٞ ﴾ پس ومو غورځاووده (يونس په ډاګ ميدان کي حال داچې دی رنځور وو (ځکه چې تکليف ورته رسېدلی وو. عطاء وايې الله ﷻ ماهي ته داسي ښووونه وکړه چې سغاګېډه مي دده لپاره ځېلخانه ګرزولې نه داچې ستالپاره مي طعام درکړی وي ځکه نوروغ رمټ پاتي شواو هيڅ تغييرهم ورته رسېدلی نه وو(1) ﴿ وَأَنۢبَتۡنَا عَلَيۡهِ شَجَرَةٗ مِّن يَقۡطِينٖ ﴾ اوزرغونه کړه موږپرې ونه له کدو ځخه هغه چې پلنې پلنې پاڼي لري (ترڅوېې دلمرله وړانګو څخه په سيوري کي وساتي. ابن جزي وايې: دا چې الله په ځانګړي توګه کدوورته وټاکل ځکه هغه ځوخوبياني لري داچې پاڼه يې غټه او پلنه ده سيوری يې سوړدی اومچان نه ورنژدې کېږي له دې امله چې ديونس ﷺ پوستوکي کله چې دماهي له ګېډې راووت دمچ دکښېناستلو تحمل نشوکولای (2) او همدغه دالله لطف اوتدبيروو کله چې يې بيرته روغ رمټ پيداکړ قوت يې بيا موندنو يې قوم ته واستاوو. ﴿ وَأَرۡسَلۡنَٰهُ إِلَىٰ مِاْئَةِ أَلۡفٍ أَوۡ يَزِيدُونَ ﴾ (اوبيا موږولېږو دغه (يونس) سلو زرو (خلګو) ته يازيات له دې نه) يعني بيا موږ دهغه تېرپه لوري چې دی ترې تښتېدلی وو واستاوو مفسرين کرام وايې چې دوی يولک اوشل زره کسان وواوچابياويلي يولک اويازره کسان وودوی دموصل خواته دنينوی د ولس خلګ وو چابياويلي چې د(أو) معنا(بل) دی يعني يولک بلکه لازيات ﴿ فَـَٔامَنُواْ فَمَتَّعۡنَٰهُمۡ إِلَىٰ حِينٖ ﴾ پس ايمان راووړ(هغوی پرې) پس نفع مو ورکړه دوی ته تريوې ټاکلې پورې) يعني کله چې دوی دموعود عذاب نښې نښانې وليدې نويې ايمان راووړ اوموږهم دوی ترمرګه پورې پرې ښودل چې له دنيوي لذائذاوژوندون څخه مستفيد شي په التسهيل کي ليکي چې دوی کله دعذاب موعود نښې نښانې وليدلې نوبهرراووتل ماشومان اوځاروي اودهغوی اولادونه يې هم راوايستل اود اولادونو او ميندو ترمينځ يې بېلتون وکړپه چيغو اوکوکارويې الله ته زاري جګې پيل کړې نو الله ﷻ ورڅخه عذاب پورته کړ(3) کله چې دانبياوو عليهم السلام کيسې اوخبرونه بشپړشول نويې بيرته دمکې دکفارواومکذبينو دحالاتو بيانِ هسې پيل کړ:

﴿ فَٱسۡتَفۡتِهِمۡ أَلِرَبِّكَ ٱلۡبَنَاتُ وَلَهُمُ ٱلۡبَنُونَ ﴾ پس وپوښته (ای محمده) دغه (کفار) آيا ستارب لره لوڼې دي؟ اودوی لره ځامن دي؟ دغه پوښتنه دتقريع اوتوبيخ په ډول دی يعني دوی څرنګه ګمان کړی چې پرښتې دالله لوڼې دي الله ته يې ښځينه اوخپلوځانونو ته يې نارينه غوره کړی دوی لوڼې نه خوښوي نو الله ته يې څرنګه خوښوي؟ ﴿ أَمۡ خَلَقۡنَا ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ إِنَٰثٗا وَهُمۡ شَٰهِدُونَ ﴾ (اوکه مو پيداکړي دي

---

(1) تفسيرابي السعود۴ /۲۷۷
(2) التسهيل۳ /۱۷۵
(3) التسهيل في علوم التنزيل ۳ /۱۷۶

پرښتې ښځې حال دا چې دوی حاضروو) دغه ددوی په بهتان باندې بل توبیخ دی او د دوی د آند (فکر) تجهیل اوپرې استهزآء ده ﴿ أَلَآ إِنَّهُم مِّنْ إِفْكِهِمْ لَيَقُولُونَ وَلَدَ ٱللَّهُ ﴾ خبردار پوه شئ (ای خلګو) چې بېشکه دوی (مشرکان) له خپلو دروغو وايې (داسې) چې الله ولدراوړی دی. ﴿ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴾ حال داچې بېشکه دوی خامخادروغجنان دي (پدې ويناووکې) (۱) ابوالسعود وايې چې په آيت شريف کې ددوی داصلي فاسدمذهب ابطال دی چې ددوی دمذهب تادو پرته له دې چې کوم دليل ولري په افتراء اودروغو اينبودل شوی دی ﴿ أَصْطَفَى ٱلْبَنَاتِ عَلَى ٱلْبَنِينَ ﴾ آياغوره کړي دي (الله) لونې پرزامنو (دغه توبيخ اوترټنه ده) ﴿ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴾ (څه وشو پرتاسې دغه څرنګه حکم کوی تاسې؟) دغه ددوی تسفيه اوتجهيل دی چې تاسوته څه درپېښه ده چې داسې ظالمانه حکم کوی څرنګه الله ستاسو په ګمان هغه ناچيزجنس دځان لپاره غوره کړ؟ ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ (آياپس پند نه اخلی تاسې) يعني آياتاسو کوم تميز. اوادراک نلرئ چې ددغه کلام په خطابې وپوهېږئ. ابوالسعودوايې معناداچې تاسوته په بديهي توګه ددې خبرې بطلان نه معلومېږي؟ په دې خوهرغبي اوذکي پوهېږي چې دغه باطله وينا ده ﴿ أَمْ لَكُمْ سُلْطَٰنٌ مُّبِينٌ ﴾ آياشته تاسې ته کوم برهان سند ښکاره؟ ﴿ فَأْتُوا۟ بِكِتَٰبِكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ (پس راوړئ تاسې هغه کتاب خپل که چېرې يې تاسې رښتوني صادقان) يعني تاسو هغه کتاب راوړئ چې ستاسې ددعوی سوالي ښيي مقصدد دوی تعجيزاوددې بيان دی چې دوی کوم سندنلري نه شرعي دليل لري اونه هم عقلي منطق، بيا وروسته ديوبل دروغجن داستان بيان کوي کوم چې مشرکانوله خپله ځانه جوړکړی چې وايې دالله ﷻ اودپېريانوترمينځ دتزاوج تړون شوی اوپه نتيجه کې يې پرښتې زېږېدلي دي ﴿ وَجَعَلُوا۟ بَيْنَهُۥ وَبَيْنَ ٱلْجِنَّةِ نَسَبًا ﴾ اوګرزولی دی دغه مشرکانوپه مينځ ددغه (الله) اوپه مينځ دپېريانوکې نسب قرابت (خپلوي) يعني دوی وايې چې الله پاک له پېريانوسره نکاح کړې اوبياپرښتې زېږېدلي دي (سبحانه وتعالی عمايقولون علواًکبيرا) بياوايې چې پرښتې اناث (ښځينه) اودالله تعالی لونې دي (معاذالله) ﴿ وَلَقَدْ عَلِمَتِ ٱلْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ ﴾ اوخامخاپه تحقيق پوهېږي پېريان چې بېشکه دوی خامخاحاضر کړی شوي دي (دوزخ ته) صاوي وايې چې دغه ددوی په تبکيت اوتکذيب کې زياتوب دی لکه چې ورته ويل شوي وي دغه پرښتې چې تاسويې تعظيم کاووا ودالله لونې موبللې ستاسوپه حال ښه خبردی چې ستاسو عاقبت به څنګه کېږي (۲) ﴿ سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴾ پاکي ده الله لره له هغو (خبرو) څخه چې دوی يې وايې ﴿ إِلَّا عِبَادَ ٱللَّهِ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ مګرهغه بندګان دالله چې پاک کړی شوي دي منزه دي (له دغه نسبت کولوڅخه دغه استثناء منقطع ده) ﴿ فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ بِفَٰتِنِينَ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ

(۱) تفسيرابوالسعود ۴ / ۳۷۸

(۲) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ / ۳۴۸

ٱلْجَحِيمِ ﴾ (پس بېشکه تاسوچي يې اوهغه چي تاسي يې عبادت کوی نه یاست تاسي (ای عابدانو او معبودانو په دغه بت پرستي سره په فتنه کي اچونکي دچا ) يعني تاسوڅوک ګمراه کولای نشی ) مګر دهغه چا چي دوزخ ته ننوتونکي دي (په علم د الله کي) اودابې ورته ليکلي دي چي اورته به غورځول کېږي، له دې وروسته الله تعالی دملائکو اعتراف په عبوديت سره داسي بيانوي فرمايي: ﴿ وَمَا مِنَّآ إِلَّا لَهُۥ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ ﴾ (اونشته له موږځني هيڅوک مګرچي ورته مقرردی يوځای معلوم) يعني زموږهريوې پربنتې ته مرتبه اومنزلت اوعُهده (دنده) معلومه ده چي له هغې څخه تجاوزنه کوي څوک په ارزاقو او روزي ګمارل شوي څوک په اجلونو مقرردي څوک بيادوحی لېږدول کوي اودهريودعبادت، تشريف او تقرب منزلت معلوم دی ﴿ وَإِنَّا لَنَحْنُ ٱلصَّآفُّونَ ﴾ اوبېشکه موږخامخاصف تړونکي يو(په وخت دطاعت کي) ﴿ وَإِنَّا لَنَحْنُ ٱلْمُسَبِّحُونَ ﴾ اوبېشکه موږ خامخاتسبيح ويونکي يو(دالله) په هروخت اوحال کي په التسهيل کي وايي چي د ملائکوپه دې وېناکي په هغو کسانو باندي ردده چي ويل به يې ملائک دالله لوڼي دي له الله سره شريکاني دي څکه چي دلته پخپله پرښتې پخپل ځان باندي دعبوديت اوطاعت کولواقرارکوي اود الله ﷻ تسبيح اوپاکي بيانوي(۱) ﴿ وَإِن كَانُوا۟ لَيَقُولُونَ لَوْ أَنَّ عِندَنَا ذِكْرًا مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ لَكُنَّا عِبَادَ ٱللَّهِ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ (او بېشکه چي وودغه (کفار) خامخاداسي به يې ويل که چېري بېشکه وای له موږسره ذکر(کوم کتاب) له پخوانيو(کتابونو) څخه نوخامخاموږ به دالله مخلصان بندګان وو) (ان) خفيفه له (انّ) ثقيله څخه اخيستل شوي يعني دوی دقرآن کريم ترنزول له مخي داسي ويل که چېري په موږباندي د پخوانيوکتابونو څخه لکه تورات اوانجيل کوم کتاب نازل شوی وای نوموږ به تردوی ښه ايمان وړباندي راوړی وواوزيات عبادت اواخلاص به مو دالله په وړاندي ښکاره کړی وای خوکله چي قرآن کريم راغی نودوی ورباندي کافران شول څکه فرمايي ﴿ فَكَفَرُوا۟ بِهِۦ ﴾ پس کافران شول په دغه (کتاب چي تر ټولواسماني کتابونو اشرف کتاب دی ) ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ پس ژردی چي دوی به پوه شي (په عاقبت ددې خپل کفرباندي دغه وعيداوتهديددی ) ﴿ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ اوخامخا پخوالاصادرشوی دی حکم زموږ دپاره دبندګانو زموږمرسلينو ﴿ إِنَّهُمْ لَهُمُ ٱلْمَنصُورُونَ ﴾ (چي بېشکه دوی هم له دوی سره مددکړی شوی دی) يعني دوی پردښمنانو بريالی کېدونکي دي پدې کي دالله ﷻ هغي وېناته اشاره ده چي ﴿ كَتَبَ ٱللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِىٓ ﴾ (المجادله ۲۱) ﴿ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ ٱلْغَٰلِبُونَ ﴾ اوبېشکه لښکري زموږ خامخاهم دوی بريالياني دي (په کفارو) په دنيااوآخرت کي ، په دنياکي په دليل او برهان سره اوپه آخرت کي دجنت په دخول سره مفسرين کرام وايي چي دالله ﷻ مرسته له مؤمنانوسره اکه پکه (حتمي) ده اودغه ددوی ماتي کله کله په ځينو جګړوکي ددوی خپلي کوتاهي پايله

(۱) التسهيل في علوم التنزيل ۳ / ۱۷۷

اوپاهم ازموينت اوابتلاء وي اصلابرى ددوى دى ﴿ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾ (پس مخ وگرزوه (اى محمده!) له دوى نه تريوه وخته پوري ) يعني ترلږ مودې پوري څني مخ واړوه ترڅوچي د جهادحكم درته كاووشي ﴿ وَأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ ﴾ (اوگوره دوى ته پس ژردى چي وبهويني دوى (خپل انجام) يعني وگوره دوى ته كله چي ورباندي عذاب نازلېږي نودوى به ژردى چي دخپل كفر عاقبت ووينې ﴿ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴾ (استفهام انكاري دى) آياپس په راتلودعذاب زموږدوى تلوار كوي ؟؛ روايت كاوه شي كله چي داآيت نازل شوچي :﴿ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ ﴾ نودوى ملندي وبللې اوويل بې كله به وي ؟ نوبياداپورتني آيت نازل شوبياالله فرمايي: ﴿ فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنذَرِينَ ﴾ پس كله چي نازل شي(عذاب) په ميدان (غولي) ددوى پس بدبه وي صبادوېرول شويو. ددوى عذاب بې له هغه چاسره تشبيه كړپه كوم چاچي دسباپه وخت كي ورباندي لښكري وخېژي اويومخ ايزه بې له مينځه يوسي ﴿ وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ حِينٍ وَأَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ ﴾ اومخ وگرزوه (اى محمده) له دوى نه تريوې نېټې پوري او گوره دوى ته پس ژردى چي دوى به ووينې (خپل احوال) دغه تهديدبې مكرر راووړ ترڅودرسول الله ﷺ لپاره داډينه اوتسليت وى ﴿ سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴾ پاكي ده رب ستالره (له هرعيبه اونقصانه ) چي رب دعزت (قوت غلبې دى) اوپاك دى له هرهغه څېزه چي (مشركان ورته ) نسبت كوي ﴿ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ (اوسلام دى پر(تولو ) مرسلينو استازواوټوله ثناصفت خاص الله لره دى چي رب پالونكى دټولوعالميانودى) يعني اوزموږله لوري سلام دى په گردوپيغمبرانو او په پيل اوپاى كي حمد اوثنادى رب دگردومخلوقاتوته الله پاك دخپل ځان تنزيه و فرمايله له هغه څه نه كوم چي له ده سره نه ښايي اوكفارو بې ورته نسبت كاووكوم چي پدې سورت كي ددوى ډېري ناكاره ويناوي اونسبتونه بيان شول اوپه پاى كي بې په انبياووباندي سلام اودالله سبحانه حمدراووړ ترڅوچي بندگانو ته ښوونه اوتعليم وشي.....

بلاغت:

پدې آيتونوكي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادى:

۱-طباق چي ﴿ وَتَذَرُونَ ..... أَتَدْعُونَ ﴾ او ﴿ الْبَنَاتُ.....الْبَنُونَ ﴾ ترمينځ دى.

۲-پرله پسې توبيخ اوتكراربې لكه ﴿ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ..... أَمْ خَلَقْنَا الْمَلَائِكَةَ إِنَاثًا..... مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ..... أَفَلَا تَذَكَّرُونَ..... أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُّبِينٌ ﴾ اودغه گردتوبيخ اوتبكيت دى.

۳ – په څو مؤکداتو سره تاکید ترڅو چي د معنا تحقیق او تثبیت وښيي لکه: ﴿ إِنَّهُمْ لَهُمُ ٱلْمَنصُورُونَ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ ٱلْغَٰلِبُونَ ﴾ دواړه جملې يې په (ان) او (لام) تاکید کړی دی.

۴ – تصریحي استعاره چي فرمايي: ﴿ إِذْ أَبَقَ إِلَى ٱلْفُلْكِ ٱلْمَشْحُونِ ﴾ دهغه وتل چي د پروردګار له اجازې پرته ترسره شوي وو دمریې له تېښتي سره مشابه شول کوم چي د خپل بادار له اذن څخه بغیر تښتېدلی وي.

۵ – التفات له خطاب څخه غیبت ته لکه چي پدې آیت کي دی: ﴿ وَجَعَلُوا۟ بَيْنَهُۥ وَبَيْنَ ٱلْجِنَّةِ نَسَبًا ﴾ اصل خو داوو چي ویلي وای چي (وتجعلون) مګر التفات يې ددې لپاره راوړ چي دوی د خطاب وړنه دي دوی دالله له رحمته شړل شوي دي په مخاطب کولو نه ارزي.

۶ – تمثیلي استعاره چي فرمايي: ﴿ فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ ﴾ دعذاب نزول يې له هغه لښکر سره مشابه کړ کوم چي ناڅاپه دچاپه غولي وروخېژي او پخوايې ورته نصیحتونه کړي وي خودوی منلي نه وي او نه يې جګړې ته ځان چمتو کړی وي ځابېره لښکري ورباندي راتاو او بېخ او بکريې وباسي زمخشري وايي که دغه جمله په داسي تمثیلي توګه نه وای راغلي دغه خوند، فصاحت او اهمیت به يې نه درلود.(۱)

فائده:

ابن ابي حاتم له شعبي څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که څوک په دې خوشحالېږي چي دآخرت په ورځ (داجر) پېمانه بشپړه ورکول شي نو د خپل مجلس په پای کي کله چي ولاړېږي دا آیتونه دي ولولي: ﴿ سُبْحَٰنَ رَبِّكَ رَبِّ ٱلْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلْمُرْسَلِينَ ۝ وَٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (۲).

دالله ﷻ په مرسته دالصافات سورت تفسیر بشپړ شو

***

(۱) الکشاف ۴/ ۵۲

(۲) أخرجه ابن ابي حاتم مرسلا وروی موقوفا عن علی رضی الله عنه.

# د(ص) سورت مکي او اته اتيا آيتونه لري

## دسورت په وړاندي:

د(ص) سورت مکي اودنورومکي سورتونوپه شان هدف اوموخه لري چي داسلامي عقيدې تادو ايږدي ، په پيل کي په قرآنکريم باندي قسم راغلی هغه قرآن چي په أمي نبي نازل شوی اوعجيبه اخبار اونادرپندونه لري قسم افاده کوي چي دغه قرآن برحق اودغه استازی محمد ﷺ رښتونی پيغمبردی ، بياله وحدانيت څخه غږيږي اودمشرکانوانکارراوړي هغوی چي دپيغمبرددعوت اوبلني په هکله به يې په تعجب کي مبالغه کوله ويل به يې: ﴿ أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ ﴾ .

بياسورت هغه لوري ته لېږدي چي هلته دمکي کفارولپاره دنورومجرمينواوسرکښانومثالونه راوړي چي هغوی دخپلونبيانوتکذيب کاوو گمراهي يې غوره کړي وه اوبياورباندي عذابونه نازل شول سبب يې پخپله ددوی فسادونه اوجنايتونه وو.

وروسته دځيني انبياءكراموکيسي درسول الله محمد ﷺ ددلاساينې اوډاډلپاره راوړي څکه چي هغه ته دمکي کفاروله خوا څخه استهزاء گاني اوتکذيب کېدونودهغه دغمونو اوخفگان دليري کولو لپاره يې دداؤد اودهغه دزوی سليمان عليهماالسلام کيسه بيان کړه هغوی چي الله پاک ورته نبوت اوپاچهي دواړه ورکړي اوپه ترڅ کي يې هغه ازموينښتونه چي پردوی دواړو تېرشوي ووبيان کړل وروسته يې دحضرت ايوب عليه السلام دابتلاء ذکروفرمايو اوبيادااسحاق اويعقوب اواسماعيل اوذالکفل عليهم السلام په باب څغلنده يادونه وکړه ترڅوچي دالله ﷻ له خواپخپلوانبياوو اونېکانو اصفياوودابتلاء سنت وښيي.

سورت دقدرت اووحدانيت دلائلوته اشاره کوي چي پدې کائناتوکي دالله ﷻ دبديع صنعت څومره ښېلگي شته دغه کائنات چتي اوبې مقصده نه دي پيداشوي اوخامخايوبل جهان شته چي هلته به نيکوکاراوبدکارته جزاورکول کېږي.

دسورت په پای کي داستازي (رسول) اساسي دنده اوعُهده بيانېږي کومه چي دگردورسولانو اوپيغمبرانوعليهم السلام پواززني وظيفه ده.

## تسميه اونومول:

دغه سورت ته د(ص) سورت وويل شوهغه چي دهجاء له توروڅخه يوتوری دی ترڅوداوښيي چي دغه کتاب معجزدی اوله دغوتوروڅخه منظوم دی کوم چي اولين اوآخرين ورباندي گرېږي مگرددغه معجز کتاب په څېرهيڅوک هيڅ څه راوړلای نشي.

الله تعالی فرمايي: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ صٓ ۚ وَالْقُرْءَانِ ذِي الذِّكْرِ ﴿١﴾ بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ ﴿٢﴾ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ فَنَادَوا وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ ﴿٣﴾ وَعَجِبُوٓا أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ ۖ وَقَالَ الْكَٰفِرُونَ هَٰذَا سَٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴿٤﴾ أَجَعَلَ الْءَالِهَةَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَىْءٌ عُجَابٌ ﴿٥﴾ وَانطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ أَنِ امْشُوا وَاصْبِرُوا عَلَىٰٓ ءَالِهَتِكُمْ ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَىْءٌ يُرَادُ ﴿٦﴾ مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْءَاخِرَةِ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا اخْتِلَٰقٌ ﴿٧﴾ أَءُنزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنۢ بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِّن ذِكْرِي ۖ بَل لَّمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ﴿٨﴾ أَمْ عِندَهُمْ خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ ﴿٩﴾ أَمْ لَهُم مُّلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَٰبِ ﴿١٠﴾ جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ﴿١١﴾ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ﴿١٢﴾ وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَٰبُ لْـَٔيْكَةِ ۚ أُولَٰٓئِكَ الْأَحْزَابُ ﴿١٣﴾ إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ﴿١٤﴾ وَمَا يَنظُرُ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ ﴿١٥﴾ وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿١٦﴾ اصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُۥدَ ذَا الْأَيْدِ ۖ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴿١٧﴾ إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُۥ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ﴿١٨﴾ وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً ۖ كُلٌّ لَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴿١٩﴾ وَشَدَدْنَا مُلْكَهُۥ وَءَاتَيْنَٰهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴿٢٠﴾ ۞ وَهَلْ أَتَىٰكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ﴿٢١﴾ إِذْ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُۥدَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ ۖ قَالُوا لَا تَخَفْ ۖ خَصْمَانِ بَغَىٰ بَعْضُنَا عَلَىٰ بَعْضٍ فَاحْكُم بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَآ إِلَىٰ سَوَآءِ الصِّرَٰطِ ﴿٢٢﴾ إِنَّ هَٰذَآ أَخِي لَهُۥ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً وَلِيَ نَعْجَةٌ وَٰحِدَةٌ فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ ﴿٢٣﴾ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِۦ ۖ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَآءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ۗ وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُۥ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾ فَغَفَرْنَا لَهُۥ ذَٰلِكَ ۖ وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴿٢٥﴾ يَٰدَاوُۥدُ إِنَّا جَعَلْنَٰكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُم بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌۢ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ ﴿٢٦﴾ ﴾ ص: ۱ ــ ۲٦

**لغتونه:**

(عزة) تکبراولويې ته وايې چي دحق له منلوغاړه غړوي اواصل يې له غلبې اوقهرڅخه دی چي وايې: (من عزّ بزّ) يعني چي زور آورشو نوبريالی شو(شقاق) مخالفت ته وايې (مناص) دپناه ځای اوفرياد اوربډلوته ويل کېږي (عجاب) وروستي پړاو دتعجب ځای ته رسېدل خليل وايې چي دعجيب معناتعجب کول اوعجاب بياهغه چي دتعجب له حدڅخه يې تجاوزکړی وي (۱)(اختلاق) کذب اوافتراء ته وايې (فواق) استراحت ته وايي اوپه اصل کي هغي وقفې ته وايه شي چي دشيدو لوشلوترمينځ يې کوي ترڅوېې خوسی شيدې ورو‌ي اوبياشيدې وزېږي اولکه چي الله فرمايي ﴿ مَا لَهَا مِن فَوَاقٍ ﴾ يعني نشته ورلره

---

(۱) القرطبي ۱۵/ ۱۵۰

مهلت ، راحت (١)(قطنا) برخه زموږ (قط ) برخي اووندي ته وايي (الايد) په عبادت او طاعت كي قوت ته ويل كيږي (تسورا) په دېوال وروختل ځكه (سور) دېوال ته وايه شي (تشطط) دلغت علماء وايي چي شطط له حدڅخه تجاوزكولوته وايي اواصل يې له بعد(ليري والي) څخه اخيستل شوى چي وايې: (شطت الدار) يعني سراى ليري شو.

تفسير:

﴿صٓ﴾ دغه توري له هجائي توروڅخه يو توري دى اوپدې هكله بيان څوځله پخواتېرشوى چي پدې تورو كي دقرآنكريم اعجازته اشاره ده ﴿وَٱلْقُرْءَانِ ذِى ٱلذِّكْرِ﴾ (قسم دى په قرآن چي خاوند دپند ، ستر شرف اوعظمت دى) دغه لوړه ده چي الله ﷻ قسم كوي په دغه مجيدقرآن اوخواب دقسم محذوف دى هغه دا چي دغه قرآن معجز اومحمد ﷺ صادق اورښتونى دى. ابن عباس وايي چي د ﴿ذِى ٱلذِّكْرِ﴾ معناد شرافت خاوند دى(٢)﴿بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِى عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ﴾ بلكه هغه كسان چي كافران شوي دي په كبر سر كښني كي دي (دحق له منلو ) اوپه مخالفت كي دي (له مسلماني سره ) بيضاوي وايي معنادا چي هغه كسان چي په قرآنكريم كافران شوي په قرآنكريم كي د كوم خلل له كبله نه دي كافران شوي چي دوى په قرآن كي موندلى دى بلكه له حق څخه په استكبار او سركشي يې كفرغوره كړى اوهمداسي دالله او رسول سره يې دمخالفت كولو په سبب كفرپه ځان منلى دى (٣)﴿كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ﴾ (نه ګوري منكران چي) څومره ډېر هلاک كړي دي موږ پخواله دې له اهل دزمانې څخه (چي له حق څخه يې تكبر كاووله پيغمبرانوسره يې دښمني لرله . ابوالسعود وايي چي دغه آيت دمكي كفارولپاره ګوت ځنډنه اووعيددى چي كه دوى هم دنوروأمتونو په شان كفر اواستكباركوي هغه څه به ورته ورسېږي چي پخوانيوته رسېدلي وو(٤)﴿فَنَادَواْ وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ﴾ پس ناري به يې وهلې (په وخت دنزول د عذاب كي) حال دا چي نه به وو هغه وخت دخلاصېدلو (اوتښتېدلو ) ابن جزي وايي معنادا چي دغه اهل دزمانې چي هلاک شوى دي دوى به هغه وخت استغاثه كوله اوناري به يې وهلې كله چي به يې ورته ګټه نه رسوله هغه وخت به دتښتي نه وو (ناص ينوص) د(فرّ يفرّ) په معنادى (لات) د(ليس) په معنا دى اصل يې لانافيه اوتادتانيث وربانديي زياته شوي ده (٥)﴿وَعَجِبُوٓاْ أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ﴾ (اوتعجب كوي) (كفار) له دې نه چي راغلى دى دوى ته (نبي) وېرونكى له دوى نه) يعني مشركان له دې څخه تعجب كوي چي محمد ﷺ ورته مبعوث شوى دى دوى استبعاد كوي چي بشرڅرنګه پيغمبر كېداى شي؟ ﴿وَقَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ

---

(١) الصحاح للجوهري

(٢) مختصرابن كثير ٣ /١٩٢

(٣) البيضاوي ٢ /١٤٢

(٤) أبي السعود ٤ /٢٨٧

(٥) التسهيل في علوم التنزيل ٣ /١٧٩

﴿هَٰذَا سَٰحِرٌ كَذَّابٌ﴾ او وايې داکافران (دمکي )چي دغه (وړونکی نبي چي معجزې راوړي) کوډګردروغجن دی ﴿كَذَّابٌ﴾ زيات دروغجن دی چي داسي دعوی کوي هغه دالله استازی دی، دلته يې اسم ظاهر چي ﴿ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ دی دضمير پرځای راوړی ترڅوددوی کفر پردوی وليکل شي اوددوی ذم څرګند اودالله غضب پردوی واورول شي څکه دغسي تور اوتهمت پرته له داسي کسانوچي په کفراوفسق کي له نوکانوترککری غرق وي بل څوک نه کوي ﴿أَجَعَلَ ٱلْءَالِهَةَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا﴾ آيا ده ګرزولي دي دغه (۳۶۰ ) معبودان يو(الله) يعني آيادی ګمان کوي چي معبود پروردګار يودی لااله الاهو؟ ﴿إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ﴾ (بېشکه دغه (ګرزول دډېرومعبودانويوه ته) خامخايو څېزډېر عجيب دی)يعني داچي محمد ﷺ وايې چي پرته له يوه الله بل معبودنشته دغه يوډېرعجيب څېزدی . ابن کثير وايې چي مشرکانوله دې څخه انکارکاوو چي الله دي يووي اوله دې څخه يې تعجب کاووکه څوک له الله سره شريک نه نيسي څکه دوی ته دغه شريک نيول له آباوو ، اجدادوڅخه په ميراث رسېدلی اوپه زړونو کي يې ځای نيولی ووکله چي رسول الله ﷺ توحيدته راوبلل نودوی ته دغه ډېره لويه بدي او تعجب وبرېښېدو اوداسي يې وويل: ﴿أَجَعَلَ ٱلْءَالِهَةَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ﴾ ([1]). مفسرين کرام وايې چي قريشوغونډه وکړه اوابوطالب يې راوغوښت ورته يې وويل چي وراره ته دي ووايه چي له موږڅخه لاس واخلي هغه زموږ ددين عيبونه وايې معبودان موبدګڼي زموږافکاراو سوچونه پوچ بولي نوابوطالب هغه ﷺ راوباله اوپدې هلکه يې ورسره خبري وکړې رسول الله ﷺ ورته وويل : ( ای تره زه له دوی څخه يوه کلمه غواړم چي پدې سره به عجم هم ددوی شي اوعرب به هم ورته تابع شي) نو ابوجهل اومشرکانوويل( موږ به له دغي يوې کلمې سره لس نوري لاهم ومنو) نورسول الله ورته وفرمايل: ( قولوالااله الاالله ) دلته دوی تورېدلي (ترهېدلي) پاڅېدلواوجامې يې وڅنډلې اوداسي يې وويل: ﴿أَجَعَلَ ٱلْءَالِهَةَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا﴾ نودا آيت شريف نازل شو ([2]) چي ﴿وَٱنطَلَقَ ٱلْمَلَأُ مِنْهُمْ أَنِ ٱمْشُوا۟ وَٱصْبِرُوا۟ عَلَىٰٓ ءَالِهَتِكُمْ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ﴾ اولاړل په تلوارسره مشران ددوی نه ( له غونډي چي يوبل ته يې سره ويل) چي ځئ (پاڅئ له دې ځايه ) او صبروکړئ (محکم اوسئ) پر(عبادت د) معبودانو خپلو بېشکه دغه شی (توحيد) خامخايوشی دی چي اراده يې کړی شوي ده (له موږ څخه) يعني ددې خبري دمنلوپه صورت کي محمد غواړي له دين څخه مو واړوي اوخپله سرداري او مشرتوب درباندي وتپي ګورئ چي پيروي يې ونکړی([3]) ﴿مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِى ٱلْمِلَّةِ ٱلْءَاخِرَةِ﴾ (ندی اورېدلی موږدغه (توحيد ) په وروستني دين) کي يعني موږ په نصرانيت کي هم وحدانيت ندی اورېدلی کوم چي تر ګردو وروستنی دين دي هغوی

---

([1]) مختصرابن کثير ۳ /۱۹۷

([2]) الطبري ۲۳ /۷۹ - البحرالمحيط ۳۸۲/۷

([3]) داهغه معناده چي ابن جرير کړي اوڅرګنده ده اونوري معناګاني هم شته چي کولای شي دابوالسعودپه تفسيرکي يې ولولئ ۴ /۳۸۳.

د(تثليث ) عقيده لري او توحيد نه مني نو بيامحمد ﷺ څرنګه ګمان کوي چي الله يو دی ؟ ابن عباس رضي الله عنهما وايې چي ددوی مقصدله وروستني دين څخه نصرانيت دی اومجاهداو قتاده بياوايې چي له دې څخه ددوی مراد دقريشودين دی هغه چي د دوی دپلرونودين وو ﴿ إِنْ هَٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ﴾ نه دی دغه (توحيد ) مګرله ځپله ځانه جوړکړي شوي دروغ دي (چي محمديې دعوی کوي ، اوبياددوی) له مينځه دعليه السلام په اختصاص اوځانګړتيا د وحی لپاره داسي انکارکوي چي ﴿ أَأُنزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِن بَيْنِنَا ﴾ (آيانازل شوی دی پرده (محمد ) دغه ذکرقرآن زموږ(غټانو ) له مينځ نه ؟ استفهام دانکارلپاره يعني آيادغه قرآن په محمدنازل شوسره له دې چي په موږکي تردده په مال دولت اومشرتابه کي زيات نورکسان شته ؟ زمخشري وايې چي دوی دځپلو مشرانوله مينځه داختصاص په توګه دمحمد ﷺ له شرافته منکرشول اودغه انکارددوی دهغي کينې اوحسدڅخه ګواهي ورکوي کوم چي ددوی له مينځه څخه محمدرسول الله ته دنبوت منصب ورکول شوی وو(١)﴿ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِّن ذِكْرِي ﴾ بلکه دوی په شک کي دي له ذکره قرآنه پنده زما(بل څه سبب نلري ) دغه اضراب له مقدرڅخه دی تقديريې داچي ددوی انکاردکومي پوهي اوعلم له مخي نه دی بلکه دوی شکمن دي ځکه کافران شول ﴿ بَل لَّمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ﴾ بلکه ندی څکلی دوی عذاب زما ) دغه انتقالي اضراب دی يعني دوی ځکه شکمن دي چي زماعذاب يې تراوسه ندی څکلی اوکه يې څکلی وای نوخامخابه يې په قرآن باورکړی وو ايمان به يې راوړی وو ﴿ أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ ﴾ (آيا ددوی په نزددي خزانې د رحمت درب رښتياچي دهرغالب قوي ، بنه بښونکی دی؟) دغه په مشرکانو باندي رد دی ځکه چي دوی درسول الله ﷺ په نبوت باندي له اختصاص څخه انکارکوي يعني دالله درحمت دخزانوواکداران خودوی نه دي چي چاته يې خوښه شي نبوت به ورکوي اوچاته چي يې خوښه شي له هغه څخه به يې منع کوي بيضاوي وايې معناداچي نبوت يوه الهي عطيه ده چي په هر چا يې الله پېرزوکړي هغه ته يې ورکوي ځکه هغه ﴿ الْعَزِيزِ ﴾ زورور الله دی ﴿ الْوَهَّابِ ﴾ بنه بښونکی دی هرڅه چي هرچاته وغواړي ورکوي يې (٢)﴿ أَمْ لَهُم مُّلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ﴾ آيادوی لره دی سلطنت دآسمانونواوځمکي اودهغوګردوشيانو چي په مينځ ددغوکي دي؛ (دغه استفهام لپاره دانکاراوتوبيخ دی) ﴿ فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ﴾ پس ودی خېژي دوی (آسمان ته) په اسبابو(رسونکيو ) سره (اودکائناتوچاري دي پرمخ بوزي دغه پردوی باندي تهکم اواستهزاء ده؛ زمخشري وايې چي په خورابنه ډول ورباندي تهکم شوی دی معناداچي که دوی دخلګو دچارو دسمبالښت وړوي اودالله درحمت وېش ددوی په اختيارکي وي اودوی دهغه حکمت خاوندان وي چي څوک له نبوت سره بنه وړدی نودي په هغوزينوآسمان ته وخېژي چي دوی عرش ته ورسوي ترڅوله هغه ځايه دخلګوکړن چاري پرمخ بوزي اوهغه چاته وحی راواستوي چي ددوی غوره وي دغه په استهزآء کي

---

(١) تفسيرالكشاف ۴ / ۵۲

(٢) البيضاوي ۲/ ۴۲

وروستنی پړاو دی (۱)﴿ جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ ٱلْأَحْزَابِ ﴾ دوی خویو لښکرګوټی دی په دغه ځای کې چې ماتې ورکړې شوي ده له هغو ډېرو لښکروڅخه ؛ په (جند) کې تنکیرلپاره د تقلیل اوتحقیردی او(ما) د لږوالي دتاکیدلپاره راغلی یعني دوی دهغو ډېرو کفاروچې دالله په پیغمبرانوېې چپاو راوړی یو ډېر کوچنی ټولګی دی چې ژردی ماتې به خوري او تېښته به کړي په دوی پرو امکوه چې هرڅه وایې اومه د دوی ایلتي اوچتیات داهمیت وړګنه ، ورپسې الله تعالی ددوی د مخکښنانو هلاکت اوعذاب داسي بیانوي ﴿ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو ٱلْأَوْتَادِ ﴾ تکذیب کړی وو پخواله دوی نه قوم دنوح او(قوم د) عاد او(قوم) دفرعون چې خاوند د مېخونو وو(یادزیاتولښکرو وو. ځیني مفسرین کرامو ویلي چې (ذوالاوتاد)یې ځکه بولي چې دسړي به یې لاس اوپښې په مېخونوټک وهل اوبیابه یې وواژو او ځیني بیاوایې چې معناداچې هغه داهرامونو اوسترو ماڼیو خاوندووهغه چې په ځمکه کې به لکه مېخونه ټینګ اوثابت وو(۲)﴿ وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَٰبُ لْـَٔيْكَةِ ﴾ اوقوم دثمود او (قوم د) لوط او خاوندان دځنګله (چې شعیب ﷺ ورته را استول شوی وو(الأیکة) ګڼو اوتیتو ونوته وایې ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلْأَحْزَابُ ﴾ دغه کسان (همغه) لویې لویې ډلې (اولښکري) دي (چې په خپلو انبیاوو یې چپاو راوړی وو الله ﷻ هلاک کړل نودغه اوسني د محمدرسول الله مکذبین دي وو ډېرې چې دوی ته به هم هغه څه ورسېږي کوم چې ددوی اسلافوته رسېدلني وو ﴿ إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ ﴾ نه ده (هره یوه ددغو ډلو) مګرنسبت د دروغویې کړی وورسولانو(دالله) ته (کوم چې دوی ته استول شوي وو ﴿ فَحَقَّ عِقَابِ ﴾ پس ثابت شو(دوی ته) عذاب زما؛ ﴿ عِقَابِ ﴾ په اصل کې (عقابي) وو اووایې دآیتونو د سجع د مراعات لپاره حذف کړه شوي ده ﴿ وَمَا يَنظُرُ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً ﴾ اوانتظارنه کوي دغه کسان (د مکې کفار) مګریوې چیغي ته (چې اسرافیل ﷺ په شپېلۍ کې پوکړي) ﴿ مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ ﴾ (چې نشته هغې ته هیڅ ډیل بیرته ګرزېدل) یعني هغې لره توقف اوتکرارنشته. ابن عباس ﷺ وایې چې بیرته ګرزېدل ورلره نشته (۳) مفسرین کرام وایې چې دغه چیغه کله پېښه شي بیا نو یوه شېبه هم نه وروسته کېږي که څه هم هغه داوښې دلوشلو ترمینځ وقفه غوندي وي ځکه دابه پخپل ټاکلي وخت کې راځي زمخشري وایې معنا داچې دابه یوپوکی وي نه به دوه کېږي اونه به تکرارېږي (۴)﴿ وَقَالُوا۟ رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ ٱلْحِسَابِ ﴾ اووایې (کفارد(تمسخرپه توګه) ای زموږربه ژر راکړه موږ ته برخه (د عذاب) زموږ

---

(۱) الکشاف ۴/ ۵۷

(۲) له ضحاک څخه نقل شوي چې اوتاد ستروماڼیوته ویل کېږي اودغه خبره ابن عطیه هم منلي اوزمخشري وایې چې دغه دپاچهي دثبات اوټینګښت څخه استعاره ده لکه چې أسود وایې (في ظل ملك ثابت الاوتاد).

(۳) الطبري ۲۳/ ۸۴

(۴) الکشاف ۴/ ۵۹

پخواله ورخې د حساب (هغه چې تابې له موږ سره وعده کړې لکه چې محمد وايي مفسرين کرام وايي چې دغه به دوی داستهزآء په ډول ويل لکه چې الله تعالى فرمايي ﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ ﴾ (الرعد:٦) ﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالْعَذَابِ ﴾ (العنكبوت ٥٣ ) ﴿ اَصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ ﴾ (الله فرمايي) صبر تحمل كوه (اى محمده!) پرهغې خبرې چې دوی وايي (تاته) يعني ددوی په تكذيب باندې صبر كوه الله ستا مرستندوی دى صاوي وايي چې پدې كې درسول الله ﷺ لپاره تسليت او دكفارو لپاره تهديد نغښتى دى (١)﴿ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُۥدَ ذَا الْأَيْدِ ﴾ اوياد كړه (كيسه) دبنده زموږ داؤد خاوند دقوت (په دين او تن كې څكه هغه به يوه ورځ روژه نيوله بله به يې افطار كاوو نيمه شپه به يې توله په عبادت تېروله ﴿ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴾ چې بېشكه دى ډېر رجوع كونكى وو. ابوحيان وايي څرنګه چې دمشركانو وينا ددين دسپكاوي او استخفاف لپاره وه نو الله ﷺ رسول الله ته دزغم او صبر حكم وكړ او دانبياوو عليهم السلام كيسې يې ورته بيان كړې چې هغوى داؤد ، سليمان او ايوب اونور وو چې هغوى ته څومره تكليفونه رسېدلي او هغوى صبر او زغم خپل كړى وو بيايې ښه او محمود عاقبت وموندو همداسي ته هم صبر كوه چې ښه پايله ومومې (٢)﴿ إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُۥ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ﴾ (بېشكه چې موږ تابع مسخر كړي وو غرونه له دغه (داؤد) سره چې تسبيح به يې ورسره ويلې په آخره اولومړۍ برخه دورځې كې) يعني په ماښام او سهار كې به يې ورسره حقيقتًا تسبيح ويله لكه چې الله تعالى فرمايلي دي ﴿ يَٰجِبَالُ أَوِّبِى مَعَهُۥ وَالطَّيْرَ ﴾ (سبا١٠) ﴿ وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً كُلٌّ لَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴾ او(بل تابع او مسخر كړي وو موږ ) مرغان حال دا چې ټول كړى شوي به وو (صفونه صفونه) هريو(له دوى) به ده ته رجوع كونكي وو( په طاعت سره ) يعني دغه غرونه او مرغان به له ده سره تسبيح زمزمه كول او دالله طاعت ته به رجوع كونكي وو ابن كثير وايي چې مرغانو به دده له تسبيح سره سمه تسبيح لوستله او چې كله به يې داؤد ﷺ وليد چې دزبور تلاوت كوي (او دوى به په هوا الوتي وو ) نوبه ودرېدل او هغه به يې ورسره وايو او همداسي به غرونه ورسره په تسبيح كې مشغولېدو قتاده وايي چې ﴿ أَوَّابٌ ﴾ يعني فرمانبردار (منونكى) (٣)﴿ وَشَدَدْنَا مُلْكَهُۥ ﴾ اوقوي كړى موږ ملک سلطنت ددغه (داؤد په هيبت ، نصرت او زياتو لښكرو سره) ﴿ وَءَاتَيْنَٰهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴾ او ورموكړ ده ته حكمت (نبوت ، تدبير دټولو امورو ) او فصل الخطاب ) يعني روښانه وينا چې هرڅوک پرې پوهېږي (٤)مجاهد وايي چې ﴿ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴾ په حق سره ښه فيصله كول او پرې پوهېدلو ته وايي. قرطبي وايي

---

(١) حاشية الصاوي ٣/ ٣٥٣
(٢) البحر المحيط ٣٩٠/٧
(٣) مختصر ابن كثير ٣ /
(٤) دغه دزمخشري وينا ده او ابن عطيه غوره كړي دالله جل جلاله پدې قول يې استناد كړى چې (انه لقول فصل) او طبري بيا وايي چې دغه روښانه كلام په حكم محاوره او خطابت كې دى

معنايې دحق اوباطل ترمينځ فيصله کونکی کلام دی (۱) مفسرين کرام وايي چي حضرت داؤدغښتلی اوعزتمن سړی وواودهغه سياست په متانت اوحکمت ولاړ وو هغه چي به کومه پريکړه کوله په هغه کي بې هيڅکله بياترددنه کاووتل به يې له حکمت او قوت سره سمه پريکړه کوله اودغه په پاچهي اوسلطنت کي بريمند کمال اوبشپړتياده ﴿ وَهَلۡ أَتَىٰكَ نَبَؤُاْ ٱلۡخَصۡمِ إِذۡ تَسَوَّرُواْ ٱلۡمِحۡرَابَ ﴾ اوآيارا غلی دی تاته (ای محمده!) خبردجګړه کونکو کله چي راوختل (پس له دېواله د) عبادت خانې) دغه استفهام دتشويق اوتعجيب لپاره دی لکه چي څوک يوچاته وايي آيا ته پوهېږې نن څه پېښه شوې ده؟ اوستا مقصد دهغه تشويقول وي چي ستاخبري واوري يعني ته خبر يې چي کله داؤدپخپل مسجد کي په طاعت اوعبادت بوخت وو اوهغه ته په دېوال متخاصمين ور واوښتل؟ ﴿ إِذۡ دَخَلُواْ عَلَىٰ دَاوُۥدَ فَفَزِعَ مِنۡهُمۡۖ ﴾، کله چي ننوتل (ټول) پرداؤدباندي (اوده وليدل) پس ووېرېدو له دوی نه مفسرين کرام وايي چي داؤد عليه السلام ځکه څني ووېرېدوچي بې اجازې وردننه شول پردروازه هم نه راغلل بلکه په دېوال ورواوښتل اوداهغه مهال ووچي ده دعبادت لپاره ځانته ټاکلی وو ﴿ قَالُواْ لَا تَخَفۡۖ خَصۡمَانِ بَغَىٰ بَعۡضُنَا عَلَىٰ بَعۡضٖ ﴾ وويل دوی مه وېرېږه (موږدوه ډلي) جګړه کونکي يوچي ظلم کړی دی ځينوزموږ پرځينو نورو ﴿ فَٱحۡكُم بَيۡنَنَا بِٱلۡحَقِّ وَلَا تُشۡطِطۡ ﴾ پس حکم وکړه په مينځ زموږکي په حق سره اوظلم مه کوه (پرموږ باندي) ﴿ وَٱهۡدِنَآ إِلَىٰ سَوَآءِ ٱلصِّرَٰطِ ﴾ اوبرابر کړه موږ سمي لاري (دحق څرګندي ته) ﴿ إِنَّ هَٰذَآ أَخِي لَهُۥ تِسۡعٞ وَتِسۡعُونَ نَعۡجَةٗ وَلِيَ نَعۡجَةٞ وَٰحِدَةٞ ﴾ بېشکه چي دا(سړی) وروزمادی ده لره نه نوي مېږي دي اومالره يوه مېږه ده پس مفسرين کرام وايي کېدای شي پدې سره به له مېرمني څخه کنايه راوړل شوي وي يعني زمايوه مېرمن اوده نه نوي مېرمني اوښځي دي (۲) ﴿ فَقَالَ أَكۡفِلۡنِيهَا وَعَزَّنِي فِي ٱلۡخِطَابِ ﴾ پس دی ماته وايي چي ماکفيل

---

(۱) القرطبي ۱۵/۱۲۲

(۲) ځيني مفسرين پدې ځای کي ښځي زيات تېروتلي دي چي پخپلوتفسيرونو کي يې داهل کتابوويناوي پرته له پلټني اوڅېړني رانقل کړي دي چي وربانډي باورنشي کېدای اوسندې سم ندی ځکه دغه اسرائيلي روايات دي اوله اسلامي عقيدې سره کوم چي دانبياوو عليهم السلام په عصمت باندی ولاړه ده منافي دی له دغو باطلو تېل شوي کيسو څخه يو هم هغه روايت دی چي وايي داؤد ﷺ دخپل يو جنګي سالارله ښځي سره مينه پيداشوه اولنډه کيسه يې داچي هغه په بام ختلی ووکه ګوري چي يوه ښايسته ښځه لامبي نوورباندي مين شو اودغه دده ديوه قوماندان چي (اوريا) نومېده ښځه وه نويې وغوښتل له اورياڅخه ځان خلاص کړي ترڅويې ښځه په نکاح واخلي بيايې هغه جنګ ته واستاوو اوحکم يې ورکړ چي پرمختګ دي کوي هغه بری ترلاسه کړ اوبيابيايې خوځله جنګ ته ولېږو ترڅو هغه ووژل شو نويې دهغه مېرمن ځانته په نکاح کړه چي نورهم دروغ اوبهتان پکي لازيات دي ، ابن کثيروايي چي مفسرينو دلته داسي کيسې اوداستانونه راوړي چي اکثرېې اسرائيليات دي اوهغه چي ارومرود رواغ دي موږ يې قصدًاله راوړلو څخه ډډه وکړه اوپه قرآني کيسه تلاوت کولو موکفايت وباله .والله يهدي من يشآء الى صراط مستقيم. بيضاوي وايي کوم چي ويل شوي (اوريا) يې څوځو واره جنګ ته واستاوو اودپرمخ تګ حکم يې ورکړ ترڅوچي مړشواوښځه يې ده په نکاح واخيسته دغه يودروغ اوافتراء ده اوله دې کبله حضرت علی کرم الله وجهه ويل: څوک چي د(داؤد) ﷺ کيسه داسي کوي لکه چي قصه خوانان يې وايي يو سل اوشپېته دُرې به يې ووهم دغه په انبياوو باندي ددروغو ويلو حد دی اوصحيح کيسه لکه چي محققينو مفسرين کرامو ليکلي داده چي داؤد عليه السلام خپل وختونه ديو مهال وېش له مخي جلاکړي ووځيني وختونه يې دواکمني چاري پر مخ بېولې ځيني وخت يې دخلکو فيصلې

کړه ددې يوې (مېږې) ماته يې راکړه) او غلبه يې کړې ده پر ما په خطاب کې (سختې سختې خبرې يې راته کړې دي) ﴿ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ ﴾ وويل (داؤد) خامخا په تحقيق چې ظلم کړی دی ده پر تا په غوښتلو د مېږې ستا چې يو ځای يې کړي) له مېږو خپلو سره (چې پوره سل مېږې يې شي) ﴿ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ او بېشکه چې ډېر له شريکانو خامخا ظلم تېری کوي ځيني ددوی په ځينو نورو ﴿ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ﴾ مګر (تېری) نه کوي هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې (ښه) عملونه او ډېر زيات لږ دي دغه کسان په مينځ د شريکانو کې ﴿ وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ ﴾ او متيقن شو داؤد پدې چې بېشکه همدا خبره ده چې موږ دي وازمويو (پدې پېښه او دغې فيصلې کې) ﴿ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ﴾ نو بښنه يې وغوښته له خپله ربه او پرمخې پرېوت په دغه حال کې چې رکوع، سجده کوونکی وو الله ته او بيرته الله ته راجع شو (په توبه او پښېماني سره ابو حيان وايي چې مفسرينو پدې کيسه کې داسې شيان ذکر کړي چې د انبياوو عليهم السلام له منصب سره نه ښايي ځکه مو هغه اړخ ته وغورځول او هغه څه چې آيت شريف ظاهراً ورباندې دلالت کوي دادی چې دغه کسان چې په دېوال وروا وښتل انسانان وو او دوی پداسې مهال ورغلل چې هغه وخت د حکم او قضا وخت نه بلکه دده د عبادت او طاعت وخت وو او هغه پدې خنې وو ډېر ډو چې ښايي هغوی يې دوژلو تکل کړی وي ځکه هغه يوازې پخپل محراب کې د خپل رب طاعت کاوو او کله چې ورته څرګنده شو هغوی د دعوی د (د فيصلې لپاره راغلي دي او دوه تنه يې د قضيې دوړاندي کولو لپاره راڅرګند شول لکه چې الله تعالی يې کيسه کړي نو يې له همدغه ګومان څخه بښنه وغوښته او الله ته پرمخې په سجده شو، موږ په يقيني توګه پوهېږو چې انبياء عليهم السلام له ګناهونو څخه معصوم دي که چېرې يوه ګناه د هغوی لپاره ومنو بيا نو شريعتونه له مينځه ځي او موږ به په هيڅ څېزباندې چې دوی يې وايي باور نشو کولای هغه چې الله ﷻ پخپل کتاب کې يې يادونه کړي په هغې چې څرنګه الله غوښتې هغسې وينا کول ښايي او هغه چې کيسه کوونکو قصه خوانانو راوړي او د نبوت له ستر منصب او شان سره نه ښايي موږ هغه نه

کولې او ځينې وختونه يې د عبادت او خلوت لپاره ځانګړې کړي وو چې د زبور تلاوت او پخپل مسجد کې تسبيحات به يې ويل او کله چې به خپل محراب ته د ننه شو نو بيا به تر هغو هيڅوک د ننه نه ور تلل ځو به هغه پخپله راوتلی نه وو يوه ورځ چې دی پخپل عبادت لګيادی ګوري چې دوه تنه دده د مسجد په دېوال وروختل او دی ځني وو ډېر ډو په زړه کې يې ورو ګرزول چې ورباندې حمله وکړي نو دوی ژر تر ژره ځان ورو ښود چې دوی مدعيان دي تر مينځ يې يوه شخړه ده نو يوه يې پيل وکړه او خپل دعوه يې داسې وړاندې کړه لکه چې قرآنکريم يې بيان کړی دی او دغه قضيه لکه چې دغه يوه بيان کړه ښکاره ظلم او تجاوز دی چې تأويل نه مني ځکه نو داؤد عليه السلام د دغې دعوی له اورېدلو سره سم فيصله صادر وي او د دوهم مدعي خبره يې

لا اورېدلې نه ده او نه يې ترې غوښتنه کړې ده چې داسې حکم کوي ﴿ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ ﴾ نو الله ﷻ پدې باندې عتاب ورته وکړاو پدې يې تنبيه کړ چې قاضي ته ښايي تر هغو حکم صادر نکړي تر څو چې د دواړو طرفونو خبرې وانه وري.... دغه د قرآن کيسه او هغه چې اسرائيلي روايات دي چې موږ يې لنده يادونه وکړه له هغه څخه ويره په کار ده ځکه دغسې کار خوله عوامو مسلمانانو سره لا نه ښايي څه خوله انبياوو سره او هغه چې د انبياوو خواص دي.
(څوک چې سالم عقل او قوي ديانت لري فکر دي وکړي).

راوړو (۱) ﴿ فَغَفَرْنَا لَهُۥ ذَٰلِكَ ﴾ پس وموبښله مونږ ده ته هغه (خطادده چي په دغودوو کسانو بې بدګماني کړي وه. ابن کثیروايي يعني داچي هغه څه چي له ده څخه صادرشوي وو په هغه مو ورته معافي وکړه کوم چي دهغو په باب ويل کېږي: (حسنات الابرار سيئات المقربين ) يعني لويان په يوه وړوکي ګناه هم پوښتل کېږي ﴿ وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴾ اوبېشکه ده ته په نزد زمونږ شته مرتبه (قرابت کرامت وروسته له مغفرته) اوښه ځاى دورتلو دى (په آخرت کي) ﴿ يَـٰدَاوُۥدُ إِنَّا جَعَلْنَـٰكَ خَلِيفَةً فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ اى داؤده بېشکه ګرزولى موېې خليفه په ځمکه کي (چي لوى سلطنت مودرکړى دى ترڅو دخلګو دچاروا و مصالحو سمبالښت وکړي ﴿ فَٱحْكُم بَيْنَ ٱلنَّاسِ بِٱلْحَقِّ ﴾ پس حکم وکړه په مينځ د خلګوکي په حق سره (په عدل اوالهي شريعت سره چي پرتاېې نازل کړي دي) ﴿ وَلَا تَتَّبِعِ ٱلْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾. متآبعت مه کوه دهوااونفس (په احکاموکي) پس ګمراه به دي کړي(دغه هوا) دالله له لاري څخه (چي سم دين او سيخه لاره ده) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌۢ ﴾ بېشکه هغه کسا ن چي ګمراه کېږي دالله له لاري (چي ايمان نه راوړي ) شته دوى ته سخت عذاب (دقيامت دورځي) ﴿ بِمَا نَسُوا۟ يَوْمَ ٱلْحِسَابِ ﴾ په سبب دهېرولودوى ورځي دحساب لره څکه که يې نه هېرولاى اودالله په لاره تللاى نوددغي ورځي لپاره به يې توښه برابره کړي واى ابوحيان وايي داچي الله تعالى داؤد ﷺ په ځمکه کي خليفه ګرزولي دغه دهغه دسترمقام اومنزلت څرګندوېې کوي اودهغه چاپه سينه سوک ورکول دي څوک چي په هغه باندي دنبوت له منصب سره سره نامناسب تورونه لګوي

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبيان اوبديع کومي ښکلاوي شته لنډيزېې په لاندي ډول دي:

۱ - مرسل مجازلکه چي فرمايي: ﴿ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ ﴾ قرن پېړۍ ته اوهغه سلو کالو ته ويل کېږي خومقصد له پېړۍ څخه اهل دهغې دى کوم چي هلاکت ورکول شوى دى نودغه مجازبولي.

۲ - دظاهراسم دضميرپرځاى راوړل لکه ﴿ وَقَالَ ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴾ چي اصل خوداووچي د(قالوا) راغلي واى مګر(کافرون )يې ظاهر راوړل چي کفرورباندي تثبيت شي.

۳ - دمبالغې صيغې لکه چي په ﴿ كَذَّابٌ ..... ٱلْعَزِيزِ..... ٱلْوَهَّابِ.....أَوَّابٌ ﴾ کي راغلي دي.

۴ - تنوين دتحقيراوتقليل لپاره لکه چي ﴿ مَّا ﴾ دلړوالي دتاکيدلپاره راغلى اوفرمايې:

﴿ جُندٌ مَّا ﴾.

۵ - جمله خبريه په اِنّ اولام باندي تاکيدکول چي دتعجب زياتوالي اوانکاروښيي لکه پدې کلام کي

﴿ إِنَّ هَـٰذَا لَشَىْءٌ عُجَابٌ ﴾ چي راغلى دى.

---

(۱) تفسيرالبحرالمحيط ۳۹۳/۷

۶- بلیغه استعاره چي فرمايي: ﴿ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ﴾ دلته يې پاچهي له پراخي لوېې خېمې سره مشابه کړې چې تناوونه اومراندي په موږو (مېخونو) چي په ځمکه کي ژور تک وهل شوي ترلي وي اوبادونه يې راکښلای نشي نوپدې کي مکنيه استعاره اود ﴿ الْأَوْتَادِ ﴾ يادول يې تخييل دی.

۷- دطباق صنعت لکه چي فرمايي: ﴿ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ﴾ ځکه مرادورځخه ماښام اوسهار دی.

۸- دتشويق أسلوب لکه چي وايي: ﴿ وَهَلْ أَتَاكَ نَبَأُ الْخَصْمِ ﴾ دغه دتشويق اوهڅوني لپاره راغلی دی.

۹ - داطناب صنعت پدې کلام کي چي: ﴿ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ.. ﴾ ترپايه پوري

۱۰- دآيتونودپيل دفواصلوتوافق لکه: ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ.. فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ..جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ﴾ هغه چي په کلام کي ښکلا اولذت زياتوي

لطيفه:

ابن کثير رحمه الله روايت کوي چي ابوزرعة يوه ورځ دعبدالملک زوی اميرالمؤمنين وليد ته ورغی ، وليد ورته وويل: چي تاخوقرآن لوستلی اوورباندي پوهېدلي يې آياله خليفه سره به الله حساب کوي ؟ نوهغه ورته وويل: ای اميرالمؤمنينه زه ووايم؟ هغه ورته وويل هوتاته امان درکول شوی دی نوهغه ورته وويل: ای اميرالمؤمنينه ته به په (الله) ګران يې اوکه داؤدعليه السلام ؟ هغه ته الله خلافت اونبوت دواړه ورکړي وو اوبيايې په خپل کلام کي دهغه په هکله داسي تهديدبيان کړی چي ﴿ يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُم بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ دآيت ترپايه اوهمدغه يوخورا ښکلی نصيحت اوپندووچي وليدبن عبدالملک واورېدو.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ۚ ذَٰلِكَ ظَنُّ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِنَ النَّارِ (۲۷) أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ (۲۸) كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ إِلَيْكَ مُبَارَكٌ لِّيَدَّبَّرُوا آيَاتِهِ وَلِيَتَذَكَّرَ أُولُو الْأَلْبَابِ (۲۹) وَوَهَبْنَا لِدَاوُودَ سُلَيْمَانَ ۚ نِعْمَ الْعَبْدُ ۖ إِنَّهُ أَوَّابٌ (۳۰) إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصَّافِنَاتُ الْجِيَادُ (۳۱) فَقَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَن ذِكْرِ رَبِّي حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ (۳۲) رُدُّوهَا عَلَيَّ ۖ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ وَالْأَعْنَاقِ (۳۳) وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَانَ وَأَلْقَيْنَا عَلَىٰ كُرْسِيِّهِ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ (۳۴) قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَّا يَنبَغِي لِأَحَدٍ مِّنْ بَعْدِي ۖ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ (۳۵) فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِ رُخَاءً حَيْثُ أَصَابَ (۳۶) وَالشَّيَاطِينَ كُلَّ بَنَّاءٍ وَغَوَّاصٍ

وَءَاخَرِينَ مُقَرَّنِينَ فِي ٱلْأَصْفَادِ ﴿۳۸﴾ هَٰذَا عَطَآؤُنَا فَٱمْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۹﴾ وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴿۴۰﴾ وَٱذْكُرْ عَبْدَنَآ أَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ أَنِّي مَسَّنِيَ ٱلشَّيْطَٰنُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ ﴿۴۱﴾ ٱرْكُضْ بِرِجْلِكَ هَٰذَا مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَشَرَابٌ ﴿۴۲﴾ وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ أَهْلَهُۥ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرَىٰ لِأُوْلِي ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿۴۳﴾ وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَٱضْرِب بِّهِۦ وَلَا تَحْنَثْ إِنَّا وَجَدْنَٰهُ صَابِرًا نِّعْمَ ٱلْعَبْدُ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴿۴۴﴾ وَٱذْكُرْ عِبَٰدَنَآ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ أُوْلِي ٱلْأَيْدِي وَٱلْأَبْصَٰرِ ﴿۴۵﴾ إِنَّآ أَخْلَصْنَٰهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى ٱلدَّارِ ﴿۴۶﴾ وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ ٱلْمُصْطَفَيْنَ ٱلْأَخْيَارِ ﴿۴۷﴾ وَٱذْكُرْ إِسْمَٰعِيلَ وَٱلْيَسَعَ وَذَا ٱلْكِفْلِ وَكُلٌّ مِّنَ ٱلْأَخْيَارِ ﴿۴۸﴾ هَٰذَا ذِكْرٌ وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴿۴۹﴾ جَنَّٰتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ ٱلْأَبْوَٰبُ ﴿۵۰﴾ مُتَّكِـِٔينَ فِيهَا يَدْعُونَ فِيهَا بِفَٰكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ ﴿۵۱﴾ ۞ وَعِندَهُمْ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ أَتْرَابٌ ﴿۵۲﴾ هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِيَوْمِ ٱلْحِسَابِ ﴿۵۳﴾ إِنَّ هَٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُۥ مِن نَّفَادٍ ﴿۵۴﴾ صٓ: ۲۷ ـ ۵٤

## مناسبت:

کله چي الله تعالی دمشرکانو انکار له قرآنه ، رسالته ، حشراونشراوقیامته بیان کړ وروسته یې دداؤدعلیه السلام کیسه واوروله ترڅوچي درسول الله ﷺ لپاره تسلیت اوډاډینه وي دلته یې په بعث اونشور باندي دلائل اوبراهین راوړل اوبیایې دقرآنکریم دنزول حکمت په ډاګه کړ وروسته یې دسلیمان بن داؤد کیسه دلوړهدف دبشپړاوي اوتکمیل لپاره بیان کړه کوم چي دقرآنکریم دکیسو بیانولوموخه اوهدف دی.

## لغتونه

(الباب) دلُب جمع اولب دیوشي مغزته وایي مقصدځني عقلونه دي (الصافنات) هغه آسان چي په دریو پښو ولاړ اوڅلورمه یې څه اوچته نیولي وي بولي د(صافن) جمع ده فرآء وایي چي(صافن) دعربو په کلام کي ولاړ آس ته ویل کېږي (الجیاد) په منډه اوتګ کي ګړندیوته ویل کېږي مبرد وایي چي(جیاد) دجواد جمع دی اوګړندي څغلېدونکي ته ویل کېږي لکه چي په خلګوکي سخي اوکریم ته جواد وایي([1]) (توارت) پټ شو(رخآء) نرم اومنونکی (الاصفاد) داوسپني کړی اوطوقونوته یې (صفد) وایي لکه چي په حدیث شریف کي راځي (صُفدت الشیاطین ) یعنې په طوقونووتړل شول (ضغثا) یوموټی خس اوخاشاک چي وچ اولامده سره ګډوي اواصل یې له مختلط څېزڅخه اخیستل شوی لکه چي الله فرمایي: ﴿قَالُوٓاْ أَضْغَٰثُ أَحْلَٰمٍ﴾ (یوسف۴۴ و الانبیآء:۵ ) ګډوډ خوبونه.

---

([1]) التفسیرالکبیرللرازي ۳۲ /۲۰۴

تفسير:

﴿ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَآءَ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَٰطِلًاۚ ﴾ اونه دي پيدا کړي په باطله سره موږ دغه آسمان او ځمکه او هغه کړد مخلوقات چي په مينځ د دغو دواړو کي دي ﴿ ذَٰلِكَ ظَنُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ (دغه پيدا کول د دغو (په باطله سره) ګمان د هغو کسانو دی چي کافران شوي دي) يعني دا چي دغه پيدا ايښت دي د کوم حکمت له مخي نه بلکه چټي او باطل وي د هغو کفارو فجارو ګمان دی چي په بعث او نشور ايمان نلري ﴿ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنَ ٱلنَّارِ ﴾ پس عذاب هلاک خرابي ده لپاره د هغو کسانو چي کافران شوي دي له اوره (چي پکي سوځي به بيا په دغه ګمان باندي داسي توبيخ ورکوي چي: ﴿ أَمْ نَجْعَلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ كَٱلْمُفْسِدِينَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ آيا وبه ګرزوو هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) په شان د فساد کونکو په ځمکه کي؟ ﴿ أَمْ نَجْعَلُ ٱلْمُتَّقِينَ كَٱلْفُجَّارِ ﴾ آيا وبه ګرزوو متقيان په شان د بد کارانو ؟(بلکه نه يې ګرزوو) غرض دا چي د الله په حکمت کي نېکوکار او بدکردار برابر نه دي او په آيت شريف کي په حشر او جزاء باندي استدلال موجود دی او همداسي وعد او وعيد پکي نغښتی دی، الله ﷻ په دې آيت شريف کي دا بيان ؤ فرمايو چي د الله له عدل او حکمت سره دا نه ښايي چي مؤمنان او کافران دي برابر وګڼي او چي د غسي ده بيا نو ار و مرو جزاء شته چي مؤمن ته د خپل عمل ثواب ورکول شي او کافر ته سزا ورکړل شي او سالم عقول هم دا غوښتنه او پردې دلالت کوي چي خامخا جزا او معاد شته کله چي موږ وينو ظالم ،باغي مالونه زياتېږي اولادونه او نعمتونه ورکول کېږي او چي ومري بيا عذاب هم نه ورکول کېږي او يا دا چي فرمانبردار مظلوم چي له ډېري بېوزلي او خفګانه ومري نو د حکيم عليم ذات حکمت به خامخا دغه او دغه انصاف کوي او کله چي دلته په دې دنياکي دغه انصاف ورنکړی شي نو معلومه خبره ده چي هلته به هرچا ته له خپله عمله سره سمه جزاء او سزاء ورکول شي(١) وروسته الله ﷻ د دې بيان فرمايي چي مقصد د قرآنکريم له نزول څخه په هغه باندي عمل کول او تفکردی فرمايي: ﴿ كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ إِلَيْكَ مُبَٰرَكٌ ﴾ (دغه قرآن) يو کتاب برکتناک دی چي نازل کړی مو دی هغه تاته (ای محمده !) يعني ای محمده دغه کتاب چي موږ پرتا نازل کړی يو عظيم او جليل کتاب دی ډېري ګټي او ديني دنيوي ښېګڼي لري ﴿ لِّيَدَّبَّرُوٓا۟ ءَايَٰتِهِۦ ﴾ لپاره د دې چي فکرو کړي په آيتونو د ده (چي عجيب اسرار او ستر حکمتونه لري)﴿ وَلِيَتَذَكَّرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ او لپاره د دې چي پند پرې واخلي خاوندان د صافو عقلونو. حسن بصري رحمه الله وايي: قسم په الله دی هغه چا د قرآن تدبر ندی کړی چي په لفظونو يې لوستی او احکام يې تر پښو لاندي کړي وي يو څوک وايي چي قسم په الله ما قرآن ټول لوستلی يو توری مي هم پرې ايښی نه دی خو په الله سوګند چي ټول قرآن يې پرې ايښی ځکه چي په اخلاقو او عمل کي يې د قرآنکريم هيڅ نښه

---

(١) تفسير ابن کثير ۳ /۲۰۲

نه ښکاريږي (¹) اللهم اجعلنا ممن قرأه وتدبره وعمل بما فيه آمين ) ﴿ وَوَهَبْنَا لِدَاوُۥدَ سُلَيْمَٰنَ ﴾ او وموبانښه داؤد ته سليمان، دغه د داؤد عليه السلام د زوی سليمان ﷺ د کيسې پيل دی يعني هغه ته مو صالح زوی چي سليمان نوميده وروبانښه او نبوت مو ورکړ. مفسرين کرام وايي چي مقصد په ښښلو سره د نبوت ښښل دي لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَوَرِثَ سُلَيْمَٰنُ دَاوُۥدَ ﴾ (النمل ۱۶ ) يعني له داؤد ﷺ څخه سليمان ﷺ ته د نبوت ميراث پاتي شو او که د غسي نه وي نو د داؤد ﷺ خو نور ډېر اولادونه هم وو ﴿ نِعْمَ ٱلْعَبْدُ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴾ ښه بنده وو ښکه چي دی ډېر رجوع کونکی دی (الله ته په توبه او انابت سره ) ﴿ إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِٱلْعَشِيِّ ٱلصَّٰفِنَٰتُ ٱلْجِيَادُ ﴾ کله چي وړاندي شو پرده باندي په آخر دورځي چي هغه ګرندي خاص آسونه (په دريو پښو ولاړ او دڅلورمي سوې نوک يې په ځمکه لګولی) امام رازي وايي چي دغه آيبان يې په دوو صفتونو وستايل يو دا چي (صافن) هغه چي د آسونو په فضيلت او بهتري دلالت کوي بل (جياد) هغه چي ګرندي وي مقصد له دې څخه د هغوی فضيلت او کمال څرګندول دي چي هغه که ولاړ وي او که روان خوراغوره دی په دريدلو کي مطمئن او آرام ولاړ وي په تللو کي خوراګرندي وي(²) ﴿ فَقَالَ إِنِّيٓ أَحْبَبْتُ حُبَّ ٱلْخَيْرِ عَن ذِكْرِ رَبِّي ﴾ نو وويل (سليمان) ښښکه زه چي يم غوره مي کړه مينه د آسونو په ذکر د رب خپل ﴿ حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِٱلْحِجَابِ ﴾ ترڅو چي پټ شو لمر په پرده کي. مفسرين کرام وايي چي: په زړونو آسان کوم چي له خپله پلاره ورته پاتي وو دده په مخکښي وڅغلول شول دغه د ماز يګر وخت وو چي دی د هغو آسونو په کتلو او د هغوی په څغاسته باندي د ماز يګر د وخت له خاص ذکر څخه مشغوله کړ ترڅو چي لمر دوب شو ﴿ رُدُّوهَا عَلَيَّ ﴾ (بيا وويل سليمان) بيرته راولئ دغه آسونه ماته ﴿ فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِٱلسُّوقِ وَٱلْأَعْنَاقِ ﴾ (پس شروع وکړه سليمان په وهلو د دې آسونو (په توره ) پنډيو او غاړو ) يعني د ثواب لپاره يي د هغوی په حلالولو او پښو پرېکولو شروع وکړه ترڅو تول خيرات کړي او په مسکينانو يې ووېشي ، دغه وينا د سدي ده او هغه څوک چي وايي له ده څخه د ماز يګر لمونځ قضا شو لمر ځني پر پووت دغه وينا ضعيفه ده څکه د نبي له حاله څخه د دې تصور نه کېږي چي په دنيوي کارونو کي دي ور څخه لمونځ پاتي شي او آيت شريف هم په ذکر تصريح کوي چي فرمايي ﴿ عَن ذِكْرِ رَبِّي ﴾(³) ﴿ وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَٰنَ وَأَلْقَيْنَا عَلَىٰ كُرْسِيِّهِۦ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ ﴾ (او خامخا په تحقيق ازمويلي دی موږ سليمان او غورځولی موو پر تخت دده يو جسد (بې روحه ) بيا ده (الله ته) رجوع وکړه) دغه ديو بل ازموينت لورته اشاره ده ښايي چي دغه

---

(¹) الكشاف ۴ / ۷۰
(²) تفسير الكبير للرازي ۲۲ / ۲۰۴
(³) له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت شوی چي (طفق مسحا بالسوق.....) معنا دا هغو له ډېري ميني او محبته د هغو آسانو د ورمېږونو او پنډيو په صافولو مصروف شو دغه قول ابن جرير غوره کړی خو ښه ښکاره د حسن بصري رحمه الله قول دی او د سدي د وينا موږ بره ذکر کړه چي هغه يې حلال او پښي يې ورپرې کړي څکه چي د الله له ذکره يې مشغول کړی وو او بيا الله تر د غو ښه عوض او بدل ورکړ چي هغه باد او تر آسونو خوراګرندی وو.

ابتلاء هغه وي چي په صحيح حديث كي هغه چي ابوهريرة ﷺ يې له رسول الله ﷺ څخه روايت كړى راځي چي رسول الله وفرمايل: چي سليمان ﷺ وويل: قسم دى زه به نن شپه دخپلو اويابښځو كره ځم اوزماهريوه ښځه به يويوهلك وزېږوي اوهغه به بيادالله په لار كي مېړني مجاهدوي خو(انشآء الله ) يې ونه ويل اوله هغوى سره يې مباشرت وكړ له ګردوڅخه يوه هم اميندواره نشوه (اوماشوم يې پيدانشو) مګريوناقص مولودچي له يوې مېرمني څخه موجودشو زما دي په هغه ذات سوګندوي چي زماروح دده په واک كي دى كه يې انشاء الله ويلي واى نوګردبه دالله په لاركي (غښتلي) سپاره مجاهدين واى ، ابن كثيروايي چي ځيني مفسرينو ډېرآثار له سلفوڅخه رانقل كړي چي زياتره برخه اوياګرديې اسرائيلي روايات دي اوپه ډېروكي يې نامنلي اومنكرروايات شته اوامام فخر رازي بياله ابتلاء څخه چي پدې آيت كي يې يادونه شوي دهغه جسدي فتنه اخلي چي سليمان ﷺ سخت رنځور شوچي له ناروغي اوكمزوري څخه ګواكي په كرسى وغورځېدواوبيابيرته يې دصحت روغتياحالت ته رجوع وكړه ([1]) ﴿ قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَّا يَنبَغِي لِأَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِيٓ ﴾ وويل:(سليمان) اى زماربه ماته مغفرت ببښنه وكړه اوراكړه داسي لوى سلطنت چي نه ښائېږي (اونه وي) له بل هيچاسره ورروسته له ما(ترڅوزماپه نبوت دلالت وكړي) ﴿ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْوَهَّابُ ﴾ ببشكه همداته يې ( اى زماربه) ته ډېربښونكى وركونكى يې ﴿ فَسَخَّرْنَا لَهُ ٱلرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِۦ رُخَآءً حَيْثُ أَصَابَ ﴾ پس تابع كړموږدغه (سليمان) ته بادچي چلېدوپه حكم دده سره نرم نرم هرچېرته به چي دده اراده شوه (يعني دده دعامومنله) ﴿ وَٱلشَّيَٰطِينَ كُلَّ بَنَّآءٍ وَغَوَّاصٍ ﴾ (او مسخركړل موږده ته پېريان ) شيطان هر بناكونكى (دښولوړو عمارتونو) او غوټه وهونكي (په لويو سيندونو كي چي ملغلزي راوباسي) ﴿ وَءَاخَرِينَ مُقَرَّنِينَ فِي ٱلْأَصْفَادِ ﴾ اونور(سركښ شيطانان) تړلي شوي په ځنځيرانو كي (له جهته د كفره ددوى اوداچي دسليمان حكم يې نه مانو ) ﴿ هَٰذَا عَطَآؤُنَا فَٱمْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ دغه (سلطنت او تسخير) ببښنه زموږ دى پس احسان كوه (له هرچاسره ) يايې وساته (له خپل ځان سره ) يې له حسابه (يعني كه يې چاته وركوې كه يې نه وركوې په تاپسي حساب نشته ته دخپل واک خاونديې ﴿ وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴾ او ببشكه چي ده ته په نزد زموږ خامخاقرب دى (په دنياكي) اوښه ځاى دورتلو دى(په عقباكي) ﴿ وَٱذْكُرْ عَبْدَنَآ أَيُّوبَ ﴾ او يادكړه (اى محمده !) بنده

[1] هغه ضعيف روايات اواسرائيلي حكايات چي دسليمان عليه السلام دابتلاء په هكله راغلي ابن كثيروايي چي ترټولو نادر اودانكار وړيې هغه دى چي وايي يوه ورځ سليمان (عليه السلام) غوښتل چي بيت الخلاء ته لارشي نويې خپله ګوتمى مېرمني(جرادة) ته وركړه هغه ښځه چي ترګردو وربانديي ګرانه وه نوشيطان دسليمان په شكل هغې ته راغى او ورته يې وويل چي زماګوتمى راكړه هغې دسليمان ګمان پرې وكړ اوګوتمى يې وركړه كله چي شيطان په ګوته كړه نوګردانسانان پېريانان اوشيطانان يې تابع اواپل شول چي دغه روايت دابن ابي حاتم څخه شوى اودغه ټول باطل اوخرافات دي محققينوعلماوو لكه ابن كثير، فخررازي ، بيضاوي ، نسفي اونورو ردكړى دى. تفسيركبيروګوره ۳۲ /۲۰۸ همداسي زموږ كتاب (النبوة والانبيآء) ولوله.

زموږ ایوب دغه دریمه کیسه ده چي ددې سورت په اوږدو کي بیانېږي اضافت د(عبد) الله ته دتشریف اوتعظیم لپاره شوی دی یعني درپه یادکړه زموږ صالح بنده ایوب علیه السلام کوم چي په قسا قسم ابتلاګانو اخته شواوصبریې وکړ ﴿إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ أَنِّى مَسَّنِىَ ٱلشَّيْطَٰنُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ﴾ کله چي غږیې وکړ رب خپل ته چي بېشکه زه چي یم مس کړی یم شیطان په ایذاء اوتکلیف سره. مفسرین کرام وایې چي دغه دکړاونو نسبت یې شیطان ته په دې وکړ چي له الله ﷻ سره یې ادب وکړ که څه هم چي ګردشیان که خیروي اوکه شر دالله له لوري دی دایوب ﷺ مال اودولت له مینځه تللی وو، اولادونه اواهل یې ګرد مړه شوي اوپه بدن هم سخت رنځور شوي وو اواتلس کاله پدغه کړاوونو کي اوسېدو اوکیسه یې دانبیاء په سورت کي تېره شوي ده([1]) ﴿ٱرْكُضْ بِرِجْلِكَ﴾ ووهه (ځمکه) په پښه خپله (هغه یې ووهله اود صافو اوبو چینه راوخوتېده) ﴿هَٰذَا مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَشَرَابٌ﴾ دغه ده ځای دغسل یخ اواوبه دڅښلو(نویې غسل وکړ اودبدن ظاهري رنځوري یې ورکه شوه اوڅښاک یې وکړچي په تن کي دننه باطني رنځور ی یې له مینځه لاړه. ابوحیان وایې چي د ﴿مُغْتَسَلٌ﴾ معنادغه دغسل ځای اوبه دي ﴿وَشَرَابٌ﴾ معنا داچي دڅښلودي په غسل سره به دي ظاهري تن اوبدن روغ شي اوپه څښلوسره به دي باطني رنځونه دفع شي خوجمهور مفسرین بیاوایې چي دوه چینې ورته راوبهېدلې چي له یوې څخه یې وڅښل اوپه بله کي ولمبېدواوروغ رمټ شو([2]) ﴿وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ أَهْلَهُۥ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ﴾ اوومو بښل دغه ایوب ته اهل دده (په بیرته ژوندي کولو) اوپه مثل ددوی له هغوی سره. امام رازي وایې چي نژدې دادی چي الله هغه ته روغتیاوبښله اومال اودولت یې ورکړ اولادونه یې پیدااونسل یې زیات شو چي ترپخوایې څوچنده ډېرشو اوحسن بصري رحمه الله وایې چي هغه مړه شوي اولادونه یې الله تعالی بیرته ورته را ژوندي کړل([3]) ابوحیان وایې چي جمهورعلماء پدې دي چي الله تعالی هغه دده مړه خپلوان,اولادونه بیرته ورته راژوندي کړل له ناروغي څخه جوړشوهغه تیت پرک نعمتونه الله بیرته ورته راټول کړل([4]) ﴿رَحْمَةً مِّنَّا﴾ له جهته دمهرباني له خپله لوري (په سبب دصبراواخلاص دده) ﴿وَذِكْرَىٰ لِأُو۟لِى ٱلْأَلْبَٰبِ﴾ اولپاره دپنداخیستلو خاوندانو دصافوعقلونو ته ابن کثیروایې معناداچي پندی دهوښیارانو لپاره ترڅو وپوهېږي چي دصبروروستی عاقبت نېکمرغي اوخلاصون دی([5]) ﴿وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَٱضْرِب بِّهِۦ وَلَا تَحْنَثْ﴾ (او ورته وموویل چي) ونیسه په لاس خپل جارو (دډکو) پس ووهه په هغه جارو (دډکو سره (ښځه خپله) اومه حانث کوه ځان خپل. مفسرین کرام وایې چي ایوب ﷺ سوګنداخیستی ووچي که زه روغ شوم خپله ښځه به سل دُرې ووهم اوددې وهلوسبب داووچي دغي ښځي به دایوب ﷺ په ناروغي کي خدمت

---

([1]) البحرالمحیط ۴۰۱/۷
([2]) پورتني مرجع.
([3]) التفسیرالکبیر ۲۶ ۲۱۵
([4]) البحرالمحیط ۴۰۱/۷
([5]) مختصرابن کثیر ۲۰۵/۳

کاوواوکله چي ناروغي يې اوږده شوه نوهغې ته شيطان وسوسه وروا چوله چي ترڅوپوري به ته صبرکوې؟ هغه ايوب ﷺ ته راغله اوله ډېري خواشيني يې ورته وويل: ترڅو به همداسي ناروغ يې؟ نوده ته دهغې په ويناقهر اوکاوړ ورغی اوقسم يې وخوړ چي که روغ شوپه هغې به سل کوذارونه کوي نوالله ﷻ ورته وويل: چي هغه لوړه دي پرځای کړه يوجارو چي سل ډکي اوخاشې ولري هغه درواخله اوښځه دي يوځل ورباندي ووهه چي لوړه دي پرځای شي دغه دالله له لوري پرده اووده پرښځي رحمت ووځکه هغې په اخلاص اوصميميت دده د ناروغي په وخت کي چوپړواهواوده په ابتلاء يې صبرکاووداهم دهغه چالپاره چي له الله وېرېږي اوطاعت يې کوي د خلاصون لياره اودوتلوګودردی ځکه نوالله فرمايي: ﴿إِنَّا وَجَدْنَٰهُ صَابِرًا﴾ بېشکه موږ وموند دغه (ايوب) صبرناک (په سختيو) ﴿نِّعْمَ الْعَبْدُ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ﴾ . ښه بنده وودی بېشکه چي دی الله ته ډېر رجوع کونکی وو (په توبه ، انابت اوعبادت سره)

﴿وَاذْكُرْ عِبَٰدَنَآ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ أُو۟لِى الْأَيْدِى وَالْأَبْصَٰرِ﴾ (اويادکړه (ای محمده!) بندګان زما ابراهيم اواسحاق اويعقوب خاوندان دلاسونو او د سترګو) يعني ای محمده! دغه ستايلي انبياء په ياد اوپه هغوی پسي اقتداء وکړه کوم چي هغوی په عبادت کي غښتلي اوپه دين کي سترګور وو. طبري وايي معناداچي هغوی دالله په عبادت کي تکړه اودروښانه عقلونوخاوندان وو[1] ﴿إِنَّآ أَخْلَصْنَٰهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ﴾ (بېشکه موږ خالص کړي دي دوی په خالص خوی سره په ذکريادولودکور (دآخرت) يعني موږ دوی پرخانګړي خوی باندي نازولي چي هغه ددوی دنياته التفات نه کول اودتلپاتي ژوندپام اويادساتل دي مجاهد وايي: معناداچي دوی دآخرت لپاره عمل کوي له هغه پرته ورسره دهيڅ شي غم نشته[2] ﴿وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ﴾ او بېشکه دوی زموږ په نزدخامخاله غوره کړی شوو بهتروخلګو(دخپلي زماني) وو ﴿وَاذْكُرْ إِسْمَٰعِيلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ ۖ وَكُلٌّ مِّنَ الْأَخْيَارِ﴾ اويادکړه (ای محمده!) اسماعيل او اليسع او ذوالکفل اودغه ټول (مذکورين)ووله خاوندانودخيرڅخه (په خلګوکي) نوپردوی پسي په صبراوتحمل زغم کي اقتداء وکړه ﴿هَٰذَا ذِكْرٌ﴾ دغه (بيان دانبياؤواوسيرت د رسولانو) ښه ذکرددوی دی (په دنياکي اوشرف دی په آخرت کي چي تل ورباندي پند اخيستل کېږي ﴿وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَـَٔابٍ﴾ او بېشکه لپاره د متقيانو خامخاښه ځای دورتلودی (په آخرت کي) بيايي دهغوتفسيرداسي وفرمايو ﴿جَنَّٰتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْأَبْوَٰبُ﴾ جنتونه دي دهمېشه هستوګني پداسي حال کي چي تل پرانستلي وي دوی ته دروازې (دجنتونو) ددوی راتلوته انتظارباسي امام رازي رحمه الله وايي چي دجنتونومؤکل پرښتې چي کله مؤمنان ووينې دروازې به ورته پرانيزي اوسلام تحيه به ورته کوي اودوی به د پرښتوپه تشريفاتي ملګرتياجنتونوته په خورا ښکلي هيئت ننوزي

---

[1] تفسيرالطبري ۲۳/ ۱۰۹
[2] مختصرابن کثير ۳/ ۲۰۲

([1]) ﴿ مُتَّكِـِٔينَ فِيهَا ﴾ (تکيه وهلي (به ناست وي ) په دغو (جنتونو ) کي ) يعني دوی به په خوراغوره اوښايسته (صوفو )پستو څوکيوباندي تکيه لګولي وي ﴿ يَدْعُونَ فِيهَا بِفَـٰكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ ﴾ چې غواړي به (دغه جنتيان) په هغوکي مېوې ډېري اوڅښزونه دڅښلو. (لکه چي د پاچهانو دودوي. ابن کثيروايې هرڅومره چي وغواړي وبه يې مومي اوله هره څښزه چي يې غواړي د جنت خدمتګاران به يې ورته راوړي .صاوي وايې چي دايوازي دفاکهې يادونه يې وکړه له دې کبله چي ګرد جنتي خوراکونه به دتلذذ اوفاکهې لپاره خوړل کېږي مقصد به مړښت اوتغذي نه وي څکه چي په جنت کي هڅولوږه (تنده) نشته ([2]) ﴿ وَعِندَهُمْ قَـٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ أَتْرَابٌ ﴾ اووي به په نزددوی ښځي بندونکي دسترګو (مېړوخپلوته همځولي به وي (پخپل مينځ اويا له خاوندانوسره ) ﴿ هَـٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِيَوْمِ ٱلْحِسَابِ ﴾ (داهغه څه دي چي وعده يې کول کېده (له تاسره په دنياکي لپاره د(خوښي) د ورځي د حساب ﴿ إِنَّ هَـٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُۥ مِن نَّفَادٍ ﴾

ببشکه چي دغه خامخازموږ داسي رزق دی چي نشته ده لره خلاصېدل. په الظلال کي ليکي چي دغه په دوومتقابلو منظرونوسره ننداره ده چي له هره پلوه سره متقابل وي که يې مجموعي جوړښت واخلي اوکه يې داجزاوو. دمتقينو يو منظردی چي ﴿ لَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴾ اوبل دګمراهانوسر غړونکو دی چي ﴿ لَشَرَّ مَـَٔابٍ ﴾ لومړني خلک به په جنتونوکي وي هغه چي ﴿ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ ٱلْأَبْوَٰبُ ﴾ وي اوهلته به تکيه وهلي دهرډول خوړو اوفاکهې څکونکي اوله حورو سره چي ﴿ قَـٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ أَتْرَابٌ ﴾ دي مجلسونه کوي اوداهسي نعمتونه دي چي تلپاتي اوخلاصېدل نلري ([3])

اللہ تعالی فرمايي:

﴿ هَـٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطَّـٰغِينَ لَشَرَّ مَـَٔابٍ ﴿٥٥﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ ﴿٥٦﴾ هَـٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ ﴿٥٧﴾ وَءَاخَرُ مِن شَكْلِهِۦٓ أَزْوَٰجٌ ﴿٥٨﴾ هَـٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ ۖ لَا مَرْحَبًۢا بِهِمْ ۚ إِنَّهُمْ صَالُوا۟ ٱلنَّارِ ﴿٥٩﴾ قَالُوا۟ بَلْ أَنتُمْ لَا مَرْحَبًۢا بِكُمْ ۖ أَنتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا ۖ فَبِئْسَ ٱلْقَرَارُ ﴿٦٠﴾ قَالُوا۟ رَبَّنَا مَن قَدَّمَ لَنَا هَـٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِى ٱلنَّارِ ﴿٦١﴾ وَقَالُوا۟ مَا لَنَا لَا نَرَىٰ رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُم مِّنَ ٱلْأَشْرَارِ ﴿٦٢﴾ أَتَّخَذْنَـٰهُمْ سِخْرِيًّا أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ ٱلْأَبْصَـٰرُ ﴿٦٣﴾ إِنَّ ذَٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ ٱلنَّارِ ﴿٦٤﴾ قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ مُنذِرٌ ۖ وَمَا مِنْ إِلَـٰهٍ إِلَّا ٱللَّهُ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّارُ ﴿٦٥﴾ رَبُّ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ٱلْعَزِيزُ ٱلْغَفَّـٰرُ ﴿٦٦﴾ قُلْ هُوَ نَبَؤٌا۟ عَظِيمٌ ﴿٦٧﴾ أَنتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُونَ ﴿٦٨﴾ مَا كَانَ لِىَ مِنْ عِلْمٍۭ بِٱلْمَلَإِ ٱلْأَعْلَىٰٓ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴿٦٩﴾ إِن يُوحَىٰٓ إِلَىَّ إِلَّآ أَنَّمَآ أَنَا۠ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٧٠﴾ إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَـٰٓئِكَةِ

---

([1]) التفسير الكبير ۲۲ / ۲۲۶

([2]) حاشية الصاوي ۳ / ۳۶۷

([3]) فى ظلال القرآن

إِنِّي خَٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن طِينٍ ﴿٧١﴾ فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِى فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَٰجِدِينَ ﴿٧٢﴾ فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴿٧٣﴾ إِلَّآ إِبْلِيسَ ٱسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿٧٤﴾ قَالَ يَٰٓإِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَن تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَىَّ ۖ أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ ٱلْعَالِينَ ﴿٧٥﴾ قَالَ أَنَا۠ خَيْرٌ مِّنْهُ ۖ خَلَقْتَنِى مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُۥ مِن طِينٍ ﴿٧٦﴾ قَالَ فَٱخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴿٧٧﴾ وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِىٓ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلدِّينِ ﴿٧٨﴾ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِىٓ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿٧٩﴾ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ ٱلْمُنظَرِينَ ﴿٨٠﴾ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْوَقْتِ ٱلْمَعْلُومِ ﴿٨١﴾ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٢﴾ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴿٨٣﴾ قَالَ فَٱلْحَقُّ وَٱلْحَقَّ أَقُولُ ﴿٨٤﴾ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكَ وَمِمَّن تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٥﴾ قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُتَكَلِّفِينَ ﴿٨٦﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ﴿٨٧﴾ وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُۥ بَعْدَ حِينٍۭ ﴿٨٨﴾ ﴾ ص: ۵۵ - ۸۸

**مناسبت:**

کله چي الله تعالی دنېکمرغه متقیانو برخه لیک بیان کړ ورپسې یې دبدمرغه مجرمانو سرنوشت راوړ اوبیایې درسول اللهﷺ په ربنتوني رسالت باندي ځیني دلائل ذکرکړل اودسورت پای یې دآدم علیه السلام اوابلیس لعین په کیسه وتاکل چي څرنګه ابلیس آدم ته له سجدې څخه ممانعت وکړ ترڅوانسانانوته ورپه یادکړي چي ددغه ملعون له وسوسو ، چلونو اودسیسو څخه ځانونه وژغوري

**لغتونه:**

(غساق) هغه نونه چي دکفارو له غوښو څخه راوزي اوبدبويې لري (زاغت) میلان وکړله (زیغ ) یعني میلان څخه اخیستل شوی (سخریا) دسین په زېرسره استهزاء اوملندوته وایې (مقتحم) په زور سره په کړاوونو ګډېدل (سوّیته) په بشپړه توګه دخلقت تکمیل مي کړی (العالین) متکبرینو اومتجبرینوته وایې (رجیم) په ستورو ويشتل شوی اورټلی.

**تفسیر:**

﴿ هَٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطَّٰغِينَ لَشَرَّ مَـَٔابٍ ﴾ (دغه بیان حال دمطیعانو و ) او بېشکه خامخا لپاره د سرکښانو خامخا بده مرجع ده (هذا ) د محذوف مبتداء لپاره خبردی چي تقدیریې داسي کېږي (الأمرهذا ) او دغه لکه چي وایې (امابعد ) د غسي دي نوفرمایې چي دسرکښانو لپاره بده مرجع دی او تفسیریې بیا داسي فرمایې:

﴿ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ ﴾ (چي هغه ) دوزخ دی چي ننوزي دوی په هغه کي ، پس بده بستره ده (دادوزخ دوی لره ابن جزي وایې کله چي الله دجنتیانو ذکرپای ته ورسوو ورپسې یې وفرمایل(هذا ) او بیایې له سره ددوزخیانو یادونه پیل کړه مقصد له سرکښانو څخه کافران دي[1]) ﴿ هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ ﴾ دغه

[1] التسهيل في علوم التنزيل ۳/ ۱۸۷

(دردناک عذاب دی دکفارو) پس ودي څکي دااېشېدلي اوبه اود دوزخيانوبدبويه) ژوي (ويني اونوونه) طبري وايي په آيت شريف کي تقديم اوتاخيرشته يعني دغه اېشېدلي اوبه اوددوزخيانودجراحاتوژوي اونوونه دي نودوی دي وڅکي ﴿ حَمِيمٌ ﴾ اېشېدلي اوبه ﴿ وَغَسَّاقٌ ﴾ ددوزخيانودپرهارژوي اوويني ته وايي (۱)﴿ وَءَاخَرُ مِن شَكْلِهِۦٓ أَزْوَٰجٌ ﴾ اوځه بل (قسم عذاب) له قسمه دهغه تېرعذاب رازراز قسمونه (لکه زمهرير، سموم اودزقوم خوړل اونوربياوروسته دهغه څه حکايت کوي کله چي دوزخ ته له ورتلووروسته دکفارومشرانوته ويل کېږي ﴿ هَٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ ﴾ دغه يوه ټولي ده دتابعانوپه سختي سره ننوتونکي ده له تاسي سره ،نه دي وي خوشالي ځای دآرامي دوی ته (لکه څنګه چي یې له تاسي سره په جهل اوګمراهي کي ملګرتياکوله همداسي درسره په دوزخ کي ملګري شول ﴿ إِنَّهُمْ صَالُوا۟ ٱلنَّارِ ﴾ بېشکه چي دوی ننوتونکي دي اورته (لکه چي تاسي ننوتلي . امام رازي رحمه الله وايي چي په جهنم ګمارل شوي پرښتې به دکفارو مشرانوته دغه ويناکوي اوداچي ورته وايي ﴿ لَا مَرْحَبًا ﴾ دغه ښېراده څکه عربان مېلمنوته دراتلوپه وخت ښه راغلاست په مرحباسره وايي يعني پراخ اوارت ځای ته راغلاست اوکله چي(لا) ورباندي داخله شي نوداسي معناورکوي (چي مخ مو پرته شه !) الله دي کوم ارت ځای در نکړي) (۲)﴿ قَالُوا۟ بَلْ أَنتُمْ لَا مَرْحَبًۢا بِكُمْ ﴾ وايي (دغه تابعان متبوعانوته) بلکه تاسي چي یی ! نه دي وي خوشحالي پرتاسي . مفسرين کرام وايي چي کله تابعان دوزخ ته ورسي نوغټان متبوعان به ورته وايي ﴿ لَا مَرْحَبًۢا بِكُمْ ﴾ دغه د دوزخيانو تحيه ده لکه چي الله ﷻ فرمايي ﴿ كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا ﴾(الاعراف ۳۸)اوپدې وخت هغه ورننوتونکی بيا دوی ته وايي ﴿ بَلْ أَنتُمْ لَا مَرْحَبًۢا بِكُمْ ﴾ اودغه لکه هغه شاعرچي وايي: (تحية بينهم ضرب وجيع) د دوی سلام عليک دردناک ټکول وهل دي) همداسي به دوزخيان دتحيې اوسلام پرځای يوپه بل باندي لعنت وايي او ورته ښکنځل به کوي اوبيابه تابعان خپلوسردارانوته وايي ﴿ أَنتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا ۖ فَبِئْسَ ٱلْقَرَارُ ﴾ تاسي را وړاندي کړی دی دغه (عذاب ) پس بدقرار ګاه دی ) يعني تاسوزموږ د ګمراهي سبب وی نوبدځای دی دغه اوراو هستوګنځی زموږ اوتاسولپاره ﴿ قَالُوا۟ رَبَّنَا مَن قَدَّمَ لَنَا هَٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِى ٱلنَّارِ ﴾ وبه وايي (تابعان) ای زموږ ربه هرچاچي ړومبی تياره کړي ده دغه لاره (د کفر) پس ورته په اورکي دوچنده عذاب زيات کړه (۳) دغه وينالکه هغه داسي ده چي ﴿ رَبَّنَا هَٰٓؤُلَآءِ أَضَلُّونَا فَـَٔاتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ ٱلنَّارِ ۖ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ

---

(۱) تفسيرالطبري ۲۳/ ۱۱۳

(۲) تفسير کبير ۲۲/ ۲۲۲

(۳) البيضاوي ۲/ ۱۵۱

﴿ وَلَٰكِن لَّا تَعۡلَمُونَ ﴾ (الاعراف ۳۸) (ضعف) يعني دوچنده (۱) ﴿ وَقَالُوا مَا لَنَا لَا نَرَىٰ رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُم مِّنَ الْأَشْرَارِ ﴾ وبه وايي دكفارومشركانوغټان اود ګمراهي پېشوايان ) څه مانع دی موږ ته چي هغه سړي نه وينو چي وموږ شمېرلي موږ له اشرارو څخه (په دنياكي مقصد به يې مسلمانان وي. ابن عباس ﷺ وايې چي مقصدبه درسول الله دملګرو اصحابانو وي ابوجهل به وايې: چېرته دی بلال ، چېرته دی صهيب ، چېرته دی عمار؟ هغوی به په فردوس جنت كي وي! افسوس د ابوجهل بېوزله په حال دهغه زوی عكرمه ﷺ مسلمان شو لوربې (جويرية ﷺ ) مسلمانه شوه مور يې مسلمانه شوه ورور يې مسلمان شوخوهغه كافرپاتي شو(!) (۲)ابن كثير وايې چي دغه دكفاروله حال څخه په دوزخ كي اخباردی دوی هغه كسان هلته په اوركي نه ويني كوم چي په دنياكي به يې په ضلالت اوګمراهي كي ګڼل (چي مسلمانان وو )ابوجهل به وايې: ولي بلال ، عماراوصهيب نه وينم اوفلانی فلانی چېرته دي؟ دغه يوازي يومثال دی دټولو كفاروبه همدغه حال وي دوی باور درلودچي مؤمنان به اورته لوېږي اوكله چي پخپله كفار اورته ولوېږي نوبه مسلمانان هلته نه مومي (۳) اوبيابه وايې ﴿ أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ ﴾ آيانيولي مووودوی په مسخروسره ياكه كږې شوي دي له دوی څخه سترګي زموږ (چي په دوزخ كي شته خونه يې وينو. بيضاوي وايې چي دغه دوی پخپلو ځانونو ملامتي وايې چي ولي موږ په هغوی مسخرې كولې ؟ هغوی خودادي اوس دلته په دوزخ كي نشته اويازموږسترګي ترې چپې شوي دي اونه يې وينو(۴) الله ﷻ فرمايي: ﴿ إِنَّ ذَٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ ﴾ (بېشكه دغه (مذكوره كيسه ددوزخيانو) خامخاربښتياده جګړه كول ددوزخيانوپه خپل مينځ كي ) يعني ای محمده دغه د دوزخيانووېناوي اوجګړې خامخا كېدونكي دي موږ تاته اوس لاخبر دركوو چي دابه كېږي امام رازي ﷫ وايې داچي الله ددوی دغه خبري اتري جګړه كول وبلل سبب يې دادی چي: مشران به اتباعو ته وايې ﴿ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ ﴾ اواتباع به بيا خپلو غټانوته وايې ﴿ بَلْ أَنتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ ﴾ اودغه وېناوي دجګړې اوشخړو له جملې څخه دي (۵) ﴿ قُلْ إِنَّمَا أَنَا مُنذِرٌ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) بېشكه هم داخبره ده چي زه وېرونكی يم (له عذابه دغه درسالت په اهميت خرګندولو شروع اودوحدانيت ، معاداوجزاء اثبات دی يعني ای محمده ! دغومشركانوته و وايه چي زه درب العالمين له لوري تاسي ته له عذابه وېرونكی رااستول شوی يم نه ساحر نه كاهن او نه شاعريم ﴿ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴾ اونشته هيڅ بل حق معبود بې له الله چي يو دی هرقهركونكی (ذات ) دی ﴿ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ﴾ رب د آسمانونو اودځمكي اودهغو ټولو شيانودی چي په مينځ ددوی كي دی (له خلائقو اوعجائبو رب

(۱) التسهيل في علوم التنزيل .
(۲) القرطبي ۱۵/ ۲۲۴
(۳) مختصرابن كثير ۳/ ۲۰۷
(۴) البيضاوي ۲/ ۱۵۱
(۵) التفسيرالكبير ۲۶/ ۲۲۳

دي په ايجادولواواعدام كولو ) ﴿ ٱلْعَزِيزُ ٱلْغَفَّـٰرُ ﴾ بنه غالب قوي دى (چي څوک ورباندي برلاسى نلري) بنه ببنبونكى دى (دګناهونو دبندګانو چاته چي يې اراده وشي . امام رازي وايې كله چي يې ﴿ ٱلْقَهَّارُ ﴾ ذكركړنودغه په ترهيب اوتخويف خبرداری وركاوو ورپسې يې هغه صفت وفرمايل چي دهيلي، اميد اوترغيب څرګندونه كوي اودرې صفتونه يې چي هغه ﴿ رَبُّ ٱلْعَزِيزُ ٱلْغَفَّـٰرُ ﴾ دى راوړل چي رب دروزني اواحسان خبرداری وركوي عزيزداچي په هرڅه قادر اوتوانادى اوغفاربياد ترغيب وركولو احساس پيداكوي كه چېري انسان اوياكاله په كفر كي تېركړي اوبياالله ﷻ ته توبه ګارشي نوالله ﷻ به دهغه ګردګناهونه وروبښي او دګناهګارانوله نوم ليک څخه به يې نوم وتوړي او دابرارونېكانوپه كتاركي به يې ودروي (١) ﴿ قُلْ هُوَ نَبَؤٌا۟ عَظِيمٌ أَنتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُونَ ﴾ ووايه (اى محمده دوى ته ) دغه (قرآن) ډېره لويه خبره ده چي تاسي له دې نه مخ ګرزونكي يى (چي په قدريې نه پوهېږى او پكي سوچ نه كوى ) ﴿ مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍۭ بِٱلْمَلَإِ ٱلْأَعْلَىٰٓ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴾ نشته مالره هيڅ قدرعلم پوهه په هغه ټولي ډېرپورته لوى (دملائكو ) كله چي سره جګړې يې كولې (په شان دآدم ﷺ كي يې له وحى څخه). ابن جزي وايې چي مقصدلته (٢)درسول الله په رسالت باندي دليل راوړل دي چي هغه دداسي چارواخبارفرمايې كوم چي پخوايې ورباندي علم نه وواود ملائكوپه جګړه كولوكي هغه دآدم ﷺ د خلقت په كيسه كي دپرښتووپناته اشاره ده كله چي الله ورته وفرمايل: ﴿ إِنِّي جَاعِلٌ فِي ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً ﴾(البقرة ٣٠) لكه چي په څوځايونودقرآنكريم كي يې كيسه راغلي ده(٣) ﴿ إِن يُوحَىٰٓ إِلَيَّ إِلَّآ أَنَّمَآ أَنَا۠ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ وحى نه كوله كېږي ماته مګرددې چي بېشكه همداخبره ده چي زه ښكاره وېرونكى يم (له عذابه ورپسې الله ﷻ دآدم عليه السلام كيسه داسي بيانوي ﴿ إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَـٰٓئِكَةِ إِنِّي خَـٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن طِينٍ ﴾ (يادكړه) كله چي وفرمايل ستارب پرښتوته چي بېشكه زه پيداكونكى يم ديو بشر (آدم) له ختې څخه ﴿ فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَـٰجِدِينَ ﴾ پس كله چي برابركړماهغه اوپوكړ ماپه هغه (قالب) كي له روح خپله پس پرېوزئ (تاسي ټول اى پرښتوتعظيمًا اواكرامًا ) ده ته سجده كونكي ؛ قرطبي وايې دغه سجده دتحيې اوتعظيم لپاره دعبادت سجده نه ده (٤) ﴿ فَسَجَدَ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴾ پس سجده وكړه ملائكو ټولو دوى ګردو(كلهم) لپاره دتعظيم دهغه او امتثال دامردالله) ﴿ إِلَّآ إِبْلِيسَ ٱسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ مګرابليس (چي سجده يې ونكړه ) اولويې يې وكړه او وودوى له كافرانو ، ابن كثيروايې چي پرښتو دالله حكم ومنلوابليس ونه

(١) التفسيرالكبير ٢٢٤/٢٦

(٢) التسهيل في علوم التنزيل ١٨٩/٣

(٣)القرطبي ٢٢٧/١٥

(٤)القرطبي ٢٢٧/١٥

منلوابليس دپرښتوله جنس څخه نه وو بلکه دشيطانانوپېريانانوله جنس څخه وو(۱) نودهغه فطرت اوطبيعت له سجده کولو څخه ډډه اوکړه کوله اوله الله سره يې پدې هکله شخړه وکړه اوداسي دعوه يې وکړه چي هغه ترآدم غوره دی نوکافرشواوالله هغه دخپل رحمت له درباره وشاړو ﴿ قَالَ يَٰٓإِبۡلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَن تَسۡجُدَ لِمَا خَلَقۡتُ بِيَدَيَّۖ ﴾ وفرمايل الله ای ابليسه څه شي منع کړی يې ته له دې نه چي سجده وکړې (ته) هغه څېزته چي ماپيداکړی دی په دواړو يدو (بلاکيفه) خپلو يعني ولي دي هغه ته سجده ونکړه کوم چي ما پخپله هغه يې له مور اوپلاره پيداکړ؟ قرطبي وايې چي دآدم عليه السلام دپيدا ينبت نسبت يې خان ته دهغه دتکريم له سببه وکړهسي خو دګردوشيانوپيداکونکی الله تعالی دی دغه نسبت لکه هغه نور نسبتونه دغسي دي چي دتعظيم لپاره پاک الله ته شوي دي لکه بيت الله ، ناقة الله اودغسي يې دروح نسبت هم خان ته وفرمايو چي دآدم عليه السلام تشريف وښيي ﴿ أَسۡتَكۡبَرۡتَ أَمۡ كُنتَ مِنَ ٱلۡعَالِينَ ﴾ آيا تکبردي وکړ(اوس) ياکه ته يې له لويانو (متکبرينو څخه له پخواچي سجده دي ونکړه ؟ دغه يې د توبيخ په توګه ورته وويل ﴿ قَالَ أَنَا۠ خَيۡرٞ مِّنۡهُ ﴾ وويل ابليس په ځواب کي) زه غوره يم له دغه (آدم) څخه ﴿ خَلَقۡتَنِي مِن نَّارٖ وَخَلَقۡتَهُۥ مِن طِينٖ ﴾ زه دي له اوره پيداکړی اودغه (آدم) دي له خټوپيداکړی دی. اورتر خټه افضل دي نوځرنګه هغه چي افضل اوغوره دی هغه ته چي غوره نه دی سجده وکړي ؟ ﴿ قَالَ فَٱخۡرُجۡ مِنۡهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٞ ﴾ وفرمايل (الله) پس ووزه له جنته پس بېشکه ته رټلی شوی يې (له هرخيراوکرامته ) ﴿ وَإِنَّ عَلَيۡكَ لَعۡنَتِيٓ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ﴾ اوبېشکه پرتادی لعنت زماتروړځي دجزا پوري (اوبيابه درته ورسېږي هغه عذاب چي تردغه لعنت خوراسخت اوبد دی) ﴿ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرۡنِيٓ إِلَىٰ يَوۡمِ يُبۡعَثُونَ ﴾ وويل ابليس ای زماربه پس مهلت راکړه ماته ترهغي ورځي پوري چي مړي پورته کولی شي (له قبرونو. ابوالسعود وايې چي دغه يې ددې لپاره غوښتنه وکړه چي دبنيادم دغولولو اوتېر ايستلولپاره وخت ومومي او خپل کسات ځني واخلي اويو مخ ايزه له مرګه ځان خلاص کړي څکه له بعث څخه وروسته خوبيا هېڅ مرګ نشته الله ﷻ ورته ځواب داسي ورکړل چي ترلومړۍ صور شپېلۍ پوري وخت لرې نه دومره چي ته يې دبعث تر ورځي پوري غوښتنه کوې(۲) ﴿ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ ٱلۡمُنظَرِينَ ﴾ (الله) وفرمايل پس بېشکه ته يې (ای ابليسه !) له مهلت ورکړشويو څخه تروړځي دوخت معلوم پوري (چي لومړۍ نفخه ده کله چي خلګ مړه کېږي ستاکارونه به هم پای ته رسېږي ﴿ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡوَقۡتِ ٱلۡمَعۡلُومِ ۝ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغۡوِيَنَّهُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴾ وويل (ابليس پس قسم دی په عزت ستاچي خامخاګمراهان به کړم هرومرو دوی ټول ﴿ إِلَّا عِبَادَكَ مِنۡهُمُ ٱلۡمُخۡلَصِينَ ﴾

---

(۱) دغه سمه خبره ده چي ابليس له ملائکو څخه نه دی اوپدې هکله دحسن بصري ويناهم پخواتېره شوي ده چي وايې ابليس دسترګو په رپ کي هم له پرښتو څخه نه دی شوی داهغه ويناده چي زړه وربانديي آرام مومي او خوښېږي اوپدې باندي آيتونه هم دلالت کوي چي الله فرمايې (كان من الجن ففسق عن أمرربه ) وګوره النبوة والانبيا ۱۰/۱۲۸

(۲) تفسيرابی السعود ۴/ ۲۹۸

مگرهغه بندګان ستا چي خلاص کړی شوي دي (تادخپل عبادت لپاره خالص کړي اوله ماخخه دي ژغورلي دي) ﴿ قَالَ فَٱلْحَقُّ وَٱلْحَقَّ أَقُولُ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكَ وَمِمَّن تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ (نوو فرمایل الله چي پس حقه خبره همداده اوحقه خبره زه وایم خامخادک به کړم هرومرو دوزخ له تانه او هغه چانه چي ستامتابعت يې کړی دی له دغو (انسانانو) نه له ټولو څخه) یعني الله ﷻ په حق قسم کوي او وایې چي زه له حقه پرته بله خبره نه وایم پرتا او پلویانو به دي دوزخ ډک کړم سدي وایې چي دغه قسم دی چي الله ﷻ یې اخلي[1] اوداچي ﴿ وَٱلْحَقَّ أَقُولُ ﴾ دقسم دتاکید لپاره اعتراضیه جمله ده ﴿ قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُتَكَلِّفِينَ ﴾ ووایه (ای محمده ! دوی ته) نه غواړم زه له تاسي پدې (قرآن، تبلیغ د رسالت) خان ته هیڅ اجراونه یم زه له تکلیف کونکو نه (په جوړولو دقرآن کي له ځانه او یادنبوت په دعوی کولو سره) ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ﴾ نه دی دغه (قرآن) مګرپند دی دعالمیانو لپاره (چي انسانان پېریانان اوهوښیاران دي) ﴿ وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُۥ بَعْدَ حِينٍۭ ﴾ او خامخاعالمان به شي هرومرو په خبر (دصدق) ددې (قرآن) لږڅه وروسته (پس له یوې مودې چي د قیامت ورځ ده دغه وعیداوتهدید دی حسن بصري رحمه الله وایې ای بنیآدمه دمرګ په وخت کي به یقیناً خبرشي !

بلاغت:

پدې آیتونو کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

۱ - دمقابلې صنعت دمؤمنانو اومفسدانو اومتقینو اوفاجرانو ترمینځ لکه چي فرمایې ﴿ أَمْ نَجْعَلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ كَٱلْمُفْسِدِينَ فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ ٱلْمُتَّقِينَ كَٱلْفُجَّارِ ﴾ اودغه دبدیع له خورا ښکلیو باریکوډولونو څخه دی.

۲ -کنایه چي فرمایې ﴿ فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِٱلسُّوقِ وَٱلْأَعْنَاقِ ﴾ دلته یې له ذبح کولو اوحلالولو څخه په مسح تعبیرورفرمایو اوبلیغه کنایه ګڼل کېږي.

۳ - دطباق صنعت چي د ﴿ فَٱمْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ ترمینځ راغلی ځکه ددې معناداچي درسره حساب نشته ورېې کړه هرچاته چي دي خوښه شي اومه یې ورکوه هرچاته چي دي خوښه شي.

۴ - دادب مراعات کول کله چي پدې کلام کي راغي ﴿ أَنِّى مَسَّنِىَ ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾ دلته یې دضررنسبت شیطان ته وکړ که څه هم خیراوشر دواړه دالله له لوري دی مقصد یې دادب مراعات کول دي.

---

[1] مختصرابن کثیر ۳/ ۲۰۹

۵ - تصریحي استعاره چي فرمايي: ﴿ أُوْلِي ٱلۡأَيۡدِي وَٱلۡأَبۡصَٰرِ ﴾ دلته يې لاسونه دقوت لپاره استعاره اوسترګي يې ددیني بصیرت لپاره استعاره کړي دي.

۶ - ښایسته اوښکلي مقابله پدې کلام کي ﴿ هَٰذَا ذِكۡرٞۚ وَإِنَّ لِلۡمُتَّقِينَ لَحُسۡنَ مَـَٔابٖ جَنَّٰتِ عَدۡنٖ مُّفَتَّحَةٗ لَّهُمُ ٱلۡأَبۡوَٰبُ ﴾ اوبیایې مقابله په دې ویناکوي چي ﴿ هَٰذَاۚ وَإِنَّ لِلطَّٰغِينَ لَشَرَّ مَـَٔابٖ جَهَنَّمَ يَصۡلَوۡنَهَا فَبِئۡسَ ٱلۡمِهَادُ ﴾ دا څومره خوندوره اوزړه راښکونکی انځوراوتصویردی ؟.

۷ - په دوومؤکداتوسره تاکیدراوړل چي فرمايي: ﴿ فَسَجَدَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمۡ أَجۡمَعُونَ ﴾ لومړی یې د(کل) په لفظ سره اوبیاپه (اجمعون) تاکید.

۸ - دفواصلومراعات کول چي دغه دقرآنکریم له خصوصیتونوڅخه يو خصوصیت دی لکه ﴿ وَقَالُواْ مَا لَنَا لَا نَرَىٰ رِجَالٗا كُنَّا نَعُدُّهُم مِّنَ ٱلۡأَشۡرَارِ أَتَّخَذۡنَٰهُمۡ سِخۡرِيًّا أَمۡ زَاغَتۡ عَنۡهُمُ ٱلۡأَبۡصَٰرُ إِنَّ ذَٰلِكَ لَحَقّٞ تَخَاصُمُ أَهۡلِ ٱلنَّارِ ﴾ نودغه غوندي ښایسته بیان اوخوندورخوږ آهنګ چي په زړه کي داسي اغېزپرېباسي لکه روح په تن کي اوزمادي په الله قسم وي کله چي زه د قرآنکریم تلاوت کوم په سینه کي دخپل زړه اهتزاز احساسوم کله چي دغه خوږ معنالرونکی کلام په غوږونو اورم اوکله کله خولاداسي هم وي چي ناخبره یوه بله خواله خوښي څخه ښکېږم لکه چي دنغمو مینان اومینه لرونکي خلګ دهغو په اورېدلو ښکېږي اودغه بل څه نه دي بلکه دهغه دبیان جمال اوښکلاده اورسول الله ﷺ په ځای فرمایلي دي چي: ( ان من البیان لسحراً )

دالله جل جلاله په مرسته د(ص) سورت تفسیربشپړشو.

(ولله الحمدوالمنة)

## دالزمرسورت مکي او پنځه اويا آيتونه لري:

دسورت په وړاندي:

دالزمرسورت مکي اولکه دنورومکي سورتونوپه شان دتوحيدله عقيدي څخه غږېږي دغه موضوع پدي سورت کي دومره په تفصيل بيان شوي چي نژدې ته به وادغه يې محوردی ځکه چي عقيده دايمان بنسټ دی اوهرنېک عمل په همدغه توحيد بناکېږي.

دسورت پيل دقرآنکريم له ستري معجزې څخه کېږي هغه چي رسول الله ته ورکول شوی اوتل ترتله به باقي وي سورت رسول الله ﷺ ته په دين کي داخلاص اودالله دتنزيه مارېينه اوحکم کوي چي له نورومخلوقاتوسره له مشابهت څخه الله منزه اوپاک دی بيادمشرکانوهغه اشتباه چي دبتانوعبادت کوي اوهغوی دځان شفاعت کونکي ګڼي رااخلي اوپه څرګنداوقاطع دليل سره يې ردوي ، ورپسې دربّ العلمين په وحدانيت سره دليلونه راوړي چي څرنګه يې آسمانونه اوځمکي پيداکړي ؟ اوشپه ، ورځ رادبره کوي لمراوسپوږمۍ راخېژوي اوانسان دمېندوپه ارحامو،پيلاراوګېډوپه تاريکيوکي پيداکوي اودغه ټول دالله په قدرت اووحدانيت باندي څرګنددليلونه دي

سورت دعقيدې په موضوع ښه زياته رڼاچوي اوبيادخسران اوتاوان منظربيانوي کوم چي کفار اومجرمين به دقيامت په ورځ ورسره لاس اوګرېوان وي هلته چي قسماقسم عذابونه به ځکي اوداور په سيوري کي به لاندي باندي نغښتي وي.

بياسورت يومثال راوړي چي هغه څوک چي يوازي ديوه الله عبادت کوي اوهغه چي زيات معبودان لري هسې معبودان چي نه اوري نهويني دمشرک مثال دهغه مريي دی چي ګڼ بدخويه باداران لري اوتل يوله بله سره په جګړه وي اوهغه بنده چي يوبادار لري ددوی ترمنځ څومره زيات توپيرشته ؟ ورپسې دمشرکانو روحي ستونزي ښيي چي کله دالله ﷻ توحيدواوري نوسره تريوشي اوزړونه يې په تنګ شي خوکله چي دطاغوتانواوبتانويادونه کېږي سره وغوړېږي اوخندني شي همداسي آيتونه پرله پسې بندګان دالله لوري ته درجوع کولولپاره رابولي ترپخواله دې چي نابيره دمرګ قاصد ورته راشي اويانا ګمانه کوم عذابورباندي راپرېوزي اوهلته بيادوی توبه کاږي اويا پښېماني څرګندوي کله چي توبه اوپښېماني ګټه نه رسوي.

دسورت پای دصورشپېلۍ دنفختا لصعق په يادونه کېږي چي ورپسې به بيادبعث اونشور لپاره نفخة البعث وي اوبيابه دقيامت سختي اوکړاوونه ، دغه دحشراکبرورځ ده هلته چي ابرارمتقيان به ډلي ډلي جنت ته درومي اواشرارمجرمين به بيايه ډلوډلودوزخ ته بېول کېږي يوډېردروندا او هيبتناک منظربه وي چي انبيآء ، صديقين، ابرار، شهدآء اوګردموجودات به الله تبارک وتعالی ته په حمداوثنا په ډېره عاجزي اوخشوع درېږي

تسميه اونومول يې:

دغه سورت ته ځکه سورت الزمروايې چي الله دجنتيانوښکمرغه کسانو (زُمَره) اوهمداسي ددوزخيانوبدمرغانوټولۍ چي لومړۍ ډله به په خوراعزت اجلال اواکرام کي اودوهمه به په سپکاوي ، ذلت اوبدانجام کي وي پکي يادکړي دي

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿تَنزِيلُ الْكِتَابِ مِنَ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿١﴾ إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللَّهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّينَ ﴿٢﴾ أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ ۚ وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِي مَا هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ كَاذِبٌ كَفَّارٌ ﴿٣﴾ لَّوْ أَرَادَ اللَّهُ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفَىٰ مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ سُبْحَانَهُ ۖ هُوَ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿٤﴾ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ۖ يُكَوِّرُ اللَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى اللَّيْلِ ۖ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ أَلَا هُوَ الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ ﴿٥﴾ خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ ۚ يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ خَلْقًا مِّن بَعْدِ خَلْقٍ فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ﴿٦﴾ إِن تَكْفُرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنكُمْ ۖ وَلَا يَرْضَىٰ لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ ۖ وَإِن تَشْكُرُوا يَرْضَهُ لَكُمْ ۗ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۗ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۚ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٧﴾ ۞ وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَا رَبَّهُ مُنِيبًا إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا خَوَّلَهُ نِعْمَةً مِّنْهُ نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُو إِلَيْهِ مِن قَبْلُ وَجَعَلَ لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلَّ عَن سَبِيلِهِ ۚ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيلًا ۖ إِنَّكَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴿٨﴾ أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۗ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿٩﴾ قُلْ يَا عِبَادِ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ ۚ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۗ وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ ۗ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿١٠﴾ قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّينَ ﴿١١﴾ وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُونَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِينَ ﴿١٢﴾ قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٣﴾ قُلِ اللَّهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهُ دِينِي ﴿١٤﴾ فَاعْبُدُوا مَا شِئْتُم مِّن دُونِهِ ۗ قُلْ إِنَّ الْخَاسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا ذَٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ ﴿١٥﴾ لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ۚ ذَٰلِكَ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهِ عِبَادَهُ ۚ يَا عِبَادِ فَاتَّقُونِ ﴿١٦﴾ وَالَّذِينَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوتَ أَن يَعْبُدُوهَا وَأَنَابُوا إِلَى اللَّهِ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿١٧﴾ الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ ۚ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللَّهُ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿١٨﴾ أَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ أَفَأَنتَ تُنقِذُ مَن فِي النَّارِ ﴿١٩﴾ لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ غُرَفٌ مِّن فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ وَعْدَ اللَّهِ ۖ لَا يُخْلِفُ اللَّهُ الْمِيعَادَ ﴿٢٠﴾﴾ الزمر: ١ - ٢٠

**لغتونه:**

(زلفى) نژدېکت ته ويل کېږي او له دې څخه دا هم دی چي الله فرمايي (وأزلفت الجنة للمتقين) (الشعرا ۹۰: ۳) يعني نژدې کړل شو (يکور) تکوېر پېچلو ته وايي لکه د پټکي او دستار تړل (خوّله) هغه ته يې ورو بښل او ورېې کړل (قانت) منونکي او خاضع (انداد) بتان شريکان سيالان (ظلل) جمع د ظلة جمع او سيوروته وايي

(الطاغوت) له طغيان څخه اخيستل شوى اوله حدڅخه تجاوزكولوته وايې اومقصدله طاغوت څخه گردهغه شيان دي چي پرته له الله يې عبادت كول كېږي هغه كه بشروي كه ډبره وي اوكه بل څه (أنابوا) رجوع بېي وكړه(غرف) جنتي لوړي مانۍ، غرفة اوچت مكان اوخوني ته وايې لكه چي الله فرمايې ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ يُجۡزَوۡنَ ٱلۡغُرۡفَةَ بِمَا صَبَرُواْ ﴾ (الفرقان ٧٥).

## تفسير:

﴿ تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَكِيمِ ﴾ رالېږل ددې كتاب (قرآن پرمحمد ) له (جانبه دهغه ) الله (دی) چي ډېر زبردست ، قوي ، غالب اودحكمتونوڅښتن دى (چي هرڅه په حكمت ، تقدير او تدبير باندي كوي ) ﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ ﴾ بېشكه موږ نازل كړى دى تاته (اى محمده !) كتاب (قرآن) په حقه سره (چي هيڅ شک پکي نشته ربښتونى كتاب دى چي باطل ورته لاره نلري ﴿ فَٱعۡبُدِ ٱللَّهَ مُخۡلِصٗا لَّهُ ٱلدِّينَ ﴾ پس عبادت كوه دالله حال داچي خالص كونكى يې دغه الله ته ددين اوعبادت خپل يعني داچي له الله پرته بل څوک دي پكي مقصدنه وي ﴿ أَلَا لِلَّهِ ٱلدِّينُ ٱلۡخَالِصُۚ ﴾ (واورئ خبرداراوسئ خاص الله لره دى دين (اوطاعت) خالص ) يعني اى خلكوپوه شئ چي الله نه قبلوي هيڅ عمل مگرهغه چي يوازي دده لپاره پرځاى شوى وي څكه الله واحداولاشريک ذات دى په پټواسرارو اورازونوخبردى د (خالص) معنادشرک اوريااله شبهاتوڅخه پاک دى ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ أَوۡلِيَآءَ ﴾ (اوهغه كسان چي نيولي يې دي غيرله دغه (الله) څخه نوردوستان ) يعني دغه مشركان چي له الله پرته د بتانوعبادت كوي وايې ﴿ مَا نَعۡبُدُهُمۡ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَآ إِلَى ٱللَّهِ زُلۡفَىٰٓ ﴾ نه كوو موږ عبادت ددوى مگرددې لپاره چي دوى موږ نژدې كړي لوري(طرف) دالله ته نژدې كول (اوشفاعت مو وكړي. صاوي وايې كله چي له مشركانوڅخه وپوښتي چي تاسي اودا آسمانونه اوځمكي چاپيدا كړي دي؟ نودوى وايې : الله پيدا كړي اوبياچي ترې وپوښتل شي چي نوتاسي دڅه دپاره دبتانوعبادت كوى ؟دوى وايې ددې لپاره چي الله ته مونژدې اوسپارښتنه (شفاعت) مووكړي(١) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَحۡكُمُ بَيۡنَهُمۡ فِي مَا هُمۡ فِيهِ يَخۡتَلِفُونَۗ ﴾ بېشكه الله به فيصله كوي په مينځ ددوى كي په هغه څيزكي چي دوى په هغه كي سره اختلاف كوي( له ديني چاروڅخه نومؤمنان به جنت ته اوكفاربه دوزخ ته واچوي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي مَنۡ هُوَ كَٰذِبٞ كَفَّارٞ ﴾ بېشكه الله نه ښيي سمه لاره دهدايت هغه چاته چي دروغجن ناشكره وي، په آيت شريف كي ددوى دعوې ته اشاره راغلي ده ﴿ لَّوۡ أَرَادَ ٱللَّهُ أَن يَتَّخِذَ وَلَدٗا ﴾ كه چېري الله اراده فرمايلي واى (بالفرض والتقدير) ددې چي ولدونيسي ﴿ لَّٱصۡطَفَىٰ مِمَّا يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُۚ ﴾ نو خامخا غوره كړى به يې وو له هغه

(١) حاشية الصاوي على الجلالين ٣ /٣٦٦

مخلوقه چي پيداکوي يې (په تبنی سره به يې غوره کړی ووځکه د توالد او تناسل په معروف ډول خودالله زوی مستحيل دی خوالله متبنی هم نه دی نيولی لکه چي فرمايي: ﴿ وَمَا يَنۢبَغِي لِلرَّحۡمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا ﴾ (مريم۹۲) اوداچي الله فرمايي ﴿ مِمَّا يَخۡلُقُ ﴾ معناله هغومخلوقاتوچي پيداکړي اختراع کړي يې دي ﴿ سُبۡحَٰنَهُۥۖ هُوَ ٱللَّهُ ٱلۡوَٰحِدُ ٱلۡقَهَّارُ ﴾ پاکي ده الله لره (له ګردو عيوبو شريک او ولد څخه ځکه الله) همدی دی يوازي (بې شريکه لاولده) ډېرغالب (په هرشي باندي په خپل عظمت او جلال سره په التسهيل کي وايي چي الله دخپل ځان تنزيه له ولدڅخه پخپله وفرمايله اوبيايې دځان وصف په واحدسره وستايوځکه وحدانيت له ولدسره منافي دی که چېري هغه ولد درلودای نودده له جنسه به ووخوهغه جنس نلري ځکه چي واحددی اوهمداسي ځان يې په قهار سره وستايلوچي د شريکانواوسيالانوڅخه نفی وښيي ځکه هرڅه دالله په خواک اوترغلبې لاندي دی نو څرنګه به ورسره شريک اوسيال پيداشي ([1])

وروسته الله تعالی دخپل قدرت ، وحدانيت اوعظمت دلائل داسي يادوي فرمايي: ﴿ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ بِٱلۡحَقِّۖ ﴾ پيداکړي دي الله آسمانونه اوځمکه په حقه سره (په بشپړه توګه اوعجيبه صفاتوچي دصانع مطلق په وجوددليل اوڅرګندبرهان دی ) ﴿ يُكَوِّرُ ٱلَّيۡلَ عَلَى ٱلنَّهَارِ وَيُكَوِّرُ ٱلنَّهَارَ عَلَى ٱلَّيۡلِۖ ﴾ تاووي (نغاړي الله) شپه په ورځي اوتاووي (نغاړي الله ورځ په شپه کي. قرطبي وايي دشپې پېچل په ورځي باندي معناداچي دورځي رڼا نغاړي اوپټوي يې اودورځي تاوول په شپې باندي معناداچي دهغې تياره له مينځه وړي دغه تفسيرله قتاده رحمه الله څخه منقول دی اودالله ﷻ ددې قول معنادی چي فرمايي ﴿ يُغۡشِي ٱلَّيۡلَ ٱلنَّهَارَ يَطۡلُبُهُۥ حَثِيثًا ﴾ (الاعراف۵۴) ([2]) ﴿ وَسَخَّرَ ٱلشَّمۡسَ وَٱلۡقَمَرَۖ ﴾ اومسخرکړي په کاريې لګولي دي لمراوسپوږمی دبندګانود مصلحتونولپاره) ﴿ كُلٌّ يَجۡرِي لِأَجَلٖ مُّسَمًّىۗ ﴾ چي هريوروان دی ترنېټې په نامه کړی شوي پوري (په نزددالله تعالی اوبيابه دقيامت په ورځ له مينځه ځي چي ﴿ إِذَا ٱلشَّمۡسُ كُوِّرَتۡ وَإِذَا ٱلنُّجُومُ ٱنكَدَرَتۡ ﴾ (التکوير۱) ﴿ أَلَا هُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡغَفَّٰرُ ﴾ واورئ خبردارشئ چي الله ښه زبردست قوي غالب ، ښه ښښونکی (داحسان خاوند ) دی صاوي وايي دجملې په پيل کي يې ځکه د تنبيه توری (الا) راوړچي مضمون ته يې پوره پوره پاملرنه وشي لکه چي ويلي يې وي خبردار ای زما بندګانوزه پخپلوچارو غالب اود بندګانو دګناهونو پټوونکی ښښونکی يم زمالپاره يوازي عبادت کوئ راسره شريک مه نيسئ ([3]) ﴿ خَلَقَكُم مِّن نَّفۡسٖ وَٰحِدَةٖ ﴾ الله پيداکړي يی تاسي له يوه نفس د(آدم) څخه (دغه د الله دوحدانيت ددلائلو له جملې څخه دي چي الله دعزت اوقهرخاونددی اودغه دألوهيت صفات دي ﴿ ثُمَّ جَعَلَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا ﴾ بيايې پيداکړه له دغه (نفس واحدآدم څخه) جوړه دده (حوآء چي له يوې

---

([1]) التسهيل لعلوم التنزيل ۳/ ۱۸۱
([2]) القرطبي ۱۵/ ۲۳۵
([3]) حاشية الصاوي ۳/ ۳۶۶

پښتنی ښځه يې پيدا کړه (١)﴿ وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْأَنْعَٰمِ ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ ﴾ او پيدا (نازل) يې کړل لپاره د (ګټې) (نفعي) ستاسي له چارپايانو څخه (لکه اوښان، غوايان، پسونه اووزې) اته جوړې (نراوښځه) قتاده وايې چې له اوښانودوه له غوايانودوه له پسونو دوه اوله وزودوه له هريوڅخه جوړه جوړه (٢) اوڅکه يې﴿ أَزْوَٰجٍ ﴾ ونومول څکه چې ښځينه دنارينه جوړه اونارينه دښځينه لپاره جوړه ده. مفسرين کرام وايې چې مراد له (انزال) څخه دهغوي دپيدا ايښت الهي حکم اوفيصله ده ﴿ يَخْلُقُكُمْ فِى بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنۢ بَعْدِ خَلْقٍ ﴾ پيداکوي (الله) تاسي ته په ګېډه دميندو ستاسي کي يوقسم پيدا ايښت وروسته له يوبل قسم پيدا ايښت نه (څکه چې انسان لومړی نطفه بيا علقه اووروسته مضغه شي ترڅويې خلقت بشپړېږي اوروح پکي پو کل کېږي او بيايې پيدا ايښت کېږي ﴿ فِى ظُلُمَٰتٍ ثَلَٰثٍ ﴾ په دريو تيارو کي (چي دمشيمې، رحم اوګېډې تيارې دي)(٣) ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ ﴾ دغه (پيداکونکی، مبدع مصور) الله رب ستاسو(اوستاسو د پخوانيو پلرونو دي) ﴿ لَهُ ٱلْمُلْكُ ﴾ ده ته دي ملک دسلطنت (په ايجاداو اعدام کي بشپړ تصرف) ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ﴾ نشته بل هيڅوک لائق دعبادت مګر يوازي هم دی دی پس کوم طرف ته تاسي ګرزولی شی؟(دده له عبادت څخه دنوروعبادت ته ؟ کله چي الله د خپلونعمتونواواحساناتويادونه ورته وکړه ورپسې يې له کفره اوانکارکولوڅخه وېرول چي: ﴿ إِن تَكْفُرُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَنِىٌّ عَنكُمْ ﴾ که چېري تاسي کفرغوره کړی پس بېشکه الله له تاسي څخه (او ستاسي له ايمان، شکراوعبادت څخه بې پروادی ﴿ وَلَا يَرْضَىٰ لِعِبَادِهِ ٱلْكُفْرَ ﴾ او(الله) نه خوښوي کفر دخپلو بندګانو لپاره. امام رازي وايې چې پدې کي داسي اشاره شته يعني که څه هم چي الله ته نه دخلګو ايمان ګټه رسوي اونه يې کفرورته تاوان رسوي خوبياهم الله دبندګانو لپاره کفرنه خوښوي او نه کافرستايې اونه هم ورته ثواب ورکوي که څه هم کفريې دالله په مشيت اوقضاء واقع شوی وي (٤) ﴿ وَإِن تَشْكُرُوا۟ يَرْضَهُ لَكُمْ ﴾ اوکه(داسلام په نعمت) شکروباسی نوخوښوی دغه (شکران)( الله) تاسي ته (ستاسي لپاره اوستاسي دګټې لپاره نه داچي ستاسي شکران اوطاعت الله ته ګټه رسوي ابو السعود وايې دا چي الله

---

(١) الطبري ٢٣/ ١٢٤

(٢) القرطبي ٢٣٥١٥

(٣) شهيد سيد قطب د(في ظلمات ثلاث ) په هکله ليکي چي دغه يوه تياره ده دهغي کخوړي (پيلار) کومه چي جنين پکي نغښتی دی بله تياره پخپله درحم تياره ده اوپردې سربېره بيا دګېډې تياره ده کوم چي رحم پکي دننه دی همداسي الله جل جلاله دغه وروکي (خليه) پنځوي اودالله جل جلاله پاملرنه يې وخت په وخت ګوري اودلورتيااوارتقاء خيال يې کوي وده او دپيدا ايښت خرنګوالی يې وروسته له بله پيدا ايښته کوي څرنګه چي الله ورته مقدر کړی ليکلی دی او هغه يې پيداکونکی خالق اوبادار دی. في ظلال القرآن ٩ /٣٠٣

(٤) التفسير الكبير امام رازي .

دبندګانو په کفرباندي ناخوښه دی دغه ددوی دګټي لپاره دی اوداالله له لوري پردوی رحمت دی نه داچي ددوی کفرالله ته تاوان پېښوي اوداچي الله ددوی په شکران خوښېږي دغه ددوی لپاره او ددوی دمنفعت لپاره دی ځکه پدې سبب دوی ددارینو نېکمرغي اوسعادت ترلاسه کوي ځکه بې نو ددواړو لفظونو ترمینځ توپیرفرمایلی چي هلته وایې ﴿ وَلَا يَرْضَىٰ لِعِبَادِهِ ٱلْكُفْرَ ﴾ اودلته یې فرمایلي ﴿ يَرْضَهُ لَكُمْ ﴾ ځکه په لومړني کي مقصد دحکم تعمیم دی اوبیایې تعلیل پدې فرمایلی چي دوی د الله بندګان دي([1])﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ اووابه نخلي بارهیڅ بار اخیستونکی بارد ګناهونو د بل چابلکه هرڅوک به خپل باراوپېټی پورته کوي اودخپلي ګناه سزابه ویني ﴿ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ ﴾ بیاخاص رب ستاسي ته بیرته ورتله ستاسي دي﴿ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ پس خبربه کړي تاسي پرهغو(عملونو ) چي وی تاسي چي کول به مو(جزابه درکړي اوحساب به درسره وکړي) ﴿ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ بېشکه دغه (الله) ښه عالم دی په خبرو دسینو درازونواو نیتونو چي په زړونو کي وي پدې کي تهدید نغښتی اودمؤمنانو لپاره زېری پکي شته ﴿ وَإِذَا مَسَّ ٱلْإِنسَـٰنَ ضُرٌّ ﴾ او کله چي ورسېږي (کافر) انسان ته کوم قسم سختي (فقر، ناروغي او کړاو ) ﴿ دَعَا رَبَّهُۥ مُنِيبًا إِلَيْهِ ﴾ نو بولي رب خپل پدې حال کي چي خاص همده ته رجوع کونکی وي (ترڅو دغه سختي ترې واخلي ﴿ ثُمَّ إِذَا خَوَّلَهُۥ نِعْمَةً مِّنْهُ ﴾ بیاکله چي الله ورکړي ده ته نعمت له خپله جانبه (اوسختي کړاوونه ځني لیري کړي )﴿ نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوٓا۟ إِلَيْهِ مِن قَبْلُ ﴾ نوهېرکړي هغه (الله ) چي وودی چي باله به یې هغه (الله) پخوا له دې نعمته (ترڅو دغه فقر، ناروغي اوکړاوونه ځني واخلي نو بیاسرغړونه کوي ﴿ وَجَعَلَ لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلَّ عَن سَبِيلِهِۦ ﴾ اوګرزوي الله ته شریکان په عبادت کي دپاره ددې چي ګمراه کړي (خلګ) له لاري د الله (چي داسلام دین اودالله اطاعت دی ) ﴿ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيلًا ۖ إِنَّكَ مِنْ أَصْحَـٰبِ ٱلنَّارِ ﴾ ووایه (ای محمده ! دغه کافرته ) چي نفع واخله پخپل کفرلږ(موده په دنیاکي ) بېشکه ته له یارانو داور(ددوزخ څخه یې (امر د تهدید لپاره دی )

﴿ أَمَّنْ هُوَ قَـٰنِتٌ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ سَاجِدًا وَقَآئِمًا ﴾ آیاهغه څوک چي دی طاعت کونکی دی په ساعتونو دشپې کي سجده کونکی اوولاړ په لمانځه باندي ؟ دغه استفهام دی چي ځواب یې حذف شوی ځکه چي کلام ورباندي دلالت کوي هغه دا چي آیادغه څوک له هغه چاسره برابر دی کوم چي له الله سره شریکان نیسي اوسیالان یې مني ؟. قرطبي وایې معناداچي مسلمان مؤمن او کافرسره برابرنه دي لکه چي پخوایې هم یادونه شوي ده([2]) ﴿ يَحْذَرُ ٱلْـَٔاخِرَةَ وَيَرْجُوا۟ رَحْمَةَ رَبِّهِۦ ﴾ وېرېږي له (عذاب) دآخرت اوامید لري د رحمت

---

([1]) دابوالسعود تفسیر/ ۲۲/ ۲۴۲

([2]) القرطبي ۱۵/ ۲۳۸

درب خپل (چي جنت دی آیادغه مؤمن له هغه کافرفاجرسره برابردي؟ نه هیڅکله ندي برابربیاالله مثال بیانوي چي: ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي ٱلَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ووایه (ای محمده!) آیابرابردي هغه کسان چي پوهېږي (دعلم خاوندان دي) اوهغه کسان چي نه پوهېږي (جاهلان دي بلکه برابرنه دي همداسي مطیع اوعاصي هم سره برابرنه دي) [1] ﴿ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُوْلُواْ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ بېشکه هم داخبره ده چي پنداخلي خاوندان خاوندان دخالصو عقلونو، امام فخررازي وايي: چي پدې وپوهېږه! دغه آیت شریف په عجیبه رازونو دلالت کوي هغه دا چي پیل یې په عمل فرمایلی او پای یې په علم عمل یې هغه قنوت، سجود او قیام دی اوعلم یې دا وروستی برخه چي: ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي ٱلَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ دی داددې څرګندونه کوي چي دانسان کمال پدې دوو مقصدونوکي نغښتی دی عمل چي هغه پیلامه اوعلم اومکاشفه چي هغه پایله او وروستنی پړاودی اوپه کلام کي حذف راغلی تقدیرېې داچي آیادغه طاعت کونکي اوهغه څوک چي نافرمانه وي سره برابردي؟ اودغه حذف ځکه ښایسته دی چي کلام وربانديې دلالت کوي اوالله تردې له مخه د کافر یادونه کړي اوبیایې په خاوندانودعلم اوپوهي مثال راوړی چي پدې کي دعلم په فضیلت باندي تنبیه اوخبرداری دی [2] ﴿ قُلْ يَٰعِبَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْ ﴾ (ووایه (ای محمده دوی ته دالله له جانبه) ای زمابندګانوچي ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو!) ووېرېږئ له (عذابه د) رب ستاسو) یعني ایمان اوتقواسره یوځای کړئ تقوی دالله له محرماتوڅخه ځان ژغورلو ته وایي. مفسرین کرام وایي دغه آیت دحضرت جعفربن ابي طالب اودهغه دملګروپه هکله نازل شوي چې حبشې ته تهیي دهجرت تکل وکړ او مقصد ختنی ددوی دلاساینه اوهڅونه ده [3] دتقوی معنادالله داوامرو امتثال اوله نواهیوڅخه ځان ژغورنه ده اوکله چي بنده پدې باندي د ځان او اورتر مینځ وقایه اوبېلتون کوي [4]

﴿ لِلَّذِينَ أَحْسَنُواْ فِي هَٰذِهِ ٱلدُّنْيَا حَسَنَةٌ ﴾ هغوکسانوچي نېکي یې کړي ده په دغه دنیاکي (په طاعت سره) نېکي شته ده ډېره لویه په آخرت کي چي جنت دار الابراردی) ﴿ وَأَرْضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةٌ ﴾ اودالله ځمکه ارته ده (نوله دارالکفرڅخه دارالایمان ته هجرت وکړئ هلته مه اوسئ چېري چي دالله شعائرپه آزادانه توګه نشی ترسره کولای) ﴿ إِنَّمَا يُوَفَّى ٱلصَّٰبِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ بېشکه همداخبره ده پوره ورکاوه شي صابرانوته اجرثواب ددوی بې حسابه (ډېرزیات چي تول او شمېرېې نشي کېدای) اوزاعي وایي چي دوی ته ثواب په تول اوپیمانه باندي نه بلکه بي شمیره ورکا وو شي [5] ﴿ قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱللَّهَ مُخْلِصًا لَّهُ ٱلدِّينَ ﴾ ووایه (ای محمده! دوی ته) بېشکه زه چي یم امرحکم راته کړل شوی دی چي عبادت وکړم یوازي دالله چي خالص کونکی یم ده ته ددین (بندګي خپلي) مفسرین کرام وایي چي الله خپل استازی پدي

---

(1) حاشیة شیخ زاده علی البیضاوي ۳/ ۱۹۳

(2) التفسیر الکبیر للامام الرازي

(3) التسهیل لعلوم التنزیل ۳/ ۱۹۲

(4) الصاوي ۳/ ۳۶۸

(5) مختصرابن کثیر ۳/ ۲۱۵

مامورکړنودغه پدې تنبیه ورکوي چي نورخلگ خوبه اروموپه دغه امرباندي مأموروي دغه لکه دنوروليپاره چي ترغیب وي ﴿وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُونَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِينَ﴾ اوحکم امرشوی دی ماته چي شم زه اول دمسلمانانو(ددې امت). قرطبي وايې اوهمداسي ووهغه لومړني څوک وو چي د خپلوپلرونو دين ته يې شاکړه اوبتان يې ريزمريز کړل الله ﷺ ته يې غاړه کښېښوده ايمان يې راوړ او دهغه جل جلاله لوري ته يې بلنه پيل کړه (۱)﴿قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ ووايه (ای محمده!) بېشکه زه وېرېږم له عذابه دورځي لويې (د قيامت) که دخپل رب نافرماني وکړم صاوي وايې چي پدې کلام کي دنوروخلگوليپاره له گناهونو څخه زجراوترټنه ده ځکه چي رسول الله ﷺ سره له پاکي اوعصمته وېرېږي نورخلگ خوبايدپه اولی طريقه سره ووېرېږي اوهمدغه دانبياووعليهم السلام اوصالحينوسنت اوتگلاره ده چي نور خلگ په هغه څه خبروي چي دوی (انبياء) پخپله ورباندي متصف وي ترڅوهغوی وريسي اقتداء وکړي (۲)﴿قُلِ اللَّهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا لَهُ دِينِي﴾ ووايه (ای محمده!) الله ته عبادت کوم پداسي حال کي چي خالص کونکی يم ده ته (د) دين خپل (له هري شائبې اوشک شبهې نه دغه کلام تکرارنه دی ځکه چي لومړی ددې اخباردی چي رسول الله ﷺ په عبادت کولومأموردی اودوهم يې بياله الله څخه دعصيان په صورت کي دوېرېدني اخباردی اودريم ځل بيادامرپرځای کولو(امتثال) څخه اخباردی چي حصر هم افاده کوي لکه چي ووايې زه دالله عبادت کوم دبل هيڅاعبادت نه کوم ﴿فَاعْبُدُوا مَا شِئْتُمْ مِنْ دُونِهِ﴾ پس عبادت کوئ تاسي دهرهغه څيزچي اراده وکړئ تاسي غيرله الله. دلته دامرصيغه دوعيد اوتهديدليپاره په کارول شويده يعني له الله پرته د نوروبتانومعبودانو عبادت وکړئ چي بيابه يې عاقبت اوانجام وگورئ لکه چي الله فرمايې: ﴿اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ﴾ (فصلت ۴۰) ﴿قُلْ إِنَّ الْخَاسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾

ووايه (ای محمده!) بېشکه زيانکاران هغه کسان دي چي زيان يې رسولی وي ځانونو خپلو ته اواهل خپل ته په ورځ د قيامت کي (چي تل ترتله اورته لوېدلي دي. ابن عباس ﷺ وايې چي هرچا ته په جنت کي هستوگنځي، اهل اوخدمتگاران شته که چېري يې دالله تعالی عبادت اواطاعت وکړ الله به گرځشيان ورکړي اوکه داورله خاوندانوونوبه يې خپل دجنت هستوگنځی اهل اوخدمتگاران بايللي وي اوپه خسران کي به واقع شوی وي(۳)﴿أَلَا ذَٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ﴾ واورئ (خبردارشئ چي دغه (خسران) همدغه دی ښکاره زيان (چي ترې پورته بل زيان نشته، ابوحيان وايې چي دخسران په هکله يې مبالغه وفرمايله چي يويې دتنبيه توری(ألا) راوړ وريسې يې په (ذلک) سره ورته اشاره وکړه او بيايې په (هو) سره چي دحصر توری دی تاکيدوکړاوپه (الا) سره يې تعريف وکړ اوپه ښکاره والي سره يې وستايوچي ﴿الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ﴾ يې يادکړنودغه چي يوڅوک لږڅه أدنی سوچ هم کوي د هغه ليپاره ښکاره اوڅار خسران دی وروسته له دې چي ددوی خسران يې په دنياکي بيان کړ نوددوی عاقبت انجام

(۱) دقرطبي تفسير ۲۴۲/۱۵
(۲) حاشية الصاوي ۳۶۹/۳
(۳) تفسير کبير ۲۵۶/۲۶

اوأخروي برخه ليک يې داسي يادکړ ﴿ لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ﴾ وي به دوی ته پاس ددوی طبقات (پوړۍ) له اوره اولاندي له دوی طبقات (داورچي له هرلوري به يې داور طبقات وي اوداچي دغه يې په سيوري ونومول تهکم دی څکه اورخوسوخونکی وي اوسيوری له تودوخي څخه ژغورونکی ﴿ ذَٰلِكَ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهِ عِبَادَهُ ﴾ دغه (مذکورعذاب) وېروي الله په هغه سره بندګان (مؤمنان) خپل (چي له محرماتو او ګناهونو څخه څان وساتي) ﴿ يَا عِبَادِ فَاتَّقُونِ ﴾ ای زمابندګانو پس وو ېرېږئ له ما (په اجتناب کولو له معاصيو څخه) زمخشري وايې دغه دالله له لوري خپلو بندګانو ته وعظ اونصيحت دی (۱) اوحکمت له يادولو داورڅخه دمؤمنانو تخويف دی چي دخپل رب طاعت وکړي ﴿ وَالَّذِينَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوتَ أَن يَعْبُدُوهَا ﴾ (اوهغه کسان چي څان يې ساتلی دی له بتانو چي دهغو عبادت وکړي) کله چي يې دبت پرستانو وعيد بيان کړورپسې يې دفضلاوو او اهل احسان يادونه وکړه ترڅوچي وعد اووعيد سره يو ځای او په بشپړه توګه ترغيب اوترهيب افاده کړي ابوالسعودوايي چي ﴿ الطَّاغُوتَ ﴾ دطغيان مبالغه ده لکه چي رحموت اوعظموت وي مراد له طاغوت څخه شيطان دی اوهغه دمبالغې لپاره په دغه وصف ستايل شوی دی (۲) ﴿ وَأَنَابُوا إِلَى اللَّهِ ﴾ اورجوع يې کړي وي دالله لوري ته (په طاعت او عبادت سره) ﴿ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ ﴾ شته دوی ته زېری (بشارت) دالله له لوري چي دوی به جنات النعيم مومي ﴿ فَبَشِّرْ عِبَادِ الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ ﴾ پس زېری ورکړه (ای محمده!) پر بندګانو زما هغوی چي خبري اوري پس متابعت کوي دوی (دېرښه دهغو) ابن عباس ﷺ وايې چي داهغه څوک دي چي ښې اوبدي خبري اوري اوبيانېې خبري کوي له بدو څخه تېرېږي اونه يې کوي (۳) دغه دالله له طرفه ددوی ثنابيانول دي چي دوی داسي خيراکت لري چي أحسن الکلام بېلولای شي اوکله چي کومه وېناواوري هغه وګوري او ورباندي عمل کوي اوأحسن الکلام دالله کلام اوخيرالهدی د محمد رسول الله هدايت دی داچي دضميرپرځای يې اسم ظاهر راوړی چي ﴿ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴾ يې د (فبشرهم) پرځای راوړی دغه يې دبندګانو تشريف اوتکريم فرمايلي چي خپل ځان ته يې ددوی نسبت کړی دی ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللَّهُ ﴾ داهغه کسان دي چي الله دوی ته سمه لاره ښودلي ده اوخپله رضايې ورباندي لورولي ده ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴾ اوهمدغه کسان هم دوی دي خاوندان دخالصو عقلونو (اوسالم فطرت) ﴿ أَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ ﴾ آياپس هغه څوک چي واجب شوی دی په ده حکم دعذاب (بدمرغي) اوشقاوت دالله له طرفه ؟ څواب يې حذف شوی چي مابعدورباندي دلالت کوي هغه داچي آياته دداسي

---

(۱) الکشاف
(۲) دابوالسعود تفسير ۴/ ۳۰۵
(۳) القرطبي ۱۵/ ۲۴۴

جادهدايت كولو توان لري؟ بلكه نه يې لري بيافرمايي: ﴿ أَفَأَنتَ تُنقِذُ مَن فِي ٱلنَّارِ ﴾ آياپس ته ژغورلی شې هغه څوك چې په اوركې دي؟(بلكه نه يې شې خلاصولوی) قرطبي وايي چې رسول الله ﷺ دخپل قوم په ايمان راوړلو كې ډېرحريص ووهغوی چې لا پخوا الله ورته شقاوت اوبدمرغي ليكلې وه نودغه آيت شريف نازل شوابن عباس رضي الله عنهما وايي چې مقصد له دغو كسانو څخه ابولهب اودهغه زوی اونورهغه كسان دي چې درسول الله ﷺ له قوم اوټبر څخه اوله ايمان څخه محروم وودغه استفهام چې مكرر (أَفَأَنتَ) په كلمه سره راوړل شوددې لپاره چې دكلام په اوږدوكې تاكيدافاده كړي معناداچې آياهغه څوك چې الله ورته عذاب ليكلی دی ته يې ژغورلای شې ؟[1] ﴿ لَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْاْ رَبَّهُمْ ﴾ ليكن هغه كسان چې له خپله ربه وېرېږي (اودالله په شريعت او طاعاتوېې منګولې لګولې وي) ﴿ لَهُمْ غُرَفٌ مِّن فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ ﴾ شته دوی ته مانۍ (په جنت كې) چې له پاسه دهغې نوري مانۍ بناكړی شوي دي (له زبرجدواو ياقوتوڅخه )[2] ﴿ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ چې بهېږي لاندي دمانيو(اوونودهغه ) ويالې بې له لښتواوپولو ﴿ وَعْدَ ٱللَّهِ لَا يُخْلِفُ ٱللَّهُ ٱلْمِيعَادَ ﴾ (وعده كړي ده) وعده كول دالله ، الله مخالفت نه كوي له وعدې خپلې(څكه چې دغه دعزيزمقتدرالله وعده ده).

تنبيه:

زمخشري وايي چې دالله ﷻ داويناچې فرمايي ﴿ يَسْتَمِعُونَ ٱلْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُۥٓ ﴾ داافاده كوي چې مؤمنان بايدددين په چارو كې كره كتونكي (نقادان) وي حسن اوأحسن سره بېل كړي فاضل اوأفضل سره وپېژني اوپدې كې مذاهب هم دننه راتلای شي چې بايدهغه مذهب غوره كړای شي كوم چې دليل يې بنه ثابت اونبناني يې خوراخرګندي وي داسي دي نه وي لكه چې شاعروايي : (ولاتكن مثل عيرقيدفانقادا ) يعني داسي مه كېږه لكه خرچې ورته وايي (اُوش)اوهغه ودرېږي ([3]) .

الله تعالی فرمايي:

﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَسَلَكَهُۥ يَنَٰبِيعَ فِى ٱلْأَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِۦ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا أَلْوَٰنُهُۥ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَىٰهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهُۥ حُطَٰمًا ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِأُوْلِى ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿٢١﴾ أَفَمَن شَرَحَ ٱللَّهُ صَدْرَهُۥ لِلْإِسْلَٰمِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِۦ ۚ فَوَيْلٌ لِّلْقَٰسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ ٱللَّهِ ۚ أُوْلَٰٓئِكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٢٢﴾ ٱللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ ٱلْحَدِيثِ كِتَٰبًا مُّتَشَٰبِهًا مَّثَانِىَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُدَى ٱللَّهِ يَهْدِى بِهِۦ مَن يَشَآءُ ۚ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنْ هَادٍ ﴿٢٣﴾ أَفَمَن يَتَّقِى بِوَجْهِهِۦ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ وَقِيلَ

---

[1] القرطبي ۲۴۴/۱۵ او همدادوهم قول دتسهيل مؤلف غوره كړی دی.

[2] دغه دابن عباس رضي الله عنهما وينادہ.

[3] كشاف تفسير ۹۳/۴

لِلظَّٰلِمِينَ ذُوقُواْ مَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿۲۴﴾ كَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَأَتَىٰهُمُ ٱلْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿۲۵﴾ فَأَذَاقَهُمُ ٱللَّهُ ٱلْخِزْيَ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُواْ يَعْلَمُونَ ﴿۲۶﴾ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِى هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ مِن كُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿۲۷﴾ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِى عِوَجٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿۲۸﴾ ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيهِ شُرَكَآءُ مُتَشَٰكِسُونَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۲۹﴾ إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ ﴿۳۰﴾ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ ﴿۳۱﴾ ﴾ الزمر: ۲۱ ــ ۳۱

## مناسبت:

کله چي الله تعالی دمشرکانو گمراهي اوغیرالله عبادت کول بیان کړل ورپسې یې دوحدانیت دلائل راوړل اوبیایې دآسماني کتابونوترټولوغوره کتاب قرآن کریم یادونه وکړه اوسره له دې چې مشرکانو دهمدې کتاب په اعجازاوفصاحت باندي اقرارهم کاوومګربیایې هم تکذیب وکړاو وروسته الله دمشرک اوموحدلپاره خورا یوڅرګند مثال بیان کړی دی.

## لغتونه:

(سلکه) دننه کړی یې دی (ینابیع) دینبع جمع اوهغه له ځمکي څخه رابهېدونکي چینې ته وایې (یهیج) وچېږي أصمعي وایې :(هاجت الارض تهیج)یعني ځمکه وچه اونباتات یې له مینځه لاړل (۱) جوهري وایې وایې چي هاج النبت معناداچي نباتات ژېړ اووچ شول (۲)(حطاما) رژېدلي وروسته له وچوالي مات شوي (شرح) خلاص اوپراخ شول (قاسیة) سخت ، ویل کېږي چي (قلب قاسی) یعني زړه سخت کله چي نرم والی اورقت یې له مینځه لاړشي (مثاني)هغه چي مواعظ، امثال اوحکمتونه پکي مکررويي (تقشعر) ځیک کېږي اوله وېري رېږدېدلوته وایې (الخزي) ذلت اوهوان (متشاکسون) اختلاف اوشخړي کونکي.

## تفسیر:

﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ آیانه وینې ته (ای هوښیارانسانه چي) بېشکه الله نازلي کړي دي له طرفه دآسمانه اوبه دباران ) له وریځي ) ﴿ فَسَلَكَهُۥ يَنَٰبِيعَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ پس ننې ایستلي یې دي دا(اوبه) په چینوپه ځمکه کي. مفسرین کرام وایې چي پدې کي دادلیل شته چي دچینواوبه دباران څخه دي چي په ځمکه کي زېرمه کېږي اوبیاوروسته کراکرار رابهېږي . ابن عباس وایې په ځمکه کي اوبه نشته مګرهغه چي له آسمانه رااوري اودځمکي په رګونوکي زېرمه کېږي ﴿ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِۦ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا أَلْوَٰنُهُۥ ﴾ بیاراوباسي پدغو(اوبوسره ) کښت حال داچي مختلف وي رنګونه دهغه (سور، سپین، ژیړ اوهمداسي قسمونه یې مختلف وي لکه غنم ، وریځي ، لوبیااونور. بیضاوي وایې (مختلفا الوانه) معناداچي دولونه یې مختلف وي لکه غنم اوربشي اونوراویابې څرنګوالی مختلف وي چي شین والی، سوروالی

---

(۱) القرطبي ۱۵/ ۲۴۲

(۲) الصحاح والقاموس المحیط

او نور رنګونه لري (۱) ﴿ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَىٰهُ مُصْفَرًّا ﴾ بیاوچ شي پس وينې ته هغه شين رنګ تک ژير ﴿ ثُمَّ يَجْعَلُهُۥ حُطَٰمًا ﴾ پس ګرزوي دغه کښت رژېدلی مات شوی ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِأُو۟لِى ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ بېشکه په دغو (ذکرشويوکي) خامخا ډېرلوی پنددی خاوندانو دخالصو عقلونو ته، په آيت کي دانسان دژوندانه تمثيل دی ددنياله ژوند سره هرڅومره چي دانسان عمر اوږدشي بياهم پای ته رسېدونکی دی لکه چي دوښومثال الله وښود همداسي به انسان دعمرپه پای کي تک ژير رژېدونکی وي ترڅوچي ومري ابن کثيروايي چي دغښي دنياښکلي ښايسته اوتازه برېښي خوځه موده وروسته بيابوډۍ شاډوله شي لکه چي ځواني په بوډاتوب بدلېږي اوبياوروسته په مړيني ختمېږي بختور او نېکمرغه هغه څوک دی چي حال يې دخيراونېکمرغي لورته درومي (۲) ﴿ أَفَمَن شَرَحَ ٱللَّهُ صَدْرَهُۥ لِلْإِسْلَٰمِ ﴾ آياپس هرهغه څوک چي پرانستلي اوارته کړي وي الله سينه دده لپاره د(قبول د ) اسلام (او روښانه کړی يې وي زړه دده چي ايمان پکي رسوخ وکړي) ﴿ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ پس وي به دی په رڼا (د هدايت ) له طرفه درب خپل ) يعني هغه به په ديني چاروکي په يقين اوبصيرت بسياوي دالله ښوونه اوهدايت به يې حق په زړه کي خلولی وي په آيت شريف کي محذوف شته چي دکلام سياق وربانديي دلالت کوي اوتقديريې دادی چي آيادغه کس لکه هغه څوک داسي دی چي زړه يې ړونداوله اسلامه مخ اړونکی وي؟ طبري وايي ځواب يې ددې لپاره پرې ايښی چي اورېدونکوته معلوم دی وروسته کلام وربانديي دلالت کوي اوتقديريې داسي راځي چي آيادغه سړی لکه هغه داسي دی چي الله يې زړه سخت کړی اودالله له ياده تش اوخالي کړی وي ؟آن تردې چي دحق له اورېدلوڅخه کرکه کوي زړه يې تنګېږي اودحق پلوي اواتباع نه کوي(۳) ﴿ فَوَيْلٌ لِّلْقَٰسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾ پس افسوس هلاک خرابي ده هغوکسانوته چي سخت وي زړونه ددوی له ذکره دالله (اوخشوع پکي نه وي کله چي دالله ذکرقرآن هغه چي دبندګانولپاره پندنازل شوی ورته لوستل کېږي زړونه يې نرم والی نه مومي) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ (دغه کسان په ښکاره ګمراهي کي دي) يعني دغه کسان چي زړونه يې سخت دي له حق څخه لیري دي ,له دې وروسته الله تبارک وتعالی دانبيي چي قرآنکريم دروښنايې اونور لپاره سبب اوپدې کي هدايت اوشفانغښتل شوي ده ويې فرمايل ﴿ ٱللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ ٱلْحَدِيثِ كِتَٰبًا ﴾ ( الله ته‌وته ته‌وته نازل کړی دی ډېرښايسته خوږ کلام کتاب) يعني الله قرآن عظيم ښايسته کلام نازل کړی دی. ابوحيان وايې چي دالله په نامه پيل او د(نزل) ضميرورته راجع کول دکتاب دتعظيم اوستري مرتبې څرګندوی دی لکه چي وايې باچافلاني ته عزت ورکړاوداويناتردې چي ووايې فلاني ته باچاعزت ورکړ درنښت لري اوحکمت يې دادی چي په لومړۍ ويناکي پيل په اشرف باندي شوی دی (۴) ﴿ مُّتَشَٰبِهًا ﴾ (مشابه يوله بل سره ) يعني ځيني له ځيني

---

(۱) البيضاوي ۲/ ۱۵۴

(۲) مختصرابن کثير ۳/ ۲۱۷

(۳) تفسيرالطبري ۲۳/ ۱۳۴

(۴) البحرالمحيط ۷/ ۴۲۲

نوروسره په فصاحت بلاغت اوتناسب کي مشابه دي چي هيڅ ډول تعارض او تناقض پکي نشته ﴿مَّثَانِيَ﴾ (مکررغبرګ دی) يعني مواعظ، احکام، حلال، حرام، کيسې اواخبار پکي مکرر راغلي چي سړی يې په لوستلونه مړېږي. طبري وايې د(مثانی) معناداچي پېښني اومهم خبرونه، فيصلي، حکمونه اودلائل پکي دوه ځلي اوپه تکرار راغلي (١)﴿تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾ (چي لړزېږي رپېږي ځيګ کېږي له ده نه وروسته پوستوکی دهغوکسانوچي وېرېږي له رب خپل) يعني ددغومؤمنانود قرآنکريم دتلاوت په وخت کي دالله له هيبت اواجلاله زړونه رپېږي ﴿ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ بياپاسته شي (آرام ونيسي) پوستوکي ددوی اوزړونه ددوی طرف دياد دلود الله ته. مفسرين کرام وايي چي درحمت اواحسان دآيتونو داورېدلو په وخت کي يې زړونه اوپوستوکي نرم شي عارفان وايي کله چي دالله دجمال عالم وګوري په ژوندپوه شي اوچي دالله دجلال نظاره وکړي نوورپېږي (٢) ابن کثيروايي چي دغه دابراراونېکانو صفت دی کله چي دجبارذات کلام واوري اوکله چي وعداو وعيدتلاوت کړي تخويف اوتهديد ولولي نويې له وېري څخه وېښتان دپوستوکي ځيږه شي اوکله چي بيادرحمت آيتونه تلاوت کړي نرم اوپاسته شي زړونه اوپوستوکي ددوی څکه چي دالله درحمت اولطف په هيله کي ډوب شي(٣)﴿ذَٰلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَن يَشَاءُ﴾ دغه (قرآن) دالله هدايت دی سمه لاره ښيي په دغه (قرآن سره) هرهغه چاته چي اراده وفرمايي له مخلوقه څخه ) ﴿وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ﴾ (اوهرڅوک چي الله يې وښويوي پس پيدابه نشي هغه ته هيڅوک لاره ښودونکی ) يعني دهرچاچي الله يې زړه سخت اوتياره کړي بيادهغه لپاره کوم لارښوونکی له الله پرته بل څوک نشته ﴿أَفَمَن يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ آياپس هغه څوک چي ځان ساتي په مخ خپل سره له سختي دعذاب دورځي دقيامت؟ خبريې حذف شوی هغه داچي آيادغه سړي لکه هغه څوک داسي دي چي له عذابه په امن وي؟ مفسرين کرام وايي چي مخ دانسان دبدن دغړو ترګردو اشرف دی اوکله چي انسان ته کوم کړاو ورسېږي نوخپل لاسونه مخ ته نيسي اومخ ژغوري خود کافرانو به دقيامت په ورځ لاسونه تړلي وي کله چي په اورکي وغورځول شي نوبه هيڅ شی ورسره نه وي چي له اوره ځان وباندي وژغوري پوازي مخونه به يې وي چي ځان به وباندي ساتي ﴿وَقِيلَ لِلظَّالِمِينَ ذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ﴾ اوظالمانوته به وويلی شي چي وڅکئ (خوند ) دهغه عمل چي وی تاسي چي کاووبه مو(په دنياکي) له کفر اوګناهونوڅخه) ﴿كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ﴾ دروغجن شمېرلي وو(خپل پيغمبران) هغوکسانوچي پخواله دوی نه ووپس راغی دوی ته عذاب له

(١) طبري ٢٣/ ١٣٥

(٢) التفسيرالکبير ٢٦/ ٢٧٢

(٣) مختصرابن کثير ٣/ ٢١٧

داسي لوري چي نه به پوهېدل ﴿ فَأَذَاقَهُمُ ٱللَّهُ ٱلْخِزْىَ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ پس وبه څکوله الله پردوی خواري اورسوايې په دغه ژوندون ددنياکي ﴿ وَلَعَذَابُ ٱلْـَٔاخِرَةِ أَكْبَرُ ﴾ او خامخاعذاب دآخرت ډېرلوی دی (کوم چي دوی ته تیارشوی ) ﴿ لَوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ﴾ که چېري وی دوی پدي عالمان (نوتکذيب به يې نه کاوو ايمان به يې راوړی وو ) ﴿ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِى هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ مِن كُلِّ مَثَلٍ ﴾ (او خامخاپه تحقيق بيان کړی دی موږخلګوته پدغه قرآن کي له هره مثاله (مفيده اوخرګندوخبرونو چي دوی ورته ارتيالري اوپه ديني چاروکي يې په کارېږي ﴿ لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ لپاره ددې چي دوی پرې پندواخلي (اوله دغه زواجرو امثالوڅخه عبرت ترلاسه کړي ﴿ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِى عِوَجٍ ﴾ پداسي حال کي چي داقرآن دی لوستلی شوی په عربي ژبه سره چي نه دی خاوند دکوږوالي (يعني نه پکي څه اختلاف شته اونه هم تعارض اوتناقض ورته لاره مومي ﴿ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴾ لپاره ددې چي دوی وژغورل شي (له محارمودالله) وروسته دهغه چامثال راوړي څوک چي له الله سره شريک نيسي اوهغه څوک چي دالله ﷻ دوحدانيت دمنلوعقيده اوباورلري فرمايي ﴿ ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيهِ شُرَكَآءُ مُتَشَٰكِسُونَ ﴾ بيانوي الله مثل چي يوسړی (مريی) وي چي په ده کي بدخويه (ډېر) شريکان وي (چي تل سره يوله بله په شخړولګياوي هريوبې دځان په شخصي کارونوګماري يو ورته ديوکاردترسره کولو امرکوي اوبل شريک يې بياله هغه څخه منع کوي اودغه مريی ددوی ترمينځ متحير اومتردد وي نه پوهېږي چي دکوم يوه بادار رضايت اوخوښي ترلاسه کړي ؟ ﴿ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ ﴾ اويوبل سړی وي (هغه هم مريی خو) سلامت ټول ديوه سړي وي (هغسي سړی بادار چي دښواخلاقوخاوندوي اودغه مريی يې هم په اخلاص اوربښتونولي خدمت کوي له باداره هم له احسانه پرته بل څه نهويني ﴿ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ﴾ آيابرابردي سره دغه دواړه مثلونه ؟ دمريو) يعني آياددغودواړومريونو حال چي دغه وروستی يې په خاطرجمعي اوسوکالي کي اولومړی يې په خوراغم اوبدحالي کي وي سره برابردي؟! همدغسي دموحدمؤمن حال له مشرک کافرسره نشي پرتله کېدای اوسره برابرنه دي . ابن عباس ﷺ وايې چي دغه مثال دموحدمؤمن اومشرک لپاره بيان شوی دی[1] امام رازي رحمه الله وايې چي دغه مثال دکفرد تقبيح اوتوحيد دتحسين لپاره خوراپه زړه پوري دی[2] ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ټوله ثناصفت خاص الله ته دي بلکه زياتره زياتره دخلګونه پوهېږي (پرحق باندي اوله ډېري ناپوهي له الله سره شريک نيسي) څرنګه چي مثال خوراڅرګنداوښکاره وو چي پردوی يې دليل راووړنوبې دآيت پای دالله په صفت سره ښکلی کړ.

---

[1] مختصرابن کثير ۳ / ۲۱۹

[2] التفسيرالکبير ۲۲ /۲۷۷

﴿ إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ ﴾ ببشکه چي ته هم مړکېدونکی یې او ببشکه دوی هم مړه کېدونکي دي (او له الله پرته هیڅوک هم پدې دنیا پاتي کېدونکي نه دي) ﴿ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَـٰمَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ ﴾ بیا ببشکه تاسي دقیامت په ورځ په نزد درب خپل جګړه به کوي (پخپل مینځ کي په دیني امورو، مظالمو او دنیوي چارو کي چي أحکم الحاکمین به ستاسو ترمینځ فیصله کوي

***

الله تعالی فرمایي:

﴿ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَبَ عَلَى اللَّهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ إِذْ جَاءَهُ ۚ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَـٰفِرِينَ (٣٢) وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهِ ۙ أُولَـٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ (٣٣) لَهُم مَّا يَشَاءُونَ عِندَ رَبِّهِمْ ۚ ذَٰلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ (٣٤) لِيُكَفِّرَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي عَمِلُوا وَيَجْزِيَهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ (٣٥) أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ ۖ وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِن دُونِهِ ۚ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ (٣٦) وَمَن يَهْدِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِن مُّضِلٍّ ۗ أَلَيْسَ اللَّهُ بِعَزِيزٍ ذِي انتِقَامٍ (٣٧) وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَـٰوَٰتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ ۚ قُلْ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ إِنْ أَرَادَنِيَ اللَّهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كَـٰشِفَـٰتُ ضُرِّهِ أَوْ أَرَادَنِي بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكَـٰتُ رَحْمَتِهِ ۚ قُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ ۖ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُونَ (٣٨) قُلْ يَـٰقَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَـٰمِلٌ ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ (٣٩) مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ (٤٠) إِنَّا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَـٰبَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ ۖ فَمَنِ اهْتَدَىٰ فَلِنَفْسِهِ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ (٤١) اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا ۖ فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضَىٰ عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْأُخْرَىٰ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَـٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ (٤٢) أَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ شُفَعَاءَ ۚ قُلْ أَوَلَوْ كَانُوا لَا يَمْلِكُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَعْقِلُونَ (٤٣) قُل لِّلَّهِ الشَّفَـٰعَةُ جَمِيعًا ۖ لَّهُ مُلْكُ السَّمَـٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (٤٤) وَإِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ اشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْـَٔاخِرَةِ ۖ وَإِذَا ذُكِرَ الَّذِينَ مِن دُونِهِ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ (٤٥) قُلِ اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَـٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ عَـٰلِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَـٰدَةِ أَنتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِي مَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ (٤٦) وَلَوْ أَنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لَافْتَدَوْا بِهِ مِن سُوءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَـٰمَةِ ۚ وَبَدَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا يَحْتَسِبُونَ (٤٧) وَبَدَا لَهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا كَسَبُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ (٤٨) فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَـٰنَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ إِذَا خَوَّلْنَـٰهُ نِعْمَةً مِّنَّا قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ ۚ بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (٤٩) قَدْ قَالَهَا الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ (٥٠) فَأَصَابَهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا كَسَبُوا ۚ وَالَّذِينَ

ظَلَمُوا مِنْ هَٰؤُلَاءِ سَيُصِيبُهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا وَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ﴿۵۱﴾ أَوَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿۵۲﴾ ﴾ الزمر: ۳۲ - ۵۲

**مناسبت:**

کله چي الله جل جلاله ددې يادونه وکړه چي ګرد خلګ به مري اوبيابه دقيامت په ورځ دالله په وړاندي خپلي دشرک اوتوحيد شخړي فيصله کوي اوالله به ددوی ترمينځ حکم صادروي نودلته يې دوه ډلي بيان کړي وړپسې يې دمشرکانو قباحت چي هغوی دبتانو په سپارښتنه اوشفاعت باورلارو راوسپړل.

**لغتونه:**

(مثوی) داوسېدلو ځای(يخزيه) رسواکوي اوسپکوي يې (فاطر) مبدع خالق (يحتسبون) ګمان کوي اوهيله لري ويل کېږي چي (يرزق من حيث لايحتسب) روزي مومي د(اسې) چي ګمان يې نه وي له هغه لورئ روزي ور رسېږي (حاق) ورباندي راتاوو شو(خوّلناه) چي موږ دفضل اوکرم له مخي ورېښلی (معجزين) له عذابه خلاصېدونکي (يقدر) چي تنګ کړي

**تفسير:**

﴿ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَبَ عَلَى اللَّهِ ﴾ پس څوک دی ډېر ظالم ؟(بلکه نشته) له هغه چاچي پرالله دروغ تړي (په نسبت کولود شريک او نسبت دزوی ده لره) ﴿ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ إِذْ جَاءَهُ ﴾ اودروغ شمېري رښتياخبره(قرآن) کله چي راشي ده ته (نوبې له سوچ اوفکره هغه دروغ وبولي استفهام انکاري اودنفی په معنادی يعني تردې سړي بل پورته ظالم نشته دی ترګردو ظالمانوسترظالم دی ﴿ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكَافِرِينَ ﴾ آيانشته په دوزخ کي ځای لپاره دکافرانو استفهام دلته تقريري دی معناداچي (بلکه شته) ﴿ وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهِ ﴾ اوهغه چي راغي په (خبري) رښتياسره (چي انبياء دی) اوهغه (مؤمنان) چي رښتيايې وشمېرله دغه (خبره) ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴾ دغه کسان هم دوی دي پرهېزګاران (له معاصيو ) دوی دصلحيت اهل اودتول احسان اواکرام مستحق دي ﴿ لَهُم مَّا يَشَاءُونَ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ شته دوی ته (په جنت کي ) هرهغه (نعمت) چي دوی يې غواړي په نزدد رب ددوی (له حورو، مانيو، ملذاتواونعمتونو څخه )﴿ ذَٰلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ ﴾دغه(مذکورکرامت )دمحسنانونيکوکارانوجزا ده. خيني مفسرينوليکلي چي ﴿ وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ ﴾ څخه مرادمحمد رسول الله دی اومرادله ﴿ وَصَدَّقَ بِهِ ﴾ څخه ابوبکرﷺ دی (۱) خوغوره دادی چي پدغه صفت کي ګرد انبياء عليهم السلام شريکان شي اوټول هغه کسان چي ددغه رښتياخبري لپاره په عقيده اوايمان باندي دعوت کوي ګډ شي

(۱) ددې روايت له مجاهداوقتاده څخه شوی اوغوره داده چي آيت په عامو پيغمبرانو اومؤمنانو کي وي

چي پرې باندي داكلام هم دلالت كوي چي: ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ ٱلْمُتَّقُونَ ﴾ چي دجمعي صيغه راغلې ده
اودغه دابن عطيه رايه هم ده ﴿ لِيُكَفِّرَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ أَسْوَأَ ٱلَّذِي عَمِلُوا ﴾ لپاره ددې چي ورژوي (توى
كړي) الله له دوى نه بدترد هغو گناهونو چي كړي يې وي (او ورته بخښنه وكړي) ﴿ وَيَجْزِيَهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ
ٱلَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ اوچي جزاء وركړي (الله) دوى ته اجرددوى په سبب دهغه ډېرښه عمل چي وو
دوى چي كاووبه يې (په دنياكي) فضلامنه وكرمًا مفسرين كرام وايې عدل خودادى چي حسنات
اوسيئات وشمېرل شي اوبياجزاء وركول شي خوفضل دادى چي الله پخپلو متقيانوبندگانوباندي تجلي
وفرمايې اوبدعملونه يې ورژوي دبديوپه تله كي يې هيڅ هم پاتي نشي اويوازي دنېكي ثواب وركول
شي اوهغه ورزيات شي نودنېكي پله يې شېوه شي اودغه دزيات كرم اواحسان ننښه ده ﴿ أَلَيْسَ ٱللَّهُ
بِكَافٍ عَبْدَهُۥ ﴾ آيا كافي نه دى الله بس كېدونكى دبنده خپل (بلكه كافي دى) همزه دتقريري استفهام
لپاره دى يعني آياالله دخپل پيغمبراوبنده محمد ﷺ لپاره د كافرانود شردفع كولولپاره كافي نه دى؟
ابوالسعودوايې چي دغه دقريشودهغي ويناپه هكله دى چي رسول الله ته يې ويل يابه
زموږدخدايانو(بتانو) له ښكنځلولاس اخلې اوكه نه دهغوى آزاربه درپسې شي اوتابه لېونى كړي نودغه
آيت درسول الله ﷺ لپاره دډاډينه اوتسليت نازل شويعني الله دخپل بنده لپاره كافي دى اواضافت دبنده
الله ته درسول الله لپاره سترتشريف اوتعظيم دى [1] ﴿ وَيُخَوِّفُونَكَ بِٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦ ﴾ اووېروي
(كفاراى محمده) تاپه هغوبتانو(چي عبادت يې كوي كفار) بې له الله (كوم چي نه گټه رسوي اونه تاوان
دفع كوي) ﴿ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنْ هَادٍ ﴾ اوهرڅوك چي الله يې گمراه كړي پس پيدابه نشي دي
(گمراه) ته هيڅ څوک سمه لاره ښوونكى ﴿ وَمَن يَهْدِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّضِلٍّ ﴾ اوهرچاته چي الله سمه لاره
وښيي پس نشته ده ته هيڅوک گمراه كونكى ﴿ أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِعَزِيزٍ ذِى ٱنتِقَامٍ ﴾ (آياندى الله ډېرزبردست
غالب اوقوي څښتن دبدل اخيستلو؟ (بلكه دى) يعني دالله ﷻ دربارته چي څوک پناه وروړي نوالله ﷻ
دهغه له دښمنانوڅخه ډېرښه كسات اخيستونكى دى هيڅوک الله ﷻ مغلوبولاى نشي په آيت شريف
كي دمشركانولپاره وعيد اود مؤمنانولپاره زېرى شته ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ
لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ ﴾ اوخامخاكه وپوښتې ته (اى محمده) له دغو(مشركانو) چي چاپيداكړي دي داآسمانونه
اوځمكي؟ نوخامخاوبه وايې چي الله (پيداكړي دي) دغه آيت شريف دبت پرستانودعقيدې په بطلان
باندي دليل اوبرهان دى چي يوازي الله ﷻ دځمكي اوآسمانونو پيداكونكى ذات دى. امام رازي وايې
چي دقادرحكيم ذات په وجودباندي علم دجمهورو خلگوپه وړاندي دشک اوشبهې ځاى نه دى دعقل
فطرت ددغه علم په سموالي شاهدي وركوي ځكه يوڅوک چي دځمكي اوآسمانونوپه عجيبه احوالوكي
فكروكړي يادنباتاتواوحيواناتوعجائبات وڅېړي، ياد انسان دبدن دغړواونادرو حكمتونوپه باب

(1) البحر المحيط ۷ / ۴۲۹

سوچ وکړي اومصلحتونه يې وپېژني نوخامخابه دحکيم، قادراورحيم ذات په وجودباندي اعتراف کوي څکه نومشرکانوهم دالله په وجوداقرارکاوو(۱) ﴿ قُلْ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ (ووايه (اى محمده) دوى ته آياپس وينى تاسي هغه بتان چي بولى (عبادت يې کوى) تاسي بې له الله) دغه وينادتوبيخ اوتبکيت لپاره ده يعني وروسته له دې چي تاسوته داثابته شوه چي دګردعالم پيداکونکى ذات الله دى نوبياراوښيئ دغه ستاسوبتان چي پرته له الله يې عبادت کوى ﴿ إِنْ أَرَادَنِيَ ٱللَّهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كَـٰشِفَـٰتُ ضُرِّهِۦٓ ﴾ که چېري ماته الله دضرر رسولواراده وفرمايې آياداًبتان دي ليري کونکي دضرردهغه (الله له ماڅخه؟بلکه نه دى ﴿ أَوْ أَرَادَنِي بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكَـٰتُ رَحْمَتِهِۦ ﴾ ياکه چېري (الله) اراده وفرمايې له ماسره درحمت (دنفعي رسولو) آيادى دغه (بتان) منع کونکي درحمت دالله؟ (له مانه بلکه نه دي ) خواب پدي کي محذوف دى يعني ژردى چي دوى به ووايې نه!دغه بتان نه ضررليري کولاى شي اونه نفع رسول دالله منع کولاى شي(۲) ﴿ قُلْ حَسْبِيَ ٱللَّهُ ۖ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ﴾ ووايه (اى محمده دوى دوى ته ) زماالله بس دى خاص په همدغه الله توکل کوي توکل کونکي ، مقصدله دې څخه پردوى باندي احتجاج کول دي چي دغه بتان نه ضرررسوي اونه ګټه اوهمداسي دالله ﷻ په وحدانيت باندي برهان قائمول دي ﴿ قُلْ يَـٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ ﴾ ووايه(اى محمده !) اى زماقومه عمل کوئ تاسي پخپل ځاى( دمکر فريب اوتېرايستلو) ﴿ إِنِّى عَـٰمِلٌ ۖ ﴾ زه هم عمل کونکى يم (پخپله طريقه ددعوت اوبلني) ﴿ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ ﴾ پس ژردى معلوم به کړي تاسي (زمااوتاسونه) هرهغه چي رابه شي هغه ته داسي عذاب چي وبه يې شرموي (رسوابه يې کړي ) ﴿ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴾ اونازل به شي پرده عذاب تلپاتي (چي داورعذاب دى آيادغه عذاب به ماته او که تاسوته رسېږي؟ غرض له دې نه ددوى تهديددى. ابوالسعودوايې چي په آيت شريف کي دوعيدمبالغه ده اوددې خبرتياده چي دعليه السلام حال ورځ په ورځ دالله په تائيداونصرت قوت مومي اوداچي الله بې ګړى په ګړى دښمنان رسواکوي ددې دليل دى چي الله به خپل نازولي استازي ته برى ورکوي اوهمداسي الله ﷻ مشرکان دبدرپه ورځ معذب اُووشرمول(۳) ﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْكِتَـٰبَ لِلنَّاسِ بِٱلْحَقِّ ﴾ بېشکه موږنازل کړى کتاب پرتا(قرآن) دپاره دانتفاع دټولو) خلګوپه حقه سره (چي څرګنددى له باطل سره ګډېدونکى نه دى) ﴿ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ ﴾ پس هرچاچي سمه لاره وموندله پس نفع يې ده لره ده اوهرڅوک چي ګمراه شوپس بېشکه همداخبره ده چي ګمراه کېږي پخپل ځان (چي دګمراهي ضررګالي) ﴿ وَمَآ أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ ﴾ اونه يې ته پردوى ساتونکى (چي په

---

(۱) تفسيرکبير ۲۶ / ۲۸۲

(۲) القرطبي ۱۵ / ۲۵۹

(۳) ابوالسعود ۴ / ۳۶۰

زوره یې دایمان راوړلو ته مجبور کړې. صاوي وایې چې پدې کې درسول الله لپاره توصیه ده چې ددوی لاربښوونه ستاپه لاس کې نه ده چې په زوره ایمان ورباندې وتپې بلکه دغه زموږپه لاس کې دی که وغواړو هدایت به ورکوو او که مو اراده وشوه همداسې به یې په ګمراهۍ کې پرېږدو([1]) ﴿ ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا ﴾ الله راکاږي (قبضوي) نفسونه په وخت دمرګ ددوی (کله چې یې اجل راورسي اووفات یې وي) ﴿ وَٱلَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا ﴾ او هغه نفس چې نه وي مړ (هغه راکاږي) په خوب دهغه کې (چې دغه ته وفات صغری وایي په التسهیل کې وایې چې دغه آیت شریف دعبرت لپاره دی معنایې داده چې الله په دوه ډوله خلګ مره کوي یودا چې کامل مرګ اووفات وي چې حقیقتامرګ دی اودوهم خوب دی چې په خوب کې هم سړی لکه مړی داسې وي نه ویني اونه اوري اوپدې باندې دالله جل جلاله داقول هم شاهد دی چې: ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِي يَتَوَفَّىٰكُم بِٱلَّيْلِ ﴾ (الانعام:۶۰) اوپه آیت شریف کې عطف دی چې تقدیریې داسې کېږي چې هغه نفسونه چې په خوب کې نه وي مړه هغه قبضوي اوراکاږي یې([2]) ابن کثیروایې چې الله دلته داااخبار فرمایې چې هغه په وجود کې څرنګه چې یې خوښه شي هغسې تصرف کوي اوهغه په وفات کبریٰ سره نفس قبضوي چې پرښتې رااستوي اود بدنونوساوي کاږي بل ډول وفات صغریٰ دی کوم چې دخوب په وخت کې وي([3]) ﴿ فَيُمْسِكُ ٱلَّتِي قَضَىٰ عَلَيْهَا ٱلْمَوْتَ ﴾ پس وساتي هغه (نفس) چې حکم کړی پرهغه دمرګ (نوبیرته یې بدن ته نه راستنوي) ﴿ وَيُرْسِلُ ٱلْأُخْرَىٰٓ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ (اوبیرته رالېږي (بدن ته) هغه بل (نفس) ترښتې په نامه کړی شوي پورې) یعني هغه دوډ وکسانو ساګاني دوینېدلوپه وخت کې بیرته دهغوی بدنونوته راپرېږدي ترڅوچې یې اجل رارسي هغه چې دحقیقي مرګ معلومه نېټه ده؛ ابن عباس ﷺ وایې چې دمړواوژوندوساګاني او ارواح په خوب کې سره یوځای کېږي اوکومې چې دالله خوښه شي یوله بله تعارف کوي اوکله چې بیرته دراستنېدلولپاره تکل وکړي نوالله دحقیقي امواتوساګاني له ځانه سره وساتي اودژوندیو کسانو بیرته دهغوی بدنونوته ولېږي([4]) قرطبي وایې په آیت شریف کې دالله په سترقدرت باندې تنبیه ده چې دغه الله چې احیاء اواماتت یې په واک کې دی په الوهیت کې منفرد دی دغه ذات هرڅه چې یې خوښه شي ترسره کوي یې پداسې کارونوله هغه ﷻ پرته بل څوک قدرت نلري([5]) څکه فرمایې: ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ بېشکه په دغه (عجیب قبض ، امساک اوارسال) کې ځامخاډېر دلائل دقدرت دي دپاره دهغه قوم چې فکرکوي (اوعبرت ترې اخلي) ﴿ أَمِ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ شُفَعَآءَ ﴾ آیانیولي دي دغو (مشرکانو) شفاعتګران؟) (أم) داضراب لپاره دی معناداچې دالله په قدرت کې خوېږ فکرونکړبلکه بتان یې لا ، الله ته سپارښت

([1]) دصاوي حاشیه پرجلالین باندي ۳/ ۳۷۴

([2]) التسهیل ۳/ ۱۹۲

([3]) مختصرابن کثیر ۳/ ۲۲۲

([4]) القرطبي ۱۵/ ۲۶۰

([5]) القرطبي ۱۵/ ۲۶۰

کونکي نيولي ددوی جهالت اوحماقت ته وګورئ چي داسي څيزچي هيڅ څواک نلري دوی يې شفاعتګران مني. ابن کثير وايې چي دغه دمشرکانوبدي بيانوي چي دوی له الله پرته بتان هغه چي دوی له خانه بې له کوم دليل اوبرهانه څخه غوره کړي نه عقل لري اونه اوري نه ويني بلکه داسي جمادات دي چي ترڅړوحيواناتو بدتردي (۱) په شفاعت کولومني ﴿ قُلْ أَوَلَوْ كَانُوا۟ لَا يَمْلِكُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَعْقِلُونَ ﴾ (ووايه (ای محمده دوی ته ) آيااګرکه وي دوی پداسي حال کي چي مالکان نه وي دهيڅ شي اونه عقل لري ؟) يعني اګرکه دوی جمادات اوعقل نلري چي ستاسي عبادت ورته معلوم شي بيايې هم تاسوشفاعتګران نيسی؟) ﴿ قُل لِّلَّهِ ٱلشَّفَـٰعَةُ جَمِيعًا ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته !) خاص الله ته (اختيارد ) شفاعت دی ټول (اوبل هيچالره دخل نشته چي بې دالله له اذنه شفاعت وکړي) ﴿ لَّهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ خاص الله لره دی سلطنت دآسمانونواوځمکي ، بيضاوي وايې چي الله مالک الملک دی کله چي دالله اذن اوخوښه نه وي هيڅوک دالله په حکم کي دخبروکولوڅواک نلري (۲) ﴿ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ بياخاص همده ته بيرته بېول کېږی (دقيامت په ورځ چي هلته به الله پخپل عدل ستاسوترمينځ حکم کوي اوهرچاته به له خپلو کړو سره سمه جزاورکړي وريسې الله ددوی يوبل ناولی کارداسي بيانوي ﴿ وَإِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَحْدَهُ ٱشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ اوپه هغه وخت کي چي يوازي الله يادکړی شي (ددوی ترمخ وويل شي چي: (لااله الاالله ) نومنقبض شي وترهېږي زړونه دهغوکسانوچي ايمان په آخرت نه راوړي ﴿ وَإِذَا ذُكِرَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦٓ إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴾ اوپه هغه وخت کي چي يادکړی شي هغه (بتان) بې له دغه (الله) ناڅاپه دوی خوشحالېږي (مخونه يې رڼه اوتندی يې له خوښي پرانستل شي ، امام فخر رازي وايې چي دغه دمشرکانويوبل ناوړه فعل دی کله چي ته يوازي الله يادکړې اووايې چي: لااله الاالله وحده لاشريک له ) نوددوی په مخونواوزړونوکي کرکه اونفرت ښکاره شي اوچي کله بتان يادکړې نوددوی له سينواومخونوڅخه دخوښي ننبي نښانې ځرګندي شي اودغه ددوی په جهل او حماقت باندي دلالت کوي ځکه چي دالله ذکردښکمرغيوپيل اودښکيوسردی اودبتانويادونه بيادناپوهي اوبدمرغي پيلامه ده نودوی چي دالله په يادوذکرخفه کېږي اودبتانوپه هغي خوښېږي دغه ددوی دسترجهل اوپلن حماقت ننبه او دليل دی (۳) ﴿ قُلِ ٱللَّهُمَّ فَاطِرَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ووايه (ای محمده !) ای الله پيداکونکي دآسمانونو اوځمکي ﴿ عَـٰلِمَ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَـٰدَةِ ﴾ ای عالمه خبرداره په پټواوښکاره وو ﴿ أَنتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِى مَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ ته حکم (فيصله) کوې (په قيامت کي) په مينځ دبندګانوخپلوکي په هغو(چارو ) کي چي وو دوی پکي اختلاف به يې

(۱) مختصرابن کثير۳ / ۲۲۴

(۲) دبيضاوي تفسير۲ / ۱۵۴

(۳) کبيرتفسير۲۲ / ۲۸۲

کاوو(نوفیصله وکړه زمااوددغومشرکانوترمینځ ا، په البحرالمحیط کي راوړي چي کله الله ددوی دکم
عقلي ځخه اخبار وفرمایوچي دغه مشرکان دالله دیادولوپه وخت کي کرکه کوي اودبتانودیادولوسره
تندی ورین کړي نوبې خپل پیغمبرته حکم وکړ چي الله پخپلولورو نومونوسره چي قدرت اوعلم دی
وبولي ترڅو دده اودښمنانوترمینځ یې فیصله صادره کړي په آیت شریف کي دمشرکانولپاره
وعیداودرسول الله لپاره تسلیت اوډاډینه ده (۱)صاوي وایې معناداچي الله ته په زاري اوخشوع التجاء
وکړه چي هغه په هرڅه باندي قادردی (۲) ﴿ وَلَوْ أَنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ که چیرې بېشکه مملوک شي
دهغوکسانوچي (پخپل ځان یې په کفرسره ) ظلم کړی دی ﴿ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ ﴾ هغه
(مالونه) چي په ځمکه کي دي ټول اوپه مثل دهغه نوروسره ﴿ لَافْتَدَوْا بِهِ مِن سُوءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾
نوخامخافدیه به ورکړي دوی په هغه سره له بدرنګه عذابه دقیامت په ورځي کي ﴿ وَبَدَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مَا لَمْ
يَكُونُوا يَحْتَسِبُونَ ﴾ اوښکاره به شي دوی ته له جانبه دالله هغه (عذاب) چي نه وودوی چي (دهغه ) ګمان به
یې کاوو، ابوالسعودوایې چي دغه داسي سترو عیددی چي ترې پورته بل نشته اودهغه په مثل
وعداوزېری دادی چي (۳) ﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ ﴾ (السجدة ۱۷ ) ﴿ وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا
كَسَبُوا ﴾ اوښکاره به شي دوی ته (جزاء د ) بدي دهغواعمالو چي دوی کړي وو ﴿ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا
بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴾ اوچاپېره نازل به شي په دوی (جزاد ) هغه شیزچي وودوی چي په هغه پوري به یې
مسخرې کولې ، ابن کثیروایې معناداچي چاپېره به شي پردوی هغه عذاب اوسزاچي دوی به په دنیاکي
وریاندي مسخرې کولې(۴) ﴿ فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ﴾ پس کله چي ورسېږي (کافر) انسان ته څه قسم
ضرر (کړاو سختي) نو بولي موږ (دفع دهغه ته) ﴿ ثُمَّ إِذَا خَوَّلْنَاهُ نِعْمَةً مِّنَّا ﴾ بیاکله چي ورکړوموږده ته
کوم نعمت له (جانبه) خپله (په فضل اوکرم سره ) ﴿ قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ ﴾ وایې بېشکه همدا خبره ده
چي را کړی شوی دی ماته دغه (نعمت) په سبب دپوه (زماچي زه په کسب اوسوداګري کي پیاوړی او
غښتلی یم ) ﴿ بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ ﴾ (نه ده داسي) بلکه دغه (ورکړه دنعمت) فتنه امتحان ازموینه ده (چي
آیادی زموږ اطاعت کوي اوکه عصیان غوره کوي) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ولیکن اکثرددوی نه
پوهېږي (چي دغه اعطاء دنعمت یوه ابتلاء ده نوځکه دوی تکبرکوي) ﴿ قَدْ قَالَهَا الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ په
تحقیق ویلي ده دغه خبره هغوکسانو(چي تېرشوي دي ) پخواله دوی نه (لکه قارون اونورچي ویل به یې

---

(۱) البحرالمحیط ۷/۴۳۲
(۲) دصاوي حاشیه ۳/۳۵۷
(۳) دابوالسعود تفسیر ۴/۳۱۷
(۴) مختصرابن کثیر ۳/۲۲۴

﴿ قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِيٓ ﴾ (القصص:۷۸)﴿ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴾ پس هيڅ قدر دفع دعذاب ونکړه له دوی څني هغه (دنيوي مال اومتاع) کوم چي وودوی دهغه (دګټي) کسب به يې کاوو ﴿ فَأَصَابَهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا كَسَبُوا۟ ﴾ پس ورسېدو هغو (پخوانيو) ته (جزاء دهغوبدو) اعمالوچي دوی به کول ﴿ وَٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ اوهغه کسان چي ظلم يې کړی دی (په اختيارولود شرک) له دغه (قومه ستاقريشوڅخه) ﴿ سَيُصِيبُهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا كَسَبُوا۟ ﴾ ژردی چي وبه رسېږي دوی ته (جزاء د) بديو دهغو اعمالو چي دوی کړي دي (لکه چي هغه نوروته رسېدلي وه بيضاوي وايې چي همدغه جزا ورته هم ورسېدله چي اوه کاله پرله پسې کاختي اولوږه ورباندي راغله دمرګوغوښي يې وخوړلي اومشران يې په بدر کي ووژل شول (۱)) ﴿ وَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ﴾ اونه دي دوی (زموږ) عاجز کونکي (چي له عذابه موخلاص شي يا وتښتي بيا ورباندي پدې هکله ردکوي چي دوی ګمان کوي دغه پراخي دنعمت ددوی دسوکالي لپاره دی فرمايې ﴿ أَوَلَمْ يَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ ﴾ آيانه پوهېږي دوی په دې چي بېشکه الله پراخوي روزي هرهغه چاته چي اراده وفرمايې (او تنګوي يې) په نوروڅکه چي ددنيادورکړي اومنعي چاري ديوچاترذکاوت اوغباوت پوري اړه نلري بلکه دغه دحکمت دوېش خبره ده ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ بېشکه په دغه (بسط اوقبض) کي خامخا ډېردلائل (دقدرت) دي دپاره د(هغه) قوم چي ايمان راوړي (دالله په آيتونو) قرطبي وايې چي مؤمن يې څکه خانګړی يادکړچي هغه په آيتونوکي تدبرکوي او ورباندي نفع اخلي اوپدې پوهېږي چي کله کله دروزي پراختيااستدراج لپاره وي اوکله کله مسکنت اوبې وزلي ديوچادااعظام اودرناوي لپاره هم وي (۲)

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ قُلْ يَٰعِبَادِىَ ٱلَّذِينَ أَسْرَفُوا۟ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا۟ مِن رَّحْمَةِ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَغْفِرُ ٱلذُّنُوبَ جَمِيعًا ۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ (۵۳) وَأَنِيبُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا۟ لَهُۥ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ (۵۴) وَٱتَّبِعُوٓا۟ أَحْسَنَ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلْعَذَابُ بَغْتَةً وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ (۵۵) أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَٰحَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِى جَنۢبِ ٱللَّهِ وَإِن كُنتُ لَمِنَ ٱلسَّٰخِرِينَ (۵۶) أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ ٱللَّهَ هَدَىٰنِى لَكُنتُ مِنَ ٱلْمُتَّقِينَ (۵۷) أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى ٱلْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِى كَرَّةً فَأَكُونَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ (۵۸) بَلَىٰ قَدْ جَآءَتْكَ ءَايَٰتِى فَكَذَّبْتَ بِهَا وَٱسْتَكْبَرْتَ وَكُنتَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ (۵۹) وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ تَرَى ٱلَّذِينَ كَذَبُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ وُجُوهُهُم مُّسْوَدَّةٌ ۚ أَلَيْسَ فِى جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِينَ (۶۰) وَيُنَجِّى ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ بِمَفَازَتِهِمْ لَا يَمَسُّهُمُ

(۱) دبيضاوي تفسير ۲ / ۱۵۲
(۲) دقرطبي تفسير ۱۵ / ۲۴۷

ٱلسُّوٓءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦١﴾ ٱللَّهُ خَـٰلِقُ كُلِّ شَىْءٍ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ وَكِيلٌ ﴿٦٢﴾ لَّهُۥ مَقَالِيدُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۗ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ أُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَـٰسِرُونَ ﴿٦٣﴾ قُلْ أَفَغَيْرَ ٱللَّهِ تَأْمُرُوٓنِّىٓ أَعْبُدُ أَيُّهَا ٱلْجَـٰهِلُونَ ﴿٦٤﴾ وَلَقَدْ أُوحِىَ إِلَيْكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكَ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴿٦٥﴾ بَلِ ٱللَّهَ فَٱعْبُدْ وَكُن مِّنَ ٱلشَّـٰكِرِينَ ﴿٦٦﴾ وَمَا قَدَرُوا۟ ٱللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِۦ وَٱلْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ وَٱلسَّمَـٰوَٰتُ مَطْوِيَّـٰتٌۢ بِيَمِينِهِۦ ۚ سُبْحَـٰنَهُۥ وَتَعَـٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٧﴾ وَنُفِخَ فِى ٱلصُّورِ فَصَعِقَ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ ۖ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ ﴿٦٨﴾ وَأَشْرَقَتِ ٱلْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا وَوُضِعَ ٱلْكِتَـٰبُ وَجِا۟ىٓءَ بِٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَقُضِىَ بَيْنَهُم بِٱلْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٦٩﴾ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٧٠﴾ وَسِيقَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَٰبُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَآ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَتْلُونَ عَلَيْكُمْ ءَايَـٰتِ رَبِّكُمْ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَـٰذَا ۚ قَالُوا۟ بَلَىٰ وَلَـٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ ٱلْعَذَابِ عَلَى ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴿٧١﴾ قِيلَ ٱدْخُلُوٓا۟ أَبْوَٰبَ جَهَنَّمَ خَـٰلِدِينَ فِيهَا ۖ فَبِئْسَ مَثْوَى ٱلْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٧٢﴾ وَسِيقَ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ رَبَّهُمْ إِلَى ٱلْجَنَّةِ زُمَرًا ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَٰبُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَـٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَٱدْخُلُوهَا خَـٰلِدِينَ ﴿٧٣﴾ وَقَالُوا۟ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى صَدَقَنَا وَعْدَهُۥ وَأَوْرَثَنَا ٱلْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ ٱلْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ ۖ فَنِعْمَ أَجْرُ ٱلْعَـٰمِلِينَ ﴿٧٤﴾ وَتَرَى ٱلْمَلَـٰٓئِكَةَ حَآفِّينَ مِنْ حَوْلِ ٱلْعَرْشِ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۖ وَقُضِىَ بَيْنَهُم بِٱلْحَقِّ وَقِيلَ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿٧٥﴾ ﴾ الزمر: ٥٣ ـ ٧٥

## مناسبت:

کله چي الله دفجارومشرکانواحوال یادکړل اوهغه څه یې څرګندکړل کوم چي هغوی به په آخرت کي په سپکاوي اوذلت کي اوسي نوبیایې مؤمنانوته دتوبې اورجوع کولوبلنه ورکړه چي پخواتردې چي فرصت یې له لاسه ووزي الله ته دي انابت وکړي اودسورت پای یې دقیامت په ورځ دالله په جلال اوعظمت باندي هلته چي الهي عدل اوانصاف حکم فرما وي اومؤمنان ډلي ډلي جنت ته اوبدمرغه کسان اورته دورمي وستایوچي ﴿ وَسِيقَ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ رَبَّهُمْ إِلَى ٱلْجَنَّةِ زُمَرًا ﴾ دآيت ترپايه.

## لغتونه:

(بغتة) نابېره ناڅاپه (مثوی) هستوګنځی (مقاليد) خزانې اوکلیګاني (زمرا) تولی تولی (خزنتها) څارونکي مؤکلين (نتبوأ) مېشت کېږو موږ ځای نیسو (حافين) ګردچاپېر راتاووشوي

## تفسیر:

﴿ قُلْ يَٰعِبَادِيَ ٱلَّذِينَ أَسْرَفُواْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ ﴾ ووايه (اى محمده چي الله فرمايي) اى زما(مؤمنانو) بندګانو هغو کسانو چي اسراف يې کړی په نفسونو خپلو (په ګناهونو سره) ﴿ لَا تَقْنَطُواْ مِن رَّحْمَةِ ٱللَّهِ ﴾ مه نااميده کيږئ له رحمته د الله (او مغفرت څخه يې) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَغْفِرُ ٱلذُّنُوبَ جَمِيعًا ﴾ بېشکه چي الله مغفرت کوي بښي ټول ګناهونه (له شرکه پرته که څه هم لکه د سيند ځګونه وي) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ بېشکه چي الله هم دی ډېر بښونکی (د خطيئاتو) ډېر رحم والادی (ظاهر د آيت داسي معلومېږي چي دغه مؤمنانو ته د نااميدي نه کولو لپاره بلنه ورکول دي ځکه چي الله فرمايي: ﴿ قُلْ يَٰعِبَادِيَ ﴾ او ابن کثير وايي چي دغه د ګردو ګناهکارانو لپاره که څه هم کفار وي د توبې او انابت لپاره بلنه ورکول دي او ودې اخباردی چي الله ګرد ګناهونه که هرڅومره زيات هم وي هرکله چي څوک توبه ګارشي او رجوع وکړي بښي (۱) ﴿ وَأَنِيبُوٓاْ إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُواْ لَهُۥ ﴾ او بېرته وګرځئ تاسي رب خپل ته (له شرک او عصيانه) او ده ته غاړه کېږدئ) ﴿ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلْعَذَابُ ﴾ تر پخوا له هغه چي راشي تاسي ته عذاب (د الله) ﴿ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ﴾ بيا به درسره مددنشي کولای (په دفع د عذاب کي يعني څوک به پيدا نکړئ چي د الله عذاب درڅخه منع کړي (۲) ﴿ وَٱتَّبِعُوٓاْ أَحْسَنَ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُم ﴾ (او متابعت وکړئ ډېر غوره حکم د هغه (قرآن) چي نازل کړی شوی دی تاسي ته له (جانبه د رب ستاسي) يعني د قرآن عظيم د اوامرو په امتثال او له نواهيو څخه په اجتناب کولو باندي متابعت وکړئ چي دغه تر ټولو غوره کتاب دی چي تاسو ته د الله له لوري نازل شوی دی او ستاسي فلاح او سعادت پکې دی ﴿ مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلْعَذَابُ بَغْتَةً وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ﴾ پخوا له هغه چي راشي تاسي ته عذاب يوناڅاپه حال دا چي تاسي به نه پوهېږئ (چي له کومه لوري راغی چي مخنيوی يې وکړئ) ﴿ أَن تَقُولَ نَفْسٌ ﴾ تر څو نه وايي (ځيني) نفسونه (چي ګناهونه يې کړي وی) ﴿ يَٰحَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِى جَنۢبِ ٱللَّهِ ﴾ اى افسوس او ندامت مي دی په هغه تقصير چي کړي مي دي په طرف (د حق د طاعت) د الله مجاهد وايي معنا دا چي افسوس مي دی په هغه چي د الله امر مي نه دی په ځای کړی (۳) ﴿ وَإِن كُنتُ لَمِنَ ٱلسَّٰخِرِينَ ﴾ او بېشکه چي وم زه خامخاله مسخره کونکيو (په شريعت او دين د الله کي. قتاده وايي معنا دا چي يوازي بي طاعت ضائع کړی نه و وبلکه په اهل باندي يې ملندي هم وهلې ﴿ أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ ٱللَّهَ هَدَىٰنِى لَكُنتُ مِنَ ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ يا دا چي ووايي (کافر، فاجر) که داسي وای چي بېشکه الله سمه لاربښوولي وای ما ته

---

(۱) د صاوي حاشيه ۳ / ۳۷۲

(۲) د ابن کثير مختصر ۳ / ۲۲۷ - کشاف ۴ / ۱۰۵

(۳) القرطبي ۱۵ / ۲۷۱

نوخامخاوم به زه له متقيانوپرهېزګارانو، ابن کثيروايي چي مجرم به داسي آرمان کوي اووايي به کاشکي چي له مخلصينو، مطيعينواومحسنينوڅخه واى (۱)﴿أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى ٱلْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِى كَرَّةً فَأَكُونَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ ياچي ووايي (نفس) په هغه وخت کي چي ووينې عذاب کاشکي واى ماته بيرته ورتګ (دنياته) چي وم به زه هلته له نيکوکارانو﴿ بَلَىٰ قَدْ جَآءَتْكَ ءَايَٰتِى ﴾(هو! داسي ده چي په تحقيق راغلي ووتاته دلائل (نبيان اوکتابونه )زما) دغه دهغي ويناځواب دى کوم چي﴿ لَوْ أَنَّ ٱللَّهَ هَدَىٰنِى ﴾ ده معناداچي تاته خوپيغمبران اوکتابونه راغلي وو﴿ فَكَذَّبْتَ بِهَا وَٱسْتَكْبَرْتَ وَكُنتَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ پس تکذيب کړى ووتاپه هغوسره اوتکبردي کړى وو(له ايمانه) اووې ته له کافرانو(نه منونکو) صاوي وايي چي کافربه لومړى ځل افسوس کوي بيابه سست اوناکاره دلائل بيانوي وروسته به دنياته دبيرته تللوآرمان اوهيله کوي(۲) اوکه چېري دنياته راوګرزي هم به خپله ګمراهي غوره کړي لکه چي الله فرمايي﴿ وَلَوْ رُدُّوا۟ لَعَادُوا۟ لِمَا نُهُوا۟ عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴾ (الأنعام: ۲۸) ﴿ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ تَرَى ٱلَّذِينَ كَذَبُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ وُجُوهُهُم مُّسْوَدَّةٌ ﴾ اوپه ورځي دقيامت کي به وويني ته هغه کسان چي په الله پوري بې دروغ ترلي دي چي مخونه ددوى به تور کړى شوي وي(ځکه چي الله ته يې نسبت دشريک اوولد کړى وو) ﴿ أَلَيْسَ فِى جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِينَ ﴾ آيانشته په دوزخ کي ځاى لپاره دمنکرانو(کافرانو؟ بلکه شته! دوى لره هستوګنځى په دوزخ کي کله چي الله پاک دمجرمينوحال بيان کړ وروسته دمتقيانوحال داسي بيانوي چي﴿ وَيُنَجِّى ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ بِمَفَازَتِهِمْ ﴾ اووبه ساتي الله (له دوزخه) هغه کسان چي ځان بې ساتلى وي (له شرکه) په سبب دخلاصي موندلو(اوبري) ددوى (په جنت سره) ﴿ لَا يَمَسُّهُمُ ٱلسُّوٓءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ نه به رسېږي دوى ته سختي اونه به دوى غمجن کېږي بلکه دوى به په امن وي﴿ فِى مَقْعَدِ صِدْقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴾(القمر: ۵۵)وروسته له دې چي په پراخه پېمانه وعداووعيدذکر شوالله دالوهيت او توحيددلائلوته راګرزي فرمايي﴿ ٱللَّهُ خَٰلِقُ كُلِّ شَىْءٍ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ وَكِيلٌ ﴾ الله پيداکونکى دهرڅېزدى اودغه الله په هرڅېزوکيل (ساتونکى متصرف) دى﴿ لَّهُۥ مَقَالِيدُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ خاص هم دغه (الله) لره دي کليګاني (دخزانو) د آسمانونو اوځمکي (له الله پرته دبل هيڅ تصرف او ملکيت پکي نشته ) ابن عباس وايي چي:مقاليد يعني کليګاني اوسدي وايي معناداچي دالله په يد د قدرت کي خزانې دآسمانونواوځمکي دي (۳)﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ اوهغه

(۱) دابن کثيرمختصر
(۲) حاشيةالصاوى ۳۷۷-۳
(۳) القرطبي ۱۵/ ۲۷۴

چي كافران شوي دي په آيتونو (د قرآن اوځرګندومعجزاتو) دالله دغه كسان همدوى زيانكاران دي

﴿ قُلْ أَفَغَيْرَ ٱللَّهِ تَأْمُرُوٓنِّىٓ أَعْبُدُ أَيُّهَا ٱلْجَٰهِلُونَ ﴾ (ووايه (اى محمده!) آيابې له الله امركوى تاسي ماته چي عبادت بې وكړم؟ اى ناپوهانو) يعني اى محمده دوى ته ووايه چي اى جاهلانو آياوروسته له دلائلودوحدانيت دالله تاسوماته امركوى چي له الله پرته دبل چاعبادت وكړم . ابن كثيروايې چي مشركانوله ډېره جهله پيغمبرعليه السلام ته بلنه وركوله چي ددوى دبتانوعبادت له دوى سره وكړي نودغه آيت شريف نازل شو(١) ﴿ وَلَقَدْ أُوحِىَ إِلَيْكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكَ ﴾ (اوخامخاپه تحقيق وحى كړى شوي ده تاته او( وحى كړى شوي ده ) هغو كسانوته چي له تانه ړومبى وو) لام دقسم لپاره توطئه اومعناداچي والله خامخاپه تحقيق تاته او ترتا ړومبى انبياووته وحى كړى شوي ده ﴿ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ ﴾ (داسي چي قسم دى) كه شرک پيدا كړتا(فرضًا) نوخامخاخراب به شي هرومرو(صالح) عمل ستا ﴿ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ اوخامخاشي به ته هرومرو له زيانكارانوپه آخرت كي ، دغه دفرض اوتقديرپه توګه ، كه نه رسول الله ﷺ خوالله معصوم كړى دى هغه هيڅكله هم شرک نه مني بلكه هغه دايمان اوتوحيدد ماني ودانولولپاره مبعوث شوى دى. ابوالسعودوايې چي دغه دفرض اوتقديرپه توګه ويناده ترڅوچي پيغمبران وپاروي اوكافران ناهيلي كړي اودشرک نهايته زياته بدي اوقباحت وښيي (٢) ﴿ بَلِ ٱللَّهَ فَٱعْبُدْ ﴾ بلكه يوازي دالله ﷻ پس عبادت كوه (دبل چامكوه) ﴿ وَكُن مِّنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ﴾ اواوسه له شكركونكوڅخه (په نعمت د پروردګارستا) ﴿ وَمَا قَدَرُوا۟ ٱللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِۦ ﴾ اوتعظيم نه دى كړى دغو(مشركانو) دالله حق تعظيم دده( نه يې پېژندلى دى لكه چي حق دمعرفت يې دى . ابوحيان وايې معناداچي دالله ورتعظيم يې ندى تر سره كړى اونه يې دهغه قدرپرځاى كړى ځكه چي له هغه سره يې شريک نيولى اودالله اوډبري لرګي تر مينځ يې په عبادت كولوكي هيڅ توپيرنه دى كړى وربسي الله ﷻ دوى ته پخپل عظمت اوجلال باندي تنبيه وركوي فرمايې: ﴿ وَٱلْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ (اوځمكه ټوله په قبضه تصرف دده كي ده په ورځ دقيامت كي) دغه حاليه جمله اومعناداچي دوى دالله دتعظيم ورحق نه دى اداكړى او حال داچي الله په داسي قدرت اوخواک متصف دى چي هغه دعظمت اوجلال لوړه څوكه ده (٣) ځمكه سره له پراخوالي اوويرتوبه دقيامت په ورځ دالله په قدرت كي اودده په واک كي به وي ﴿ وَٱلسَّمَٰوَٰتُ مَطْوِيَّٰتٌۢ بِيَمِينِهِۦ ﴾ اوآسمانونه نغښتلى شوي وي په يمين دده كي . زمخشري وايې غرض له دې ويناڅخه پرته له دې چي دالله ﷻ دعظمت انځور (تصوير) دى اوداچي دالله دجلال په حقيقت اوكنه باندي توقيف دى بل څه نه دى (٤) نه داچي له دې

(١) مختصرابن كثير۳ /۲۲۸

(٢) دابوالسعودتفسير۴ /۳۱۴

(٣) الكشاف۴ /۱۱۰

(٤) پورتنى مرجع

قبضي څخه اوله يمين څخه دي جهت واخيستل شي ، په حديث شريف کي راځي چي: ( يقبض الله تعالى الارض ، ويطوى السمآء بيمينه ثم يقول أنا الملک أين ملوک الأرض ؟) يعني الله ځمکه رااخلي اوآسمان په يمين خپل رانغاړي اوبياوايي زه پاچايم دځمکي پاچهان چېرته دي ؟(١) ﴿ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ (پاکي ده ده ته اولوړلوى دى له هغوشيانوچي دوى يې شريکوي) (له الله سره بتان اونورشيان) يعني پاکي ده الله لره له هغو دعجزاو نقص صفاتوڅخه چي مشرکان الله ﷻ ورباندي موصوف کوي ورپسې دآخرت کړاوونه هسي فرمايي ﴿ وَنُفِخَ فِي ٱلصُّورِ ﴾ اوپوکل به وکړل شي په صورشپېلۍ کي (هغه چي دالله په حکم به اسرافيل ﷺ پکي پوکوي اومراد له دغي نفخي څخه نفخة الصعق دى کومه چي له نفخة الفزع څخه وروسته راځي. ابن کثير وايي چي دغه دوهمه نفخة ده هغه چي آسماني اوځمکني ساکنبان به پکي مري ﴿ فَصَعِقَ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ پس بېخوده مړه به شي هرهغه چي په آسمانونوکي دي اوهرهغه چي په ځمکه کي دي ﴿ إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ ﴾ مګرهغه څوک چي اراده وفرمايي الله (دنه وژلو دهغه لکه حملة العرش ، حورالعين اوجنتي (غلمان )ځلموتي خدمتګاران ) ﴿ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ ﴾ بيابه وپوکل شي په هغه صور شپېلۍ کي بل ځل (چي هغه نفخة الاحيآء ده) ﴿ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ ﴾ پس ناڅاپه دغه خلق به چي (مړه ووتول ) ولاړوي (منتظرچي څه راباندي کېږي؟) ﴿ وَأَشْرَقَتِ ٱلْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا ﴾ اوروښانه به شي ځمکه په نوردرب دهغي کله چي الله دبندګانوترمينځ دفيصلې لپاره تجلي وفرمايي ﴿ وَوُضِعَ ٱلْكِتَٰبُ ﴾ اوکتاب به کېښودل شي (عملنامې د حساب لپاره) ﴿ وَجِاْيٓءَ بِٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلشُّهَدَآءِ ﴾ (اوراتله به وکړل شي په انبياوو(محشرته) اوپه شهداووسره) يعني انبيابه را وستل شي چي پروردګار ورڅخه پوښتنه وکړي چي اُمتيانويې ځنګه اجابت کړى وو؟ اوهغه ساتونکي پرښتې به راوستل شي چي دخلګوپه اعمالوګواهي اداکړي(٢) اوسدي وايي چي مرادله شهيدانوڅخه هغه کسان دي چي دالله په لارکي يې خپل سرونه ځارکړي اوشهادت ته رسېدلي وي ﴿ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِٱلْحَقِّ ﴾ اوحکم به وکړى شي په مينځ ددوى کي په حق (عدالت) سره ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ اوپردوى به ظلم ونکړى شي (هيڅ قدرنه په تنقيص دثواب اونه هم په تزئيد دعقاب) ابن جبيروايي نه به يې له حسناتوڅه کمېږي اونه به يې په ګناهونوڅه زياتېږي ﴿ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ ﴾ اوپوره به ورکړل شي هرنفس لره (جزادهغه ) عمل چي (ده) کړى وو(له خيراو شرڅخه) ﴿ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴾ حال داچي الله ښه عالم دى پرهغواعمالوچي دوى يې کوي (نه حاجت

---

(١) أخرجه الشيخان واللفظ للبخاري

(٢) دغه دابن زيدوينااوڅرګنده ده لکه چي الله فرمايي ﴿ وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَشَهِيدٌ ﴾ سائق هغه څوک چي حساب ته يې بيايي اوشاهدبياهغه پرښتې دي چي په انسان باندي مؤکل دي.

کتاب اوعملنامې ته شته اونه شاهدته خوله دې سره سره ورباندې دحجت الزام کوي بيا الله ﷻ دنېکمرغه اوبدمرغه کسانوسرنوشت هسې بيانوي چې ﴿ وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا ﴾ اوشړل ؛کشول کېږي (په شدت سره) هغه کسان چې کافران شوي دي ددوزخ لورته ډلې ډلې (لکه چې ناروا ظالم کسان په دنياکې بنديخانوته بېول کېږي ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا ﴾ ترهغه پورې چې راشي دوی دوزخ ته حال داچې وبه پرانستلې شي دروازې ددغه دوزخ (سمدستي چې ددوی هرکلی وکړي) ﴿ وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَتْلُونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِ رَبِّكُمْ ﴾ اووبه وايې دوی ته متصرفان ددغه (دوزخ) آيانه ووراغلي تاسي ته رسولان له تاسي نه چې لوستل به دغو (رسولانو دتاسي) پرتاسي آيتونه (دآسماني کتابونو) درب ستاسي ﴿ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ﴾ اووېرول به دوی تاسي له ملاقات دهغې (سختي) ورځې ستاسي چې دغه ده ﴿ قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴾ وبه وايې (کفارچې ولې نه ووراغلي )بلکه راغلي وولېکن ثابته شوي ده کلمه (حکم) دعذاب پر کافرانو(هغوی خوراغلي وواوموږ بې وېرولي هم ووخوموږ بې تکذيب کاووا ومخالفت موترې کاوو ځکه چې موږ ازلي بدمرغان يو. قرطبي وايې چې دغه ددوی هغه اعتراف دی چې پردوی دليل دی او مرادله کلمة العذاب څخه دالله ﷻ داوينا ده چې ﴿ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾ (السجدة ۱۳)[۱] ﴿ قِيلَ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا ﴾ وبه ويل شي دوی ته ننوزي دروازوددوزخ ته پدې حال کې چې همېشه اوسېدونکي اوسئ په ده کې (نه به زوال اونه به لېږدېدل وي)﴿ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴾پس بدځای دهستوګنې دی دمتکبرانو(له ايمانه په الله اوپيغمبرداودوزخ) ﴿ وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ﴾ (اوبېول کېږي (بلل کېږي) به هغه کسان چې وېرېدل به دوی له ربه خپله (جنت ته ډلې ډلې ) يعني متقيان نېکان به دجنت په لورپه غوره اوښانوسپاره په اکرام اواعزاز درومي. قرطبي وايې چې دوزخيان به په رسوائي اوسپکاې شړل کېږي لکه چې باغيان اوسرغړونکي مجرمين خپلخانوته بېول کېږي اوجنتيان به په ډېراعزاز اونهايت اکرام سره سپاره دکرامت اورضوان ځای ته رسول کېږي لکه چې څوک شاهانه مېلمستياته بلل شوی وي نوددواړو ډلودبېولو ترمينځ دځمکي اوآسمان فرق دی ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا ﴾ ترهغه پورې چې راشي دوی جنت ته حال داچې پرانستلې شوي به وي دروازې ددغه جنت. صاوي وايې چې د(واو) زياتوالی دلته دجنت په باب چې ﴿ وَفُتِحَتْ ﴾ فرمايې: ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا ﴾ ددې لپاره مناسب دی چې ددوزخ خولکه دمحبس ډروازې تړلې وي اوکله چې مجرمين ورته راوستل شي نو ورته پرانيستل شي اوبيابيرته وتړل شي مګردخوښي اوشحالي دځای دروازې دانتظارلپاره په تعظيم

---

([۱])قرطبي ۲۸۴/۱۵

پرانیستلي وي څکه نودلته دواو راوړل مناسب دي اودجنت په باب بل ځای الله فرمايي ﴿ جَنَّتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ ٱلْأَبْوَٰبُ ﴾ (ص ۵۰) ﴿ وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَٱدْخُلُوهَا خَٰلِدِينَ ﴾ اووبه وايي دوی ته متصرفان دجنت سلام دي وي پرتاسي پاک يی تاسي (له ګناهونو) پس ننوزئ جنت ته پدي حال کي چي همېش اوسېدونکي اوسئ په ده کي. بيضاوي وايي چي د(اذا) ځواب حذف شوی څوچي پدي دلالت وکړي چي ددوی دومره وصف اودرناوی تعظيم دی چي بيان يې نشي کېدای([1])ابن کثيروايي چي تقديريې دادی کله چي دوی راشي نوبه يې سعادت په برخه شي اوخوشحالي به يې هومره وي لکه چي نعمتونه يې موندلي دي([2]) ﴿ وَقَالُوا۟ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى صَدَقَنَا وَعْدَهُۥ ﴾ اووايي به دغه (جنتيان) ټوله ثناصفت خاص الله ته دي هغه الله چي رښتني يې کړه له موږسره وعده خپله چي جنت ته يې بوتلو. مفسرين کرام وايي چي دالله دوعدي لپاره هغه الهي کلام دی چي فرمايي: ﴿ تِلْكَ ٱلْجَنَّةُ ٱلَّتِى نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَن كَانَ تَقِيًّا ﴾ (مريم ۶۲) ﴿ وَأَوْرَثَنَا ٱلْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ ٱلْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ ﴾ اوميراث يې راکړه موږته ځمکه (دجنت) چي ځای نيسوله جنته هرځای چي زموږ خوښ شي (لکه چي مالک پخپل ملک کي تصرف کوي هيڅوک زموږمخه نه نيسي) ﴿ فَنِعْمَ أَجْرُ ٱلْعَٰمِلِينَ ﴾ پس ښه دی اجرد(نېک) عمل کونکيو ددغه جنت) ﴿ وَتَرَى ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ حَآفِّينَ مِنْ حَوْلِ ٱلْعَرْشِ ﴾ او ويني به ته (ای محمده!) پرښتي (طواف کونکي) چارچاپېر نيونکي چاپېرله عرشه ﴿ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ﴾ تسبيح به وايي دوی (پيوسته) له حمده اوثنادرب ددوی سره (تلذذاً وتعبداً) ﴿ وَقُضِىَ بَيْنَهُم بِٱلْحَقِّ ﴾ اوفيصله به وشي په مينځ دخلګوکي په حق سره ﴿ وَقِيلَ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ اووبه ويلی شي چي ټوله ثناده خاص الله ته چي رب پالونکی دعالميانودی مفسرين کرام وايي چي ويونکي به مؤمنان اوکافران وي مؤمنان به دالله په فضل حمدوايي اوکافران به دالله په عدل. ابن کثيروايي چي ګردکائنات به په حمد خوله پوري کړي که ګرېدونکي وي اوکه نه څکه نوقائل نه ونومول شواومطلقاًيادونه وشوه نوداپدي دلالت کوي چي ګردمخلوقات به دالله په حمدويلوګوياشي([3])

**بلاغت:**

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

---

([1]) البيضاوي ۲/۱۴۷

([2]) دابن کثير مختصر ۳/۲۳۲

([3]) دابن کثير مختصر ۳/۲۳۳

۱- د طباق صنعت چي ﴿ إِن تَكْفُرُوا ﴾ او ﴿ تَشْكُرُوا ﴾ او ﴿ يَحْذَرُ ﴾ او ﴿ وَيَرْجُوا ﴾ او ﴿ فَوْقِهِمْ ﴾ او ﴿ تَحْتِهِمْ ﴾ او ﴿ بِضُرٍّ ﴾ او ﴿ بِرَحْمَةٍ ﴾ او ﴿ ٱلْغَيْبِ ﴾ او ﴿ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ او ﴿ يَبْسُطُ ﴾ او ﴿ وَيَقْدِرُ ﴾ او ﴿ ٱهْتَدَىٰ ﴾ او ﴿ ضَلَّ ﴾ ترمينځ راغلي دي.

۲- اشتقاقي جناس لکه چي ﴿ يَتَوَكَّلُ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ﴾ اوهمداسي پدې قول کي چي ﴿ أَحْسَنُوا فِى هَٰذِهِ ٱلدُّنْيَا حَسَنَةٌ ﴾ کي واقع شوی دی.

۳- تهکمي اسلوب چي فرمايي: ﴿ لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ ٱلنَّارِ ﴾ دلته د سيوري نسبت اورته کول تهکم او استهزاء دی ځکه چي سيوری له تودوخي او ګرمي څخه د ژغورلو لپاره وي او ر پخپله سوځونکی دی.

۴- ښکلي مقابله چي پدې کلام کي ده: ﴿ وَإِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَحْدَهُ ٱشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ ﴾ دلته د الله او بتانو ترمينځ مقابله او د خوښي او کرکي (نفرت) ترمينځ د مقابلې صنعت دی او همداسي د سعداوو او اشقياوو ترمينځ په دوو آيتونو کي مقابله ده چي ﴿ وَسِيقَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا ﴾ مقابل يې دا چي ﴿ وَسِيقَ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى ٱلْجَنَّةِ زُمَرًا ﴾ مقابله هغه څه ته وايي چي دوه مقصده او يا زيات راوړل شي او بيا يې په ترتيب نور مقابل راوړی شي چي دغه له بديعي محسناتو ګڼل کېږي.

۵- ايجاز بالحذف چي سياق و رباندي دلالت کوي لکه ﴿ أَفَمَن شَرَحَ ٱللَّهُ صَدْرَهُۥ لِلْإِسْلَٰمِ ﴾ خبر يې حذف شوي هغه دا چي (كمن طبع الله على قلبه؟) يعني آيا هغه چي سينه يې د اسلام لپاره پرانيستل شوي لکه هغه داسي دی چي په زړه يې مهر لګول شوی وي؟! همدا ډول د ايجاز بالحذف بل مثال دی چي الله فرمايي ﴿ أَمَّنْ هُوَ قَٰنِتٌ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ ﴾ چي محذوف يې دا دی (كمن هو كافر جاحد لربه) يعني هغه چي مؤمن او ټوله شپه الله ته په زاري ولاړ وي لکه هغه کافر د غسي دی چي له الله څخه منکروي؟!.

۶- هغه أمر چي مقصود ورڅخه تهديد وي لکه ﴿ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ ﴾ او يا دا چي ﴿ ٱعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ ﴾ چي په وعيد کي د مبالغې لپاره راغلي دي.

۷- مرسل مجاز چي فرمايي: ﴿ أَفَأَنتَ تُنقِذُ مَن فِى ٱلنَّارِ ﴾ مسبب يې راوړی او د سبب اراده يې کړي ده ځکه چي ګمراهي دا ورته لوېدلو سبب دی.

۸- استعاره چي پدې کلام کي ده ﴿ لَّهُۥ مَقَالِيدُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ يعني د نعمتونو کليګاني د آسمانونو او ځمکي او د آيت معنا دا چي د الله د رحمت او فضل خزانې د الله په يد کي دي.

۹- تمثيلي استعاره پدې آيت کي: ﴿ وَٱلْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وَٱلسَّمَٰوَٰتُ مَطْوِيَّٰتٌۢ بِيَمِينِهِۦ ﴾ دغه د الله د عظمت او بشپړ قدرت لپاره يو مثال دی او هغه لوی لوی اجرام چي عقلونه ورته

حیرانېږي دالله ﷻ قدرت ته داسي دي لکه چي يوڅوک خوراسترڅېزپه ورغوي کي موټ کړي اوداسمانونو نغښتل په يمين سره دتمثيلي استعارې ډول دی په تلخيص البيان کي ليکي چي په آيت کي استعاره ده اومعناداچي څرګه دالله په قدرت کي داسي ده لکه چي يوڅوک يوموټی خاوره راآخلي اوهيڅوک ورسره شرکت نلري اوآسمانونه دالله په ملک کي راغونډشوي اوپه قدرت يې رانغښتل شوي . زمخشري وايې چي آيت دالله دعظمت دانځوروولوپاره دی اوداچي دالله دجلال حقيقت کنه توقيفي دی بې له دې چي په قبضه باندی موټی اويمين سره لوري ته ولاړشي اوپه علم بيان کي تردغه باريک، نرم، خوږ اولطيف باب بل نشته.

۱۰ - کنايه چي فرمايي: ﴿ أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَٰحَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِى جَنۢبِ ٱللَّهِ ﴾ دجنب الله معنادالله طاعت اوحق دی اودغه هم باريکه کنايه ده.

۱۱ - دالتفات صنعت چي له تکلم څخه غيبت ته راغلی دی اوالله فرمايي: ﴿ لَا تَقْنَطُوا۟ مِن رَّحْمَةِ ٱللَّهِ ﴾ چي اصل يې داووچي (لاتقنطوا من رحمتي) دبيان علماء فرمايي چي پدې آيت شريف کي چي فرمايي: ﴿ قُلْ يَٰعِبَادِىَ ٱلَّذِينَ أَسْرَفُوا۟ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ ﴾ پدې کي دمعاني اوبيان څوډوله محسنات صنعتونه دي يو داچي دالله ناره خپلو بندګانو ته داقبال اومخامخ په بڼه بل ددوی نسبت هغه ته دتشريف لپاره اودريم ځل التفات له تکلم څخه غيبت ته چي فرمايي ﴿ مِن رَّحْمَةِ ٱللَّهِ ﴾ وروسته داچي درحمت اضافت هغه لفظ ته چي هغه مستجمع دټولو صفاتو اوآسماوو (الله) دی اوپنځم داچي دلته داسي جمله راوړل شوي چي دواړه لوري يې معرفه اوپه (اِنّ) اوضميرفصل سره يې تاکيد شوی دی چي ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ دی.

۱۲ - دفواصلو توافق په آخروتوروکي چي ښکلي خوندور اوښايسته دی مثلادالله داقول ولوله﴿ وَنُفِخَ فِى ٱلصُّورِ فَصَعِقَ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ ۖ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ ..... وَأَشْرَقَتِ ٱلْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا وَوُضِعَ ٱلْكِتَٰبُ وَجِا۟ىٓءَ بِٱلنَّبِيِّۦنَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَقُضِىَ بَيْنَهُم بِٱلْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ..... وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴾ آيادغه حسين بيان اودهغه جمال دي دې ته نه هڅوي چي ژبه دي درحمان ذات په ذکروګرزي؟!.

دالله جل جلاله په مرسته د(الزمر) سورت تفسيربشپړشو.

***

## دغافرسورت مكي اوپنځه اتيا آيتونه لري:

دسورت په وړاندي:

دغافرسورت مكي اودنوروسورتونوپه شان دعقيدې چاري سمبالوي داسي برېښي چي دسورت محوردي دحق اوباطل ترمينځ دجګړې په باب وي هلته چي ضلالت اوهدايت سره ډغري وهي نودالامل دی چي دسورت فضادجګړې اوشخړي په دوړوكي پټه ده ته به وايې دغه خونړۍ جګړه ده چي په تورو اوغښتوپكي وارونه كېږي اوپه پای كي دطاغوتانواوسرغړونكوپه ماتي باندي بشپړېږي هلته چي هغوی تارپه تارخاوري ايرې دجګړې په ډګركي له پښولوېږي

دسورت په سركي دالله ﷻ حسنی صفات اوعظمی آيات راځي بيادالله دآيتونوپه هكله دكافرانومجادله پيلېږي سره له دې چي حق روښانه اوڅرګندوي خوبياهم تكبركونكي اومجادلين جګړه ماران پكي شخړي كوي

سورت دپخوانيوامتونوهلاكتونه راوړي چي الله جل جلاله پخپل زبردست ځواک سره هغوی ونيول ايكي يوهم څني خلاص نشواودي هيبت ناک انځور سره دعرش دپورته كونكوپربښتومنظر راځي چي الله ته په عاجزي اوخشوع دعاګاني كوي

بياسورت دقيامت څيني كړاوونواوبېلګي راوړي هلته چي خلگ دالله (جل جلاله) سترپاچاپه وړاندي ولاړوي نږدې وي چي زړونه له ډېري خواشيني ترخولې راووزي په دغه نيمه خوا اوله سختيوډک تم ځاكي به انسان ته دخپل عمل جزاوركوله شي كه يې نېک عمل كړی ووښه جزابه ومومي اوكه يې بدعه كړی ووبده به ووينې

وروسته دايمان اوطغيان كيسه راځي هغه چي دموسی ﷺ په بلنه كي كومه چي دطغيان اوجبروت فرعون ته يې وركوله برېښي ، فرعون پخپله سركښي اوزبرځواكي هڅه كوي چي موسی ﷺ اوتبه مينځه يوسي هغه وېرېږي چي ايمان دخلكوترمينځ خپورنشي ددې كيسې په ترڅ كي يوه داسې كړی ده چي پخواوړاندي شوي نه ده راځي هغه داچي يومؤمن دفرعون له ټبرهٔ په داسي حال كي دې ايمان يې پټ ساتلی راپاځېږي اوپه احتياط په كرار اوتلطف سره دحق كلمه اووينا اوروي په زوره برآلاپه سپين ميدان بيانوي اوكيسه دفرعون اودهغه دپلويانواوملګروپه غرقېدلو پای ته رسېږي هلته چي مؤمن بلونكی اوپلوي مؤمنان يې ټول نجات مومي.

په وروسته كي آيتونه دكائناتوڅيني نښانې دالله په عظمت باندي ګواه اوپه وحدانيت دلال باندي ګوياراوړي اودهغه چاپيان كوي چي دالله په آيتونومنكراوپه وحدانيت يې مشرک ، اوبيادمؤمن اوكافرلپاره دبينااوړانده مثال راوړي مؤمن په رڼااوليدلواوكافرپه تياروكي ښيي ودسورت پای دمكذبينواوطاغوتانوپه وروستي برخه ليک بشپړوي اودعذاب هغه ننداره ښكاره كوي چي دوی پداسي وخت كي نيسي هلته چي دوی په خپل غفلت اوګمراهي كي غوپه وي

**تسمیه او نوم ول یې:**

دغه سورت ته څکه (غافر) وایې چې الله دغه ستر وصف چې د الله له حسنی صفاتو څخه یو دی د سورت په پیل کې یاد کړی چې ﴿غَافِرِ ٱلذَّنۢبِ وَقَابِلِ ٱلتَّوۡبِ﴾ او بیا یې مغفرت د مؤمن دعوتګر په بلنه کې تکرار کړی ﴿وَأَنَا۠ أَدۡعُوكُمۡ إِلَى ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡغَفَّٰرِ﴾ او سورت مؤمن یې هم بولي ځکه چې د فرعون د ټبر د یو مؤمن کیسه پکې راغلې ده.

**الله تعالی فرمایي:**

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿حمٓ ﴿١﴾ تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡعَلِيمِ ﴿٢﴾ غَافِرِ ٱلذَّنۢبِ وَقَابِلِ ٱلتَّوۡبِ شَدِيدِ ٱلۡعِقَابِ ذِي ٱلطَّوۡلِۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ إِلَيۡهِ ٱلۡمَصِيرُ ﴿٣﴾ مَا يُجَٰدِلُ فِيٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فَلَا يَغۡرُرۡكَ تَقَلُّبُهُمۡ فِي ٱلۡبِلَٰدِ ﴿٤﴾ كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوحٖ وَٱلۡأَحۡزَابُ مِنۢ بَعۡدِهِمۡۖ وَهَمَّتۡ كُلُّ أُمَّةِۭ بِرَسُولِهِمۡ لِيَأۡخُذُوهُۖ وَجَٰدَلُواْ بِٱلۡبَٰطِلِ لِيُدۡحِضُواْ بِهِ ٱلۡحَقَّ فَأَخَذۡتُهُمۡۖ فَكَيۡفَ كَانَ عِقَابِ ﴿٥﴾ وَكَذَٰلِكَ حَقَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَنَّهُمۡ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِ ﴿٦﴾ ٱلَّذِينَ يَحۡمِلُونَ ٱلۡعَرۡشَ وَمَنۡ حَوۡلَهُۥ يُسَبِّحُونَ بِحَمۡدِ رَبِّهِمۡ وَيُؤۡمِنُونَ بِهِۦ وَيَسۡتَغۡفِرُونَ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ رَبَّنَا وَسِعۡتَ كُلَّ شَيۡءٖ رَّحۡمَةٗ وَعِلۡمٗا فَٱغۡفِرۡ لِلَّذِينَ تَابُواْ وَٱتَّبَعُواْ سَبِيلَكَ وَقِهِمۡ عَذَابَ ٱلۡجَحِيمِ ﴿٧﴾ رَبَّنَا وَأَدۡخِلۡهُمۡ جَنَّٰتِ عَدۡنٍ ٱلَّتِي وَعَدتَّهُمۡ وَمَن صَلَحَ مِنۡ ءَابَآئِهِمۡ وَأَزۡوَٰجِهِمۡ وَذُرِّيَّٰتِهِمۡۚ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴿٨﴾ وَقِهِمُ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ وَمَن تَقِ ٱلسَّيِّـَٔاتِ يَوۡمَئِذٖ فَقَدۡ رَحِمۡتَهُۥۚ وَذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿٩﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُنَادَوۡنَ لَمَقۡتُ ٱللَّهِ أَكۡبَرُ مِن مَّقۡتِكُمۡ أَنفُسَكُمۡ إِذۡ تُدۡعَوۡنَ إِلَى ٱلۡإِيمَٰنِ فَتَكۡفُرُونَ ﴿١٠﴾ قَالُواْ رَبَّنَآ أَمَتَّنَا ٱثۡنَتَيۡنِ وَأَحۡيَيۡتَنَا ٱثۡنَتَيۡنِ فَٱعۡتَرَفۡنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلۡ إِلَىٰ خُرُوجٖ مِّن سَبِيلٖ ﴿١١﴾ ذَٰلِكُم بِأَنَّهُۥٓ إِذَا دُعِيَ ٱللَّهُ وَحۡدَهُۥ كَفَرۡتُمۡ وَإِن يُشۡرَكۡ بِهِۦ تُؤۡمِنُواْۚ فَٱلۡحُكۡمُ لِلَّهِ ٱلۡعَلِيِّ ٱلۡكَبِيرِ ﴿١٢﴾ هُوَ ٱلَّذِي يُرِيكُمۡ ءَايَٰتِهِۦ وَيُنَزِّلُ لَكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ رِزۡقٗاۚ وَمَا يَتَذَكَّرُ إِلَّا مَن يُنِيبُ ﴿١٣﴾ فَٱدۡعُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴿١٤﴾ رَفِيعُ ٱلدَّرَجَٰتِ ذُو ٱلۡعَرۡشِ يُلۡقِي ٱلرُّوحَ مِنۡ أَمۡرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦ لِيُنذِرَ يَوۡمَ ٱلتَّلَاقِ ﴿١٥﴾ يَوۡمَ هُم بَٰرِزُونَۖ لَا يَخۡفَىٰ عَلَى ٱللَّهِ مِنۡهُمۡ شَيۡءٞۚ لِّمَنِ ٱلۡمُلۡكُ ٱلۡيَوۡمَۖ لِلَّهِ ٱلۡوَٰحِدِ ٱلۡقَهَّارِ ﴿١٦﴾ ٱلۡيَوۡمَ تُجۡزَىٰ كُلُّ نَفۡسِۭ بِمَا كَسَبَتۡۚ لَا ظُلۡمَ ٱلۡيَوۡمَۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ﴿١٧﴾ وَأَنذِرۡهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡأٓزِفَةِ إِذِ ٱلۡقُلُوبُ لَدَى ٱلۡحَنَاجِرِ كَٰظِمِينَۚ مَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنۡ حَمِيمٖ وَلَا شَفِيعٖ يُطَاعُ ﴿١٨﴾ يَعۡلَمُ خَآئِنَةَ ٱلۡأَعۡيُنِ وَمَا تُخۡفِي ٱلصُّدُورُ ﴿١٩﴾ وَٱللَّهُ يَقۡضِي بِٱلۡحَقِّۖ وَٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَقۡضُونَ بِشَيۡءٍۗ إِنَّ

اللّٰهَ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ﴿٢٠﴾ ۞ أَوَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَـٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ كَانُوا۟ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَانُوا۟ هُمْ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَءَاثَارًا فِى ٱلْأَرْضِ فَأَخَذَهُمُ ٱللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ وَمَا كَانَ لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن وَاقٍ ﴿٢١﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَـٰتِ فَكَفَرُوا۟ فَأَخَذَهُمُ ٱللَّهُ ۚ إِنَّهُۥ قَوِىٌّ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴿٢٢﴾ ﴾ (غافر: ۱ ـ ۲۲)

لغتونه:

(غافر) له غفرڅخه اخيستل شوی او هغه پټولو ورک کولو او تو پړلو ته وايي (طول) دانعام او تفضل نوم دی (يدحضوا) دحض ، باطلولو او زائلولو ته ويل کيږي (حقت) واجب شوي ده (مقت) سخت بغض او نفرت ته وايي (الروح) وحی ته ويل کيږي او نبوت ته ځکه روح وايي چي زړونه ورباندي ژوندي کيږي لکه چي په ارواحو باندي بدنونه ژوندمومي (التلاق) د محشر د ورځي اجتماع (بارزون) ښکاره چي هيڅ شی به يي نه پټوي (الآزفة) دقيامت د ورځي نوم دی ځکه يي (آزفة) بولي چي رانژدې دی (واق) دفع کونکی چي عذاب دفع کړي.

تفسير:

﴿ حمٓ ﴾ (حم) له مقطعاتو ، توروڅخه دی چي دقرآنکريم په اعجاز تنبيه ورکوي او دا ښيي چي معجز قرآنکريم دداسي تورو له امثالو څخه منظوم دی (¹) ﴿ تَنزِيلُ ٱلْكِتَـٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴾ نازلېدل ددې کتاب (قرآن) له جانبه دالله دي چي دی ښه غالب قوي (پخپله پاچهي کي) ښه عالم دی (پخپل مخلوق باندي) ﴿ غَافِرِ ٱلذَّنۢبِ وَقَابِلِ ٱلتَّوْبِ ﴾ ښښونکی دګناهونو( د بندګانو ) او قبلونکی دتوبې دی . (د عاصيانو) ﴿ شَدِيدِ ٱلْعِقَابِ ذِى ٱلطَّوْلِ ۖ ﴾ سخت دی عذاب دده (کفارو له ،هغه څوک چي تکبر وکړي او له طاعته يې مخ واړوي ) څښتن دفضل دی (په مؤمنانو) ﴿ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ ﴾ نشته لائق دعبادت بل هيڅوک مګر يوازې هم دی دی ﴿ إِلَيْهِ ٱلْمَصِيرُ ﴾ خاص هم ده ته بيرته تلل دي (بيا به دوی ته پخپلو عملونو جزاور کوي داچي مغفرت او توبه يې په عذاب لِه مخه وړاندي وړاندي راوړه ترڅو دالله پراخ رحمت او فضل ته اشاره وکړي او وښيي چي رحمت يې تر عذاب له مخه دی ، کله چي يې دابيان وفرمايو چي قرآن دعالم لپاره هدايت دی وروسته يې دمعاندينو جګړه مارانو يادونه پيل کړه چي: ﴿ مَا يُجَـٰدِلُ فِىٓ ءَايَـٰتِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ (جګړې نه کوي (طعنې نه وايي ) په آيتونو دالله مګر هغه کسان چي کافران شوي دي) يعني ددې قرآن په ځکله وروسته دآيتونو له اعجاز او ښکاره والي څخه پرته له منکرانو او د پيغمبرانو له معاندينو بل څوک جګړه نه کوي ﴿ فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِى ٱلْبِلَـٰدِ ﴾ پس نه دي تېر باسي تاسي ګرزېدل ددوی

(¹) دموضوع تفصيل دسورت البقرة په پيل کي وګوره او دغه سورت له اووحواميمو څخه دی دغه ګرد سورتونه په دي دوو حرفو (حاميم) پيلېږي.

(په هوساني سره) په ښارونوکي) يعني اى عاقله ددوى په دې سوكاليو، ښايسته هستوګنځيو، كښتونو، فصلونو، دولتونو، تجارتونو مه تېروزه څکه دوى به له دې هوسايي څخه بېلېږي اوالله به يې نيسي عاقبت ددوى دوزخ دى دوى ترګردوخلګوبدمرغه دي ددوى دغه نعمتونه به اروم‌روزوال مومي په التسهيل كي وايې چي په آيت شريف كي درسول الله ﷺ لپاره تسليت دى اود كفارولپاره سخت وعيدپكي شته (۱) ﴿ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَالْأَحْزَابُ مِنْ بَعْدِهِمْ ﴾ دروغجن شمېرلي وو(رسولان خپل) پخواله دوى نه قوم دنوح اونورو اقوامووروسته له دوى نه (لكه قوم دعاديانو، ثموديانو، فرعونيانواونورو) ﴿ وَهَمَّتْ كُلُّ أُمَّةٍ بِرَسُولِهِمْ لِيَأْخُذُوهُ ﴾ اوقصدوكړ هرامت (له دوى نه پررسول خپل چي ونيسي دوى (هغه رسول اوضرر وررسوي او ويې وژني) ابن كثيروايې چي دوى دزړه له كومي غوښتل چي په هرقيمت وي خپل پيغمبروو‌ژني خينوخو وهم وژل (۲) ﴿ وَجَادَلُوا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوا بِهِ الْحَقَّ ﴾ اوجګړې به كولې دوى (له پيغمبرانوسره) په باطله لپاره ددې چي پټ كړي په دغه باطل سره حق ﴿ فَأَخَذْتُهُمْ ﴾ پس ومونيول دوى (په عذاب سره او هلاک موكړل) ﴿ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴾ پس څرنګه وه سزادعقوبت زما(دوى لره؟ آيا سخته نه وه؟ ﴿ وَكَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ هم داسي (لكه داوجوب دعذاب پردغومكذبينو) واجبه شوي ده خبره (دعذاب) درب ستاپرهغوكسانوچي كافران شوي دي (له قومه ستا) ﴿ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ﴾ (همغه كلمه داده چي) بېشكه دوى ملګري داور(ددوزخ) دى طبري وايې معنادالكه څرنګه چي واجب شوى ووعذاب پرمكذبينودپخوانيوامتونواوهلاک شوي ووهمداسي واجبه شوي ده خبره دعذاب په هغوكسانوچي په الله پاک كافران شوي دي ستاله قومه څكه چي دوى دوزخيان دي(۳) بياالله ﷻ دپاكيزه پرښتواوابرارومؤمنانوحال وروسته له فجاروكفارو داسي بيانوي ﴿ الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ﴾ هغه كسان(له ملائكو) چي پورته اخلي عرش اوهم هغه (پرښتې) چي چارچاپېره دعرش دي (چي شمېرېې له الله پرته چاته نه دى معلوم) تسبيح وايې سره له حمداوثنادرب ددوى (تل) ﴿ وَيُؤْمِنُونَ بِهِ ﴾ اوايمان يې راوړى دى په دغه (الله چي واحداولاشريک دى اودالله له عبادته تكبرنه كوي، زمخشري وايې كه څوک وپوښتي چي ددې كلام چي فرمايې: ﴿ وَيُؤْمِنُونَ بِهِ ﴾ څه ګټه ده؟ څكه چي حملة العرش اومن حوله خوګردي ايمان درلودونكي ملائكي دي ځواب دادى چي پدې كلمه سره دايمان دفضيلت اوشرف څرګندوالى دى اودايمان راوړلوپه هكله ترغيب پكي شته دى ﴿ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ

---

(۱) التسهيل في علوم التنزيل ۴/۲

(۲) دابن كثيرمختصر ۳/۲۳۵

(۳) الطبري ۲۴/۴۳

ءَامَنُواْ ﴾ (اوله الله څخه مغفرت غواړي هغو کسانوته چي ايمان يې راوړی دی )يعني دوی سره ددوی له عبادته اوداچي په تسبيح اوتحميداوتمجيدکي مستغرق هم وي دمؤمنانولپاره استغفارکوي وايي: ﴿ رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَىْءٍ رَّحْمَةً وَعِلْمًا ﴾ (نووايي چي) ای زموږ ربه رسېدلی يې ته هرڅېزته له جهته درحمته بخشش اوعلمه . مفسرين کرام وايي داچي الله ﷻ يې په رحمت اوعلم وستايو دغه ددعااوسوال لپاره ادب دی چي بندګانوته ښوونه کوي چي دوی دي خپله دعاپه ادب سره پيل کړي اوبيادي دالله ﷻ داحسان فضل اوانعام داورښت انتظارو باسي[1] ﴿ فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُواْ وَاتَّبَعُواْ سَبِيلَكَ ﴾ سَبِيلَكَ ﴾ پس مغفرت وکړه هغو کسانوته چي توبه يې ايستلي وي (له شرکه اوګناهونو ) اومتابعت يې کړی دی دلاري ستا(کومه چي انبياء اوپيغمبران ورباندي راغلي دي ﴿ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴾ اووساته دوی له عذابه ددوزخ نه ﴿ رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ جَنَّٰتِ عَدْنٍ الَّتِى وَعَدتَّهُمْ ﴾ (اوهم وايي به ) ای زموږ ربه ! اوننه باسه دوی په جنتونوکي دهمېشه هستوګني هغه چي تاله دوی سره وعده کړي ده ﴿ وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآبِهِمْ وَأَزْوَٰجِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ ﴾ اوڅوک چي نېک شوی وي له پلرونوددوی او(له) ښځوددوی او(له) اولادونوددوی نه (ترڅو چي خوشحالي يې بشپړه شي ) ابن کثيروايي معناداچي دغه خپلوان ورسره يوځای کړه ترڅوچي سترګي يې دهغوی په اجتماع يخي او خوږې شي اوپه جنت کي يې يوله بله ګاونډي هستوګنځايونه وي[2] ) ﴿ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ بېشکه چي ته هم ته يې ښه غالب قوي يې (چي هيڅوک دی مغلوبولای نشي) ښه حکمت والايې (چي هيڅ کاربې تدبيراومصلحته نه کوي) ﴿ وَقِهِمُ السَّيِّـَٔاتِ ﴾ اووساته دوی له بديوڅخه (دغه دپرښتود کلام بشپړاوی دی چي وايي الله دوی دمنکرانواوفواحشوڅخه وژغوره) ﴿ وَمَن تَقِ السَّيِّـَٔاتِ يَوْمَبِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهُ ﴾ اوهرڅوک چي ته وساتې له د. بديوڅخه په دغه ورځ دقيامت کي نوپه تحقيق رحمت دي پرې وکړ(اوله عقوبت څخه دي وژغورو) ﴿ وَذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ اودغه (ساتل ستاله عذابه) همدغه بری ډېرلوی دی (چي ترې پورته بل بری نشته کله چي الله تبارک وتعالی دمؤمنانواحوال يادکړ ورپسې دکافرانوڅخه بيان , فرمايي نوبيايې داسي يادونه وکړه: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللَّهِ أَكْبَرُ مِن مَّقْتِكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ بېشکه هغه کسان چي کافران شوي دي (کله چي دوزخ ته داخل کړی شي نو) غږبه ورته وکړی شي (په ژبودپرښتوچي) خامخادښمني (اوغضب) دالله پرتاسي باندي) ډېرلوی دی له دښمني (اوقهر) دتاسو پرخپلوځانونو باندي دغه به دتوبيخ اوتقريع په توګه ورته وويل شي) ﴿ إِذْ تُدْعَوْنَ إِلَى الْإِيمَٰنِ

[1]) البحرالمحيط ۷/ ۴۵۷
[2]) دابن کثيرمختصر ۳ / ۲۳۶

﴿ فَتَكۡفُرُونَ ﴾ کله چي وبللی شوی تاسي (په دنیاکي) دایمان راوړلو لور ته پس تاسي به کافران کېدی (له تکبراو سرغړوني عناد څخه قتاده رحمه الله وایي چي دالله بغض له گمراهانو سره کله چي په دنیاکي به ایمان ورته وړاندي شواودوی نه منل ډېرزیات دی له هغه بغض او نفرت څخه کوم چي دوی بې پخپلو ستر گو دعذاب دلیدلو په وخت کي له ځانه سره لري (۱) ﴿ قَالُواْ رَبَّنَآ أَمَتَّنَا ٱثۡنَتَيۡنِ وَأَحۡيَيۡتَنَا ٱثۡنَتَيۡنِ ﴾ وبه وایي (داکفارچي کله سختي اوکړاوونه ویني) ای زموږ ربه مړه دي کړو موږدوه ځلي اوژوندي دي کړو موږدوه ځلي ﴿ فَٱعۡتَرَفۡنَا بِذُنُوبِنَا ﴾ پس اقرار وکړ موږ په گناهونو خپلو (کوم چي په دنیاکي موږکړي دي) ﴿ فَهَلۡ إِلَىٰ خُرُوجٖ مِّن سَبِيلٖ ﴾ پس آیا شته دوتلو (زموږ له دغه دوزخه) کومه لاره؟ (چي دنیاته لاړشواو هلته نېک عملونه ترسره کړو مفسرین کرام وایي چي لومړی مړینه هغه ده چي دوی پیداشوي نه وواو دوهمه مړینه هغه چي په دنیاکي مړه شول لومړنی ژوند د دنیاژونداودوهم بیادبعث بعدالموت ژوند چي په آخرت کي وي همدغه دوه ځلي مړینه اودوه ځلي ژوندون دی (۲) دغه وینایي دالله دتعطف اورضایت ترلاسه کولولپاره کړي کله چي دوی عذاب ویني دزاری جگي لپاره به داسي وایي دوی خوپخوامنکران اوکافران ووخکه نوځواب هسي راغی چي: ﴿ ذَٰلِكُم بِأَنَّهُۥٓ إِذَا دُعِيَ ٱللَّهُ وَحۡدَهُۥ كَفَرۡتُمۡ ﴾ دغه (ابدي عذاب) تاسي ته په سبب ددې دی کله چي به الله یوازي وباله شو (بې له خدایانو ستاسي) نوتاسي به کفراختیارکړ ﴿ وَإِن يُشۡرَكۡ بِهِۦ تُؤۡمِنُواْ ﴾ (اوکه شریکان به هم وبلل شول له الله سره نوتاسي به ایمان راووړ) یعني کله چي به لات، عزی اودهغوی امثالوته وبلل شوی نودهغوی په الوهیت به موایمان راووړ ﴿ فَٱلۡحُكۡمُ لِلَّهِ ٱلۡعَلِيِّ ٱلۡكَبِيرِ ﴾ (پس حکم خاص الله لره دی (چي هرڅه کوي دغه الله) ډېرپورته دي (له شرکه) ډېرلوی دی) یعني فیصله یوازي دالله ده دبتانونه ده تاسونجات نشی موندلای الله هغه ذات دی چي څه غواړي هغه کوي کله چي الله دمشرکانو لپاره هغه څه چي دتهدید موجب وویادکړل وروسې بې هغه څه چي دده په بشپړقدرت اوحکمت دلالت کوي ددې لپاره راوړل چي دبتانودنه عبادت کولولپاره دلیل شي نوفرمایې چي ﴿ هُوَ ٱلَّذِي يُرِيكُمۡ ءَايَٰتِهِۦ ﴾ الله هغه ذات دی چي ښيي تاسي ته دلائل نښي دقدرت خپل (پخپلو مخلوقاتوکي که علوي دی اوکه سفلي چي دلالت کوي په بشپړقدرت دالله ابداع ، انشاء اوخلقت باندي) ﴿ وَيُنَزِّلُ لَكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ رِزۡقٗا ﴾ اونازلوي تاسي ته له طرفه دآسمانه روزي (باران اوروي چي دررزق سبب دی اومېوې دانې را زرغونوي) ﴿ وَمَا يَتَذَكَّرُ إِلَّا مَن يُنِيبُ ﴾ اوپند نه اخلي (په دغودلائلودقدرت) مگرهغه چي راگرځېدلی وي (له شرک اومعصیته په توبه اوانابت سره ﴿ فَٱدۡعُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ پس وبولئ تاسي الله په داسي

---

(۱) دابن کثیرمختصرتفسیر ۳/۲۳۲

(۲) دغه دابن مسعود ، ابن عباس اوقتاده وینا ده دوی وایي چي دالکه هغه قول دالله جل جلاله داسي دی چي فرمایې: ﴿ كَيۡفَ تَكۡفُرُونَ بِٱللَّهِ وَكُنتُمۡ أَمۡوَٰتٗا فَأَحۡيَٰكُمۡۖ ثُمَّ يُمِيتُكُمۡ ثُمَّ يُحۡيِيكُمۡ ﴾.

حال چي خالص كونكي دعبادت يي دغه (الله ته) ددين (له شركه) دبل چاعبادت نه كوي ﴿ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ﴾ اواگركه بدگني دغه (كار) كافران ، دغه دمبالغې لپاره راوړل شوى يعني يوازي دالله عبادت كوي اوپه زړونوكي ورسره اخلاص كوي كه څه هم كفاردغه ستاسواخلاص نه خوښوي اوله تاسوسره وربانديي جنگيږي ﴿ رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ﴾ همدغه الله پورته كونكى د درجاتودى) يعني الله عظيم الشان والسلطان دى ﴿ ذُو الْعَرْشِ ﴾ څښتن دعرش دى (هغه چي تركردومخلوقاتو ستر اوپه ټولومخلوقاتو كي له هيڅ مخلوق سره هم مشابه نه دى ابن كثيروايي الله تعالى له خپل عظمت اوكبرياڅخه اخبارفرمايلى اوبل داچي عرش دالله ستراوپه ټولومخلوقاتواوچت اولوړ دى لكه چي دټولوبام ياچت وي داسي راغلي چي دالله ﷻ عرش له سره ياقوته څخه دى اوپراخوالى يې له الله پرته بل چاته نه دى معلوم (١) ابوالسعودوايي دا چي دالله هغه عرش چي دټولوكائناتوكه علوي دى اوكه سفلي په څنډوڅوكو راچاپېردى هغه دالله دواک په قبضه اوترملكوت لاندي دى ددې غوښتنه داده چي دالله دشان علو اودسلطان عظمت دومره لوړ سرحدته رسېدلى چي ترې پورته بل سرحدنشته (٢) ﴿ يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ﴾ رالېږي وحى په امرخپل پرهغه چاچي اراده وفرمايي له بندگانوخپلو(اوپه نبوت اورسالت يې نازوي، داچي وحى ته يې روح وويله ځكه دغه په زړونوكي داسي جريان مومي لكه چي روح په بدن كي. قرطبي وايي وحى ته يې روح ځكه وويل چي خلگ ددې په سبب دكفرله مريني څخه راژوندي كېږي لكه چي په روح باندي بدنونه ژوندي كېږي (٣) ﴿ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴾ ددې دپاره چي ووېروي (خلگ) له ورځي دملاقاته (چي دقيامت ورځ ده اومخلوق به گردسره يوځاى كېږي ترڅوېي داعمالومحاسبه وشي اومخلوق له خالق سره يوځاى شي ﴿ يَوْمَ هُمْ بَارِزُونَ ﴾ په هغه ورځ كي چي دوى به ښكاره وي (له قبرونوڅخه رابهرشوي ولاړوي چي هيڅ شى به يې نه پټوي نه به هلته سيورى وي نه غرونه نه وداني اونورڅه د محشرپه روڼ ډگربه ولاړوي ﴿ لَا يَخْفَىٰ عَلَى اللَّهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ﴾ پټ به نه وي پرالله له دوى نه هيڅ څيز(داعمالواواحوالويې اونه هم له پټورازونوڅخه يې ، صاوي وايي حكمت ددغي ورځي په ځانگړتياكي سره له دې چي له الله څخه خويوه ورځ هم څه شى پټ نه دى دادى چي دوى به په دنياكي داسي گمان كاووچي دوى له دېوالونوهاخواوي الله يې نهويني نوپه دې ورځ كي به دغه گمان هم نكوي (۴) څكه دېوال به نه وي ﴿ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ﴾ چاله دى سلطنت نن ورځ ؟، الله ﷻ به په همدې ورځ دمحشرگرد مخلوقات په ښكاره ميدان دمحشركي راغونډوي دغه ندابه وكړي ټول خلگ به له هيبت اوويري څخه چُپه خوله شي نوبه الله ﷻ پخپله ځواب وفرمايي چي: ﴿ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴾ خاص

---

(١) مختصرابن كثير ٣ /٢٢٢

(٢) ابوالسعود ٥/٥

(٣) القرطبي ١٥/٢٩٩

(۴) الصاوي ۴/٥

الله لره دی سلطنت چي يو دی بنه غالب په هرڅه. حسن رحمه الله وايي چي پوښتونکی او ځواب ورکونکی دواړه الله دی ځکه هغه داپوښتنه کوي کله چي هيڅوک ځواب ورغبرګولی نشي نوبياپخپله ځواب فرمايي([1]) ﴿ ٱلْيَوْمَ تُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ﴾ نن ورځ به جزا ورکړه شي هرنفس ته په اندازه دهغه عمل چي کړی يې دی (له خيرا وشرڅخه) ﴿ لَا ظُلْمَ ٱلْيَوْمَ ﴾ نشته هيڅ قدرظلم نن ورځ (چي ثواب لږشي ياعذاب زيات شي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴾ بېشکه چي الله ډېرژرحساب کونکی دی؛ دټولو خلګوسره به په يوه وخت محاسبه وکړي. قرطبي وايي لکه چي ټولوخلګوته په يوه ګړۍ کي روزي ورکوي همداسي به په يوه ساعت اوګړۍ کي ورسره حساب وکړي. په حديث شريف کي راغي چي ورځ به لانيمه تېره شوي نه وي چي جنتيان به دغرمې استراحت په جنت کي کوي اودوزخيان به يې په دوزخ کي ګالي ([2]) ﴿ وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ ٱلْـَٔازِفَةِ ﴾ اووويروه (ای محمده دغه کفارله عذابه) دورځي نژدې (چي دقيامت ورځ ده. ابن کثيروايي چي (آزفة) دقيامت دورځي له نومونوڅخه يونوم دی ځکه يې پدې نامه بولي چي نژدې ده لکه دالله ﷻ داقول چي فرمايي: ﴿ أَزِفَتِ ٱلْـَٔازِفَةُ ﴾ (النجم ۵۷ )([3]) ﴿ إِذِ ٱلْقُلُوبُ لَدَى ٱلْحَنَاجِرِ ﴾ کله چي زړونه په نزدد چنغړکو(ستونو) وي (له ډېري وېري څخه) ﴿ كَـٰظِمِينَ ﴾ پدې حال کي چي ډک به وي له غمه (خاوندان دزړونو) په التسهيل کي وايي: معناداچي زړونه به له ډېره شدته له سينوڅخه راختلي اوستوني ته به رارسېدلي وي دلته دحقيقت اومجازدواړو احتمال شته ([4]) ﴿ مَا لِلظَّـٰلِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ ﴾ نه به وي ظالمانوته په قيامت کي هيڅ دوست (چي ورته ګټه ورسوي) اونه کوم شفاعتګرچي خبره يې ومنله شي (اوله سخته عذابه څخه يې وژغوري ) ﴿ يَعْلَمُ خَآئِنَةَ ٱلْأَعْيُنِ ﴾ معلوم دی (الله ته) خيانت دسترګو(کله چي محرم ښځه ته په غلاګوري. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي داهغه سړی دی چي له نورو خلګوسره ناست دی اوښځه تېرېږي دغه سړی له نورو څخه په غلاهغې ته وګوري ﴿ وَمَا تُخْفِى ٱلصُّدُورُ ﴾ اوهغه نيتونه چي سينې يې پټوي ﴿ وَٱللَّهُ يَقْضِى بِٱلْحَقِّ ﴾ اوالله حکم(فيصله کوي په حق (عدل) سره ﴿ وَٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ ﴾ اوهغه کسان چي دوی يې بولي غيرله دغه (الله) نه (له بتانواوعبادت يې کوي ) ﴿ لَا يَقْضُونَ بِشَىْءٍ ﴾ حکم نشي کولای دوی په هيڅ څيز(نوځرنګه به دالله شريکان شي؟ ابوالسعودوايي چي دغه پردوی باندي تهکم دی ځکه چي دجماد په هکله دانشي ويل کېدای چي فيصله کوي يايې نه کوي([5]) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ﴾ بېشکه الله

---

([1]) دقرطبي تفسير۱۵/ ۳۰۰

([2]) پخواني أخځای.

([3]) دابن کثيرمختصر۳ / ۲۳۹

([4]) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/ ۴

([5]) دابو السعود تفسير۵ /۷

همدی دی ښه اوربدونکی (داقوالود بند کانو) ښه لیدونکی (په احوالوددوی) ﴿ أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ ﴾ آیا نه ګرزي دغه مشرکان په ځمکه کي ؟ (چي د مکذبینوله سرنوشت څخه عبرت واخلي ) ﴿ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ كَانُوا مِن قَبْلِهِمْ ﴾ چي وګوري دوی چي څرنګه ووعاقبت آخرت خاتمه دهغو کسانو چي تردوی پخواوو (څکه هوښیارهغه دی چي له نورو څخه عبرت واخلي) ﴿ كَانُوا هُمْ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ﴾ چي ووهغوی (پخواني مکذبين ) هم دوی ډېرسخت له دغو(کفارو) څخه له جهته دقوت ﴿ وَآثَارًا فِي الْأَرْضِ ﴾ اوآثارو(چي پرې ایښي يې دي له ماڼيو، برجونواولښکرو) په ځمکه کي (خوله دي ګردوسره سره چي د پيغمبرانوتکذيب يې وکړ الله تعالى دوی هلاک کړل ﴿ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ﴾ پس ونيول هلاک کړل دوی لره الله په سبب د ګناهونوددوی (اوتکذيب دالله درسولانو) ﴿ وَمَا كَانَ لَهُم مِّنَ اللَّهِ مِن وَاقٍ ﴾ اونه وو دوی ته (له عذابه د ) الله هيڅوک ساتونکی ، وريسې الله سبب دعذاب هسي بيانوي ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ ﴾ غه (نيول اوهلاکول ددوی )په سبب ددې ووچي بېشکه هغوی ته به راتلل رسولان ددوی په ښکاره دلائلود(قدرت اومعجزاتو ) باندي ) ﴿ فَكَفَرُوا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ ﴾ پس کافران شول پس الله ﷻ دوی ونيول (هلاک يې کړل) ﴿ إِنَّهُ قَوِيٌّ ﴾ بېشکه چي دغه (الله) قوي ښه زورور (دسختو نيولوذات) ﴿ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴾ سختونکي دعذاب دی (هغه چالره چي ورڅخه سرغړونه يې کړي وي دالله عذاب دردناک دی (اعاذناالله من عقابه واجارنامن عذابه ).

آمين يارب العالمين

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿٢٣﴾ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَقَارُونَ فَقَالُوا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ﴿٢٤﴾ فَلَمَّا جَاءَهُم بِالْحَقِّ مِنْ عِندِنَا قَالُوا اقْتُلُوا أَبْنَاءَ الَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ وَاسْتَحْيُوا نِسَاءَهُمْ ۚ وَمَا كَيْدُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ ﴿٢٥﴾ وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُونِي أَقْتُلْ مُوسَىٰ وَلْيَدْعُ رَبَّهُ ۖ إِنِّي أَخَافُ أَن يُبَدِّلَ دِينَكُمْ أَوْ أَن يُظْهِرَ فِي الْأَرْضِ الْفَسَادَ ﴿٢٦﴾ وَقَالَ مُوسَىٰ إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُم مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿٢٧﴾ وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ اللَّهُ وَقَدْ جَاءَكُم بِالْبَيِّنَاتِ مِن رَّبِّكُمْ ۖ وَإِن يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ ۖ وَإِن يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُم بَعْضُ الَّذِي يَعِدُكُمْ ۖ إِنَّ

ٱللَّهَ لَا يَهْدِى مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ﴿٢٨﴾ يَٰقَوْمِ لَكُمُ ٱلْمُلْكُ ٱلْيَوْمَ ظَٰهِرِينَ فِى ٱلْأَرْضِ فَمَن يَنصُرُنَا مِنۢ بَأْسِ ٱللَّهِ
إِن جَآءَنَا ۚ قَالَ فِرْعَوْنُ مَآ أُرِيكُمْ إِلَّا مَآ أَرَىٰ وَمَآ أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ﴿٢٩﴾ وَقَالَ ٱلَّذِىٓ ءَامَنَ يَٰقَوْمِ إِنِّىٓ أَخَافُ
عَلَيْكُم مِّثْلَ يَوْمِ ٱلْأَحْزَابِ ﴿٣٠﴾ مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعْدِهِمْ ۚ وَمَا ٱللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ ﴿٣١﴾
وَيَٰقَوْمِ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ ٱلتَّنَادِ ﴿٣٢﴾ يَوْمَ تُوَلُّونَ مُدْبِرِينَ مَا لَكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ ۗ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنْ هَادٍ
﴿٣٣﴾ وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوسُفُ مِن قَبْلُ بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِى شَكٍّ مِّمَّا جَآءَكُم بِهِۦ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَن
يَبْعَثَ ٱللَّهُ مِنۢ بَعْدِهِۦ رَسُولًا ۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ ﴿٣٤﴾ ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِ
ٱللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَٰنٍ أَتَىٰهُمْ ۖ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ وَعِندَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۚ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ
﴿٣٥﴾ وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَٰهَٰمَٰنُ ٱبْنِ لِى صَرْحًا لَّعَلِّىٓ أَبْلُغُ ٱلْأَسْبَٰبَ ﴿٣٦﴾ أَسْبَٰبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ فَأَطَّلِعَ إِلَىٰٓ إِلَٰهِ مُوسَىٰ وَإِنِّى
لَأَظُنُّهُۥ كَٰذِبًا ۚ وَكَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ وَصُدَّ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ۚ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِى تَبَابٍ
﴿٣٧﴾ وَقَالَ ٱلَّذِىٓ ءَامَنَ يَٰقَوْمِ ٱتَّبِعُونِ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ﴿٣٨﴾ يَٰقَوْمِ إِنَّمَا هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا مَتَٰعٌ
وَإِنَّ ٱلْءَاخِرَةَ هِىَ دَارُ ٱلْقَرَارِ ﴿٣٩﴾ مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزَىٰٓ إِلَّا مِثْلَهَا ۖ وَمَنْ عَمِلَ صَٰلِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ
أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُو۟لَٰٓئِكَ يَدْخُلُونَ ٱلْجَنَّةَ يُرْزَقُونَ فِيهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٤٠﴾ ۞ وَيَٰقَوْمِ مَا لِىٓ أَدْعُوكُمْ إِلَى
ٱلنَّجَوٰةِ وَتَدْعُونَنِىٓ إِلَى ٱلنَّارِ ﴿٤١﴾ تَدْعُونَنِى لِأَكْفُرَ بِٱللَّهِ وَأُشْرِكَ بِهِۦ مَا لَيْسَ لِى بِهِۦ عِلْمٌ وَأَنَا۠ أَدْعُوكُمْ إِلَى
ٱلْعَزِيزِ ٱلْغَفَّٰرِ ﴿٤٢﴾ لَا جَرَمَ أَنَّمَا تَدْعُونَنِىٓ إِلَيْهِ لَيْسَ لَهُۥ دَعْوَةٌ فِى ٱلدُّنْيَا وَلَا فِى ٱلْءَاخِرَةِ وَأَنَّ مَرَدَّنَآ إِلَى ٱللَّهِ وَأَنَّ
ٱلْمُسْرِفِينَ هُمْ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ﴿٤٣﴾ فَسَتَذْكُرُونَ مَآ أَقُولُ لَكُمْ ۚ وَأُفَوِّضُ أَمْرِىٓ إِلَى ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ بَصِيرٌۢ
بِٱلْعِبَادِ ﴿٤٤﴾ فَوَقَىٰهُ ٱللَّهُ سَيِّـَٔاتِ مَا مَكَرُوا۟ ۖ وَحَاقَ بِـَٔالِ فِرْعَوْنَ سُوٓءُ ٱلْعَذَابِ ﴿٤٥﴾ ٱلنَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا
غُدُوًّا وَعَشِيًّا ۖ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ أَدْخِلُوٓا۟ ءَالَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ ٱلْعَذَابِ ﴿٤٦﴾ غافر: ٢٣ ـ ٤٦

**مناسبت:**

کله چي الله ﷻ دهغه هلاکت یادونه وکړه چي په کفارونازل شوی وو ورپسې یې دحضرت موسی علیه السلام کیسه راوړه چي دخپل وخت فرعون ته رااستول شوی وو اوپدې کي درسول الله ﷺ لپاره تسلیت اوډاډینه ده چي له خپله قوم اوتېره یې د هرتکلیفونه اوربړونه ولیدل نوالله اطمینان ورکوي چي دغه دالله ﷻ سنت اوتېره لاره ده چي ظالمان هلاکوي دکیسې په ترڅ کي دهغه مېړني مسلمان کیسه هم راځي چي دطغیان په وړاندي په ډاګه دحق دوینا پیل کوي اودغه داتلولي اومېړاني ښکاره ثبوت دی.

لغتونه:

(استحيوا) ژوندي پرېږدئ (ضلال) بطلان او هلاکت (عذت) پناه مي اخيستي (ظاهرين) لوړ او برياليٰ (بأس الله) عذاب او انتقام د الله (دأب) عادت اوشان (التناد) دقيامت ورځ چي اهل محشر ته پکي غږ اونداکېږي ياځيني دخلګو ځينو نوروته ناري وهي (عاصم) منع کونکی دفع کونکی (صرحًا) ستر قصر اوماڼۍ (تباب) خسران او هلاک ته وايي (لاجرم) خامخا (حاق) نازل او چاپېر شو.

تفسير:

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴾ او خامخا په تحقيق لېږلی وو موږ موسی په آيتونو دلائلو (دقدرت) خپل او په برهان (ښکاره سند) سره (چي يد بيضا او عصا وه) لام دقسم لپاره توطئه دی يعني قسم دی چي موږ موسی په ښکاره معجزاتو او دلائلو رااستولی وو ﴿ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَقَارُونَ ﴾ طرف د (باچا د مصر) فرعون او هامان ته (چي وزيريې وو) قارون ته (چي دخزانو او مالونو څښتن وو. په البحر کي وايي چي دلته يې قارون او هامان ځانګړي ورسره ذکر کړل ځکه چي دوی په کفرکي ستر مقام لارو او دفرعون له مشهورو پلويانو اتباعو څخه وو(۱) ﴿ فَقَالُوا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ﴾ (پس وويل (دوی چي دارسول) ساحر کوډګر دی دروغجن دی) يعني دوی موسی عليه السلام کوډګر او دروغجن وباله کوډګر د معجزاتو په هکله دروغجن په دعوی دنبوت کي او دکذاب صيغه دمبالغې لپاره استعمال شوي ده ﴿ فَلَمَّا جَاءَهُم بِالْحَقِّ مِنْ عِندِنَا ﴾ پس کله چي راغی (موسی) دغو (قبطيانو) ته په حقه سره له نزده زموږ (يعني له څرګندو معجزاتو سره چي دده په رښتنولي يې دلالت کاوو) ﴿ قَالُوا اقْتُلُوا أَبْنَاءَ الَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ وَاسْتَحْيُوا نِسَاءَهُمْ ﴾ وويل (قبطيانو) چي ووژنئ تاسي زامن دهغو (سبطيانو) چي ايمان يې راوړی دی له موسی سره (چي نسل يې قطع شي) او ژوندي پرېږدئ تاسي ښځي (لوڼي) ددوی (دخدمت لپاره) صاوي وايي دغه قتل پرته له لومړي قتل څخه دی ځکه چي فرعون وروسته له ولادته د موسی عليه السلام دماشومانو له وژلو لاس واخيست او کله چي موسی ﷺ پيغمبر شو او فرعون يې له مقابلې کولو څخه ماتي وخوړه نو بيايې هغه پخوانی دوژلو فرمان صادر کړ تر څو چي خلګ له ايمان راوړلو څخه دده وکړي او ددوی تولنه زياته نشي نو دغه دوکه يې ورته وسنجوله بيا الله ورباندي قسما قسم عذابونه پرې ايستل لکه چنګوښي ، ويني ، طوفان ، سپږي او نور ترڅو چي له مصر څخه د موسی ﷺ او مؤمنانو په لټه کي راووتل او الله غرق کړل د دوی فريب او دوکه يې پردوی راوګرزوله (۲) ﴿ وَمَا كَيْدُ الْكَافِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَالٍ ﴾ او نه دی کيد مکر د کافرانو مګر په

---

(۱) البحر المحيط ۷-۴۵۹

(۲) حاشية الصاوی ٤-٦

گمراهي کي (ځکه چي الله ددوی زیاربري ته نه بیایي) ﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُونِيٓ أَقْتُلْ مُوسَىٰ ﴾ او وویل فرعون (جابر) پرېږدئ ما (ای مشرانو) چي موسی (درته) ووژنم! ﴿ وَلْيَدْعُ رَبَّهُۥٓ ﴾ اوراودي بولي (موسی) خپل رب (چي له مایې خلاص کړي دغه يې داستهزاء په ډول وويل لکه چي وايې تاسي پدې مه وېرېږئ چي موسی دخپل رب دانتقام بیان کوي دغه هیڅ حقیقت نلري زه ستاسواعلی رب یم غرض يې پدي کي داووچي هغوی ته په پام کي داسي ورولي چي هغه دموسی دوژلوپه هکله دخپلي دلي اومشرانوله زړه څخه نه وزي اونوربل څه مانع اورادع نشته. ابوحیان وایې چي ظاهره دادی چي فرعون ملعون په دې باوردرلودچي موسی نبي دی اوځه چي يې راوړي هغه کوډي نه بلکي معجزې دي لکن سړی زیات پلیت اودوکه بازوو دانتهائي درجې شقاوت اوبېحیایي درلودونکی، ویني تویونکی (سفاک) ووترهرڅه ورته ویني بهول آسانه وو نو ولي به يې هغه څوک چي دده دعرش دړنګېدوپه تکل کي اودده دپاچهي دورانېدوعزم يې درلودنه وژل؟ خوپدې وېرېدوکه چېري يې دوژلوقصدوکړي هلاکت به يې ژرپه برخه شي دده دغه خبري ددوی دتېرایستلو لپاره وې چي ګواکي دوی يې دموسی له وژلوڅخه راګرزوي مګرپه حقیقت کي هغه پخپله سخت وېرېدلی او مرعوب شوی ووچي دغه کاريې نه ترسره کاوو(۱) ﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يُبَدِّلَ دِينَكُمْ ﴾ بېشکه چي زه وېرېږم چي بدل به کړي (موسی) دین ستاسي (چي زماله عبادته څخه به مودخپل رب عبادت ته واړوي) ﴿ أَوْ أَن يُظْهِرَ فِي ٱلْأَرْضِ ٱلْفَسَادَ ﴾ یابه ظاهرکړي (موسی) په ځمکه (دمصر) کي فساد (اختلافونه هرج اومرج اوناورین به خپورکړي دغه لکه هغه متل داسي دی چي (صار فرعون واعظا) یعني فرعون ناصح اووعظ کونکی شو(۲) ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُم ﴾ او وویل موسی (خپل قوم ته) چي بېشکه زه پناه غوارم په رب خپل اورب ستاسو (چي ومو ژغوري) ﴿ مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ ٱلْحِسَابِ ﴾ له (شره د) هرمتکبره (سرکښه چي له ایمان په الله اوباورپه آخرت څخه تکبرکوي په التسهیل کي راوړي داچي ﴿ مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ ﴾ يې وویل اوپه نامه يې یادنکرترڅوچي فرعون اونوروته شامل شي اوڅوچي له فرعونه پرته دبل چالپاره هم وصف شي (۳) ﴿ وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَٰنَهُۥٓ ﴾ او وویل یوسړي مؤمن له خپلوانودفرعون څخه چي پټاوه يې ایمان خپل (له نورو (فرعوني اتباعوڅخه) مفسرین کرام وايې دغه

---

( ) الصاوي ۴/ ۲
(۱) البحرالمحیط ۷/ ۴۵۹
(۲) په الظلال تفسیرکي لیکي: آیادغه عجیبه خبره نه ده چي ګمراه فرعون دموسی علیه السلام په هکله داسي ویناکوي؟ آیادا هغه وینانه ده چي هرطاغوت اومفسدیې دبلونکي اومصلح دعوتګرپه وړاندي کوي آیادغه دحق په وړاندي دباطل ناروا تور اوتهمت نه دی؟ آیادغه دتېروتلوناولي کلمه نه ده؟ چي دایمان په وړاندي شکوک اوشبهات پیداکوي؟ دغه یوډول منطق دی چي هروخت تکرارېږي کله چي حق اوباطل، ایمان اوکفر، صلاح اوطغیان هروخت اوهرځای سره دغري وهي همدابه تکرارېږي دغه پخوانی کیسه ده چي وخت په وخت به وړاندي کېږي.
(۳) التسهیل لعلوم التنزیل ۴/ ۵

سړی دفرعون دتره زوی قبطي ووکله چي چي يې دجابر اوظالم فرعون هغه تهديد واورېدوچي موسی ﷺ ته يې دوژلو ګوت ځنډنه وکړه نويې داسي نصيحت ورته وکړچي: ﴿أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ ٱللَّهُ﴾ (آياوژنئ تاسي داسي يوسړی چي وايې رب زماالله دی) دغه استفهام انکاري اوددوی دتبکيت لپاره راغلی دی يعني تاسوهغه سړی وژنی چي هغه هيڅ ګناه نلري مګرداچي وايې زمارب الله دی تاسوپدې هکله هيڅ سوچ اوفکرنه کوی؟ ﴿وَقَدْ جَآءَكُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ مِن رَّبِّكُمْ﴾ حال داچي په تحقيق راغلی دی تاسي ته په ښکاره دلائلو(معجزو) له طرفه درب ستاسي (هغه معجزاتي چي تاسوليدلې) ﴿وَإِن يَكُ كَٰذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُۥ﴾ اوکه چېري وي (موسی) دروغجن نوپس په همده ده (جزاد) دروغودده (بل چاته نه رسېږي) قرطبي وايې دغه وينايې پدې نه کوله چي ګواکي دی دهغه درسالت په هکله شکمن ووبلکه ددې لپاره چي دوی ته نرمښت وښيي اوهغه ته له ضرر رسولويې راوګرزوي[1] ﴿وَإِن يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُم بَعْضُ ٱلَّذِى يَعِدُكُمْ﴾ اوکه چېري وي (موسی) رښتونی (په خپله دعوی کي) نووبه رسېږي تاسي ته ځيني دهغه عذاب چي وعده کوي (موسی دهغه) له تاسي سره ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ﴾ (بېشکه الله سمه لاره نه ښيي هرهغه چاته چي هغه مسرف له حده تېرېدونکی وي دېر دروغجن وي) يعني الله ﷻ دايمان اوهدايت لوري ته توفيق نه ورښيي. امام فخررازي رحمه الله وايې چي پدې کي (دحضرت موسی) دشان لوړوالي ته اشاره ده څکه چي الله ورته هدايت کړی اوپه معجزاتويې نازولی دی اودفرعون لوري ته ددې تعريض دی چي هغه له حده تېرېدونکی پدې عزم کي چي دموسی دوژلواراده يې کړي اودېردروغجن دی چي دالوهيت دعوی يې کړي اوداچاچي دغه شان اوصفت وي الله ورته سمه لاره نه ښيي بلکه هغه ورانوي اوله مينځه يې وړي[2] په البحرالمحيط کي ليکي چي دغه دعلم البيان له انواعوځخه يونوع دی چي زموږعلماء ورته (دمخاطب استدراج) نوم ورکوي هغه داچي دي سړي کله چي وليدل فرعون دموسی ﷺ دوژلوتکل کړی نوده دهغه د مرستندويې لپاره له داسي تګلاري کارواخيست چي فرعون ونه پوهېږي چي دغه سړی يې پلوي او مرستندوی دی نودوی ته يې دنصيحت اوتلطف په ډول وويل ﴿أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا﴾ نوم يې وانه خيست بلکه سړی يې وباله ترڅودوی ته وښيي چي دی يې نه پېژني بيايې وويل: ﴿أَن يَقُولَ رَبِّيَ ٱللَّهُ﴾ داسي يې ونه ويل چي دی ايمان درلودونکی په الله اويادا چي داالله پيغمبرڅکه که يې داسي ويلي وای نوبه دوی پدې غوږېدلي وو چي دی يې له پلويانو(اتباعو) څخه دی نوبيايې خبره نه منله ورپسي يې داسي وويل: ﴿وَإِن يَكُ كَٰذِبًا﴾ دروغ يې تر رښتياله مخه راوړل چي ددوی درايې موافقت څرګند کړي ورپسي يې وويل ﴿وَإِن يَكُ صَادِقًا﴾ اوداسي يې ونه ويل چي هغه رښتونی دی همداسي

---

[1] تفسيرالقرطبي ۱۵/۳۰۷

[2] التفسيرالكبير ۲۷/۵۹

يې زياته کړه چي: ﴿ يُصِبۡكُم بَعۡضُ ٱلَّذِي يَعِدُكُمۡ ﴾ چي ځيني دعذاب به درته ورسېږي داسي يې وند ويل چي ټول هغه عذاب چي درسره يې وعده کوي ځکه پدغه ډول ويناکي به بيادوی داسي انګېرله چي ګواکي سړی يې له پلويانو ځخه اودهغه په نبوت باندي باورلري بيايې داسي کلام ورته واورول چي له هغه داسي معلومېږي لکه چي دی وربانديي باوراوتصديق نلري چي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي مَنۡ هُوَ مُسۡرِفٞ كَذَّابٞ ﴾ اوپدې کي فرعون ته اشاره شوي ځکه هغه خورا له حده تېرېدونکی اوپه الله ﷻ باندي دروغ تړونکی وو چي دربوبيت اوالوهيت دعوی يې کړي وه([1]) ﴿ يَٰقَوۡمِ لَكُمُ ٱلۡمُلۡكُ ٱلۡيَوۡمَ ظَٰهِرِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ (ای زماقومه تاسي لره دی ملک پاچهي نن ورځ په دغه حال کي چي غالب يې په ځمکه (دمصر) کي) بيايې نصيحت له تلطف سره مل تکرارکړچي تاسي په بني اسرائيلوباندي برلاسي اودمصرپه ځمکه کي مودوی پخپل خدمت (چوپړ) ګمارلي اومريان کړي دي ﴿ فَمَن يَنصُرُنَا مِنۢ بَأۡسِ ٱللَّهِ إِن جَآءَنَا ﴾ پس څوک به نصرت وکړي له موږسره له عذابه دالله که راشي (داعذاب) موږلره؟ (په سبب د وژلو دموسی بلکه مرستندوی نشته نومه يې وژنئ. امام رازي رحمه الله وايي داچي ويې ويل ﴿ يَنصُرُنَا ﴾ او ﴿ جَآءَنَا ﴾ ددې لپاره چي دوی ته وښيي هغه هم ددوی له ډلي ځخه دی اوڅوک چي دوی ته نصيحت کوي هغه هم له دوی سره پکي شريک دی([2]) پدې وخت کي فرعون خپل تکبرګناه ته اړباسي اوجبروت اوطغيان يې په جوش راخي نو ﴿ قَالَ فِرۡعَوۡنُ مَآ أُرِيكُمۡ إِلَّا مَآ أَرَىٰ ﴾ وويل فرعون چي زه نه ښيم تاسي ته مګرهغه (مصلحت) چي زه يې وينم (په وژلودموسی کي چي دفتنې ريښې غوځي شي) ﴿ وَمَآ أَهۡدِيكُمۡ إِلَّا سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ﴾ اونه ښيم زه تاسي ته (ای قبطيانو) مګرلاره دنېکي (اودمصلحت) ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِيٓ ءَامَنَ يَٰقَوۡمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُم مِّثۡلَ يَوۡمِ ٱلۡأَحۡزَابِ ﴾ نو وويل هغه (سړي) چي ايمان يې راوړی ووای زماقومه بېشکه زه وېرېږم پرتاسي (په تکذيب دموسی کي) په مثل د(عذاب) دورځي دډلو(د پخوانيوپه سبب دتکذيب دانبياوو) ﴿ مِثۡلَ دَأۡبِ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ ﴾ په مثل دحال دقوم دنوح اوپه (شان) دعاديانواوپه (شان) دثموديانو(چي ګردهلاک شول ځکه چي دانبياوو تکذيب يې کاوو ﴿ وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ ﴾ اوهغه کفارچي وروسته له دوی نه وو(لکه قوم دلوط) ﴿ وَمَا ٱللَّهُ يُرِيدُ ظُلۡمٗا لِّلۡعِبَادِ ﴾ (اونه دی الله چي اراده لري دظلم پرخپلوبندګانو) يعني الله يې بغيرله ګناه ځخه نه هلاکوي. زمخشري وايې چي ددوی هلاکت دعدل اوانصاف له مخي شوی ووځکه چي دوی پخپلواعمالو د هلاک مستحق ګرزېدلي وواوپدې کي مبالغه نغښتي ده ځکه چي دظلم اراده يې نفی کړي اوڅوک چي دظلم له ارادې ځخه ليري وي هغه خوپخپله له

---

([1]) البحرالمحيط ۴۲۱/۷

([2]) تفسير کبير ۵۹/۲۷

ظلم کولو څخه څورالیري او ګوښه دی(١) ﴿وَيَٰقَوۡمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ يَوۡمَ ٱلتَّنَادِ﴾ (او ای قومه زما بېشکه زه وېرېږم پرتاسي له (عذابه د) ورځي درابللو(په چيغوسره) دوی یې وروسته له دنیوي عذابه په اخروي عذاب ووېرول چي هغه دحشراکبرورځ ده کله چي مجرمینوته دهلاک او افسوس چیغي وروهل کېږي لکه ﴿دَعَوۡاْ هُنَالِكَ ثُبُورٗا﴾ (الفرقان١٣) ﴿يَوۡمَ تُوَلُّونَ مُدۡبِرِينَ﴾ هغه ورځ چي وګرزی تاسي شاارونکي (له هیبته دعذاب دجهنم) مفسرین کرام وايي چي کله کفاردوزخ چیغي زفیر واوري نوبه موقف ته شاکړي اوپه تېښته به درومي هرلوري ته چي ځي هلته به پرښتې وي اودوی به په مخونو وهي بيرته به یې خپل ځای ته راستانه کړي اودوزخ به یې ترستوني تېرکړي ﴿مَا لَكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِنۡ عَاصِمٖ﴾ نه به وي تاسوته له (عذابه) دالله هیڅوک ساتونکی ﴿وَمَن يُضۡلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنۡ هَادٖ﴾ اوهرهغه څوک چي الله ګمراه کړي نونه به وي ده ته هیڅوک لارښوونکی سمي لاري لاري ته ﴿وَلَقَدۡ جَآءَكُمۡ يُوسُفُ مِن قَبۡلُ بِٱلۡبَيِّنَٰتِ﴾ او(قسم دی چي)خامخاپه تحقیق راغلی وو تاسي ته یوسف پخوا(له موسی څخه) په ښکاره وودلائلو (ظاهرو معجزاتوسره) ﴿فَمَا زِلۡتُمۡ فِي شَكّٖ مِّمَّا جَآءَكُم بِهِۦ﴾ پس همېشه به وی تاسي په شک (ګمان) کي له هغه (حکمه) چي راغلی وودی تاسي ته په هغه سره (له جانبه دالله) مفسرین وايي چي مرادله دوی څخه ددوی پلرونه اونیکونه دي ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا هَلَكَ قُلۡتُمۡ لَن يَبۡعَثَ ٱللَّهُ مِنۢ بَعۡدِهِۦ رَسُولٗا﴾ (ترهغه پوري چي کله وفات شو(یوسف) نوو ویل تاسي چي له سره به الله راونه لېږي وروسته له دغه (یوسف) څخه هیڅ رسول ) یعني تاسوبه د تمنااو آرزوپه ډول ویل چي له یوسف څخه وروسته به بیاڅوک رانشي چي درسالت دعوی وکړي ابوحیان وايي ددې معنادانه ده چي دوی دیوسف رسالت مانوځکه دوی تل ترتله دهغه په هکله شکمن وونو معناداچي هیڅ پیغمبربه دالله له لوري رانشي دلته درسول اوبعثت دوارونفی شتون لري(٢) ﴿كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ مَنۡ هُوَ مُسۡرِفٞ مُّرۡتَابٌ﴾ همداسي (لکه دغه اضلال ) ګمراه کوي الله هرهغه چي مسرف له حده تېرېدونکی (په ګناه کي) اوشک راوړونکی وي(په دین کي وروسته له هغه چي ښکاره دلائل اوبراهین ورته راغلي وي ) ﴿ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِيٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ بِغَيۡرِ سُلۡطَٰنٍ أَتَىٰهُمۡ﴾ هغه (مسرفین اومرتابین) چي جګړه کوي (له انبیاووسره) په (ابطال)(دشریعت) دالله کي بې له کوم برهان علمي سنده چي دوی ته راغلی وي (له جانبه دالله) ﴿كَبُرَ مَقۡتًا عِندَ ٱللَّهِ وَعِندَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ ډېر لوی دی دغه (جدال) له جهته دبغض په نزددالله اوپه نزد دهغوکسانوچي ایمان یې راوړی دی په البحرالمحیط کي وايي واعظ له خطاب څخه اسم غائب ته عدول وکړترڅودوی زړونه په لاس راوړي اودمحاورې ښکلاوساتي ځکه یې دوی ته مخامخ دخطاب په صیغه ونه ویل اوپدې ویناکي چي

---

(١) الکشاف ١٢٨/٤

(٢) البحرالمحیط ٤٦٤/٧

﴿ كَبُرَ مَقْتًا ﴾ يو ډول تعجب او ددوی دمجادلې استعظام نغښتی دی لکه چي دغه ددوی جدال د سيالو کبائرو له حدودو څخه وتلي دي(۱) ﴿ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ﴾ همداسي لکه (مهرلګول په زړونو دمجادلينو) مهروهي الله دضلالت اوشقاوت ) په زړه دهرمتکبر(له ايمانه) او دهرجبرکونکی (په بندګانو چي عقل يې له کاره لوېږي اوحق ته غاړه نه ايږدي زړه ته يې پدې دتکبراو جبروت صفات ثابت کړل چي هغه يې منبع اومرکزدی زړه دګردواندامونو باچادی کله چي زړه فاسد شي نورټول فسادمومي) ﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَـٰهَـٰمَـٰنُ ٱبْنِ لِي صَرْحًا ﴾ او وويل فرعون ای هامانه (زماوزيره) جوړه کړه ماته يوه ماڼۍ دېره لوړه (آسمان څکه ښکاره ښکاره). قرطبي وايي کله چي دفرعون دتېرمؤمن څپله مقاله وړاندي کړه اوفرعون پدې ووېرېدوچي دده خبرې دخلګوزړونوته لاره ونه مومي نوېې ددوی په خيال کي وروستل چي موسی کوم توحيدراوړي دي هغه يي ازمويي چې ايا رښتيا ده؟ نويې څپل وزيرهامان ته دستري ماڼۍ دودانولو امرصادر کړ. ﴿ لَّعَلِّيٓ أَبْلُغُ ٱلْأَسْبَـٰبَ أَسْبَـٰبَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ ﴾ ښايي ورسېږم لاروته (په دغو ختلوسره) لارودآسمانونوته ؛ تکرار دلارويې دتفخيم اوبيان لپاره کړي دي(۲) ﴿ فَأَطَّلِعَ إِلَىٰٓ إِلَـٰهِ مُوسَىٰ ﴾ پس چي زه وګورم الله دموسی ته(په ښکاره کتلوچي آيا شته دی؟) ﴿ وَإِنِّي لَأَظُنُّهُۥ كَـٰذِبًا ﴾ او بېشکه زه ګمان کوم پردغه موسی ددروغجن (په دعوی کي چي هغه له ماپرته بل الله لري) ابوحيان وايي چي دآسمان لاروته ورختل غيرممکن دي خوفرعون دخپلواوريدنکولپاره ممکن غوندي ښکاره کړي ترڅودوی تېرباسي اوداچي يې وويل: ﴿ فَأَطَّلِعَ إِلَىٰٓ إِلَـٰهِ مُوسَىٰ ﴾ دغه خوځده له لوري په الله باندي اقرار وونو څکه يې سمدستي ددغي خبري دپټولولپاره وروپسې زياته کړه چي ﴿ وَإِنِّي لَأَظُنُّهُۥ كَـٰذِبًا ﴾ (۳) ﴿ وَكَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ ﴾ اوهمداسي (لکه ښائست ددغي دنيا) ښايسته کړی شوی وو فرعون ته بدي دعمل دده (چي ښکلی ورته ايسېدو) ﴿ وَصُدَّ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ اودی منع کړی شوی وو له سمي لاري(دهدايت څخه په ګمراهي څپله سره) ﴿ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ ﴾ اونه وودغه مکردفرعون (په جوړولودماڼۍ کي) مګرپه زيانکاري هلاک والي کي وو(په دنيااوآخرت کي په دنياکي په غرقېدلو اوپه آخرت کي په همېشه اوسېدلو په اورکي) ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِيٓ ءَامَنَ يَـٰقَوْمِ ٱتَّبِعُونِ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ﴾ (اوووېل هغه (سړي) چي ايمان يې راوړی وو ای زماقومه زما متابعت وکړئ چي وښيم تاسي ته لاره دهدايت) کله چي مؤمن له فرعون څخه دغه چم اوفرېب واورېدونويې قوم په واحداحداث باندي ايمان راوړلوته وباله اودوی ته يې دفاني دنيابېه اوټول ورو ښودداخرت تلپاتي ژوندانه

---

(۱) البحرالمحيط ۷/ ۴۶۴

(۲) البحرالمحيط ۷/ ۴۶۵

(۳) القرطبي ۱۵/ ۳۱۷

او نعمتونو ته بې وهځول او د الله له عذابه بې وو يرول (او ورته ويل يې) ﴿ يَٰقَوۡمِ إِنَّمَا هَٰذِهِ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَا مَتَٰعٞ ﴾ اى زما قومه بېشكه همدا خبره ده چي دغه ژوندون د دنيايوه (لږ) متاع (گټه) ده (چي دوام نلري) ﴿ وَإِنَّ ٱلۡأٓخِرَةَ هِيَ دَارُ ٱلۡقَرَارِ ﴾ او بېشكه آخرت همغه كور د قرار دى (چي زوال نلري او نه تري لېږد بدل شته يا به تلپاتي نعمتونه او يا به هم تلپاتي اور د دوزخ وي. قرطبي وايي مقصد يې له آخرت څخه جنت او اور دى ځكه چي همغه ابدي دى فنا نلري ([1]) ﴿ مَنۡ عَمِلَ سَيِّئَةٗ فَلَا يُجۡزَىٰٓ إِلَّا مِثۡلَهَاۖ ﴾ هرڅوک چي بد كار وكړي پس جزا نه وركوله كېږي (هغه ته) مگر په قدر د هم هغي بدي بې له زياتوالي او دغه د الله له لوري پخپلو بندگانو باندي رحمت او مهرباني ده ) ﴿ وَمَنۡ عَمِلَ صَٰلِحٗا مِّن ذَكَرٍ أَوۡ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤۡمِنٞ ﴾ او هرڅوک چي وكړي نېک كار له نارينه وو وي يا له ښځووي حال دا چي مؤمن وي ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ يَدۡخُلُونَ ٱلۡجَنَّةَ يُرۡزَقُونَ فِيهَا بِغَيۡرِ حِسَابٖ ﴾ پس دغه (صالحان مؤمنان) ننه به ووزي په جنت كي روزي به وركوله كېږي (دوى ته) په دغه جنت كي بې حسابه (څو چنده زياته او دغه به د الله له لوري فضل او كرم وي د الله د فضل همدا غوښتنه ده چي حسناتٌ بې له سيئاتو څو چنده اضافه كوي) ابن كثير وايي چي د ﴿ بِغَيۡرِ حِسَابٖ ﴾ معنا دا چي د جزا په اندازه به نه وي بلكه ستر او لوى ثواب به الله وركوي چي نه به خلاصېږي او نه به زائلېږي ([2]) ﴿ وَيَٰقَوۡمِ مَا لِيٓ أَدۡعُوكُمۡ إِلَى ٱلنَّجَوٰةِ وَتَدۡعُونَنِيٓ إِلَى ٱلنَّارِ ﴾ او اى زما قومه څه دى ما لره چي بولم تاسي په طرف د نجات (ايمان) او بولى تاسي ما په طرف د اور (د دوزخ چي كفر دى؟) استفهام د تعجب لپاره دى لكه چي وايې زه تعجب كوم ستاسو له دې حاله زه مو د خير ښېگڼي لوري ته بولم او تاسو مي د شر او اور طرف ته بيايى او بيايې توضيح د اسي كوي چي : ﴿ تَدۡعُونَنِي لِأَكۡفُرَ بِٱللَّهِ وَأُشۡرِكَ بِهِۦ مَا لَيۡسَ لِي بِهِۦ عِلۡمٞ ﴾ بولى تاسي ما د دې لپاره چي كفر غوره كړم په الله پوري او چي شريک ونيسم له دغه (الله) سره هغه (څيز) چي نشته ما ته (په ربوبيت د ) هغه هيڅ علم (او اله نه دى لكه فرعون) ﴿ وَأَنَا۠ أَدۡعُوكُمۡ إِلَى ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡغَفَّٰرِ ﴾ حال دا چي بولم زه تاسي هغه (الله) ته چي ښه غالب قوي دى ښه ښونكى دى (د گناهونو د بندگانو) ﴿ لَا جَرَمَ أَنَّمَا تَدۡعُونَنِيٓ إِلَيۡهِ ﴾ حقه او رښتيا دا خبره بېشكه هغه (معبود) چي تاسي ما بولى (عبادت د ) هغه ته ﴿ لَيۡسَ لَهُۥ دَعۡوَةٞ فِي ٱلدُّنۡيَا وَلَا فِي ٱلۡأٓخِرَةِ ﴾ (نشته هغه ته (قوت د ) بلني (نه) په دنيا كي او نه په آخرت كي ،نه له چا كوم تكليف دفع كولاى شي نو هغه د عبادت لپاره نه ښايي ﴿ وَأَنَّ مَرَدَّنَآ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ او بېشكه چي ورتله زمونږ د ټولو خاص الله لره دي (هرچا ته به په خپل عمل او كړو جزا وركړي) ﴿ وَأَنَّ ٱلۡمُسۡرِفِينَ هُمۡ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِ ﴾ او بېشكه چي مسرفان (له

---

([1]) مختصر ابن كثير ۳/ ۲۴۵

([2]) نفس المرجع.

حده تېرېدونکي په ضلالت او طغيان کي هم دوی ملګري داور(ددوزخ) دي(چي تل به پکي اوسي
﴿ فَسَتَذْكُرُونَ مَا أَقُولُ لَكُمْ ﴾ پس ژردی چي یادبه کړی تاسو(په وخت دليدلو دعذاب کي) هغه چي
زه يې تاسي ته وايم (دغه وعيد او تهديد دی) ﴿ وَأُفَوِّضُ أَمْرِيٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ اوسپارم زه هرکار خپل الله ته (په
الله مي توکل دی ) قرطبي وايې چي دغه پدې دلالت کوي چي دوی به ورته دوژلو اخطار ورکړی وي[۱]
﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بَصِيرُۢ بِٱلْعِبَادِ ﴾ بېشکه چي الله ښه ليدونکی دی (د ټولو اقوالو افعالو ) د بندګانو(هيڅ
ورځخه پټ او الونيا نه دی ) ﴿ فَوَقَىٰهُ ٱللَّهُ سَيِّـَٔاتِ مَا مَكَرُواْ ﴾ پس وساته الله دي (سړي) لره له
سختو(عذابونو ) دهغو چي دوی مکرکړی وو ﴿ وَحَاقَ بِـَٔالِ فِرْعَوْنَ سُوٓءُ ٱلْعَذَابِ ﴾ اوچاپېرشو په آل
دفرعون (سره له فرعونه )بدعذاب (چي په دنياکي غرق اوپه آخرت کي وسوځېدو بيايې تفسيرهسي
فرمايي:﴿ ٱلنَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا ﴾ اور ددوزخ ورانديږي کاووشي (داکفار) پردې اور هر
صبااوبېګاه . مفسرين کرام وايې چي مرادله اوره ځخه اور د قبر دی دليل يې داچي وروسته پسي
فرمايي:﴿ وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ أَدْخِلُوٓاْ ءَالَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ ٱلْعَذَابِ ﴾ اوپه هغه ورځ کي چي قيامت قائم شي
(نووبه ويلی شي له جانبه د الله ملائکوته ) ننبي باسئ تاسي آل دفرعون (سره له ده) په ډېرسخت عذاب کي
(له عذابه ددنيا).

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذْ يَتَحَآجُّونَ فِى ٱلنَّارِ فَيَقُولُ ٱلضُّعَفَـٰٓؤُاْ لِلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓاْ إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا نَصِيبًا مِّنَ ٱلنَّارِ ﴿٤٧﴾ قَالَ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓاْ إِنَّا كُلٌّ فِيهَآ إِنَّ ٱللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ ٱلْعِبَادِ ﴿٤٨﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ فِى ٱلنَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ٱدْعُواْ رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ ٱلْعَذَابِ ﴿٤٩﴾ قَالُوٓاْ أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُم بِٱلْبَيِّنَـٰتِ ۖ قَالُواْ بَلَىٰ ۚ قَالُواْ فَٱدْعُواْ ۗ وَمَا دُعَـٰٓؤُاْ ٱلْكَـٰفِرِينَ إِلَّا فِى ضَلَـٰلٍ ﴿٥٠﴾ إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ ٱلْأَشْهَـٰدُ ﴿٥١﴾ يَوْمَ لَا يَنفَعُ ٱلظَّـٰلِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ ۖ وَلَهُمُ ٱللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوٓءُ ٱلدَّارِ ﴿٥٢﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْهُدَىٰ وَأَوْرَثْنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْكِتَـٰبَ ﴿٥٣﴾ هُدًى وَذِكْرَىٰ لِأُوْلِى ٱلْأَلْبَـٰبِ ﴿٥٤﴾ فَٱصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَٱسْتَغْفِرْ لِذَنۢبِكَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِٱلْعَشِىِّ وَٱلْإِبْكَـٰرِ ﴿٥٥﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُجَـٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَـٰتِ ٱللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَـٰنٍ أَتَىٰهُمْ ۙ إِن فِى صُدُورِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ مَّا هُم بِبَـٰلِغِيهِ ۚ فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ ۖ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ﴿٥٦﴾ لَخَلْقُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ ٱلنَّاسِ وَلَـٰكِنَّ

---

[۱] القرطبي ۱۵/ ۳۱۸

أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٥٧﴾ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَلَا ٱلْمُسِىٓءُ ۚ قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾ إِنَّ ٱلسَّاعَةَ لَءَاتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٩﴾ وَقَالَ رَبُّكُمُ ٱدْعُونِىٓ أَسْتَجِبْ لَكُمْ ۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِى سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ﴿٦٠﴾ ٱللَّهُ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِتَسْكُنُوا۟ فِيهِ وَٱلنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٦١﴾ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ خَٰلِقُ كُلِّ شَىْءٍ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴿٦٢﴾ كَذَٰلِكَ يُؤْفَكُ ٱلَّذِينَ كَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٦٣﴾ ٱللَّهُ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ قَرَارًا وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَرَزَقَكُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ ۚ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ ۖ فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٦٤﴾ هُوَ ٱلْحَىُّ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَٱدْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ۗ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٦٥﴾ ۞ قُلْ إِنِّى نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَمَّا جَآءَنِىَ ٱلْبَيِّنَٰتُ مِن رَّبِّى وَأُمِرْتُ أَنْ أُسْلِمَ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٦٦﴾ ﴾ غافر: ۴۷ – ۶۶

مناسبت:

کله چي الله دفرعون اودهغه دتبردهلاکولوبیان وکړ ورپسې دهغوشخړوبیان فرمایې چي ددوزخیانوترمینځ به پېښېږي اومجرمین به دفریادرسي چیغي وهي خوڅوک به یې نه اوري اوبیاد الله جل جلاله په قدرت اووحدانیت دلائل راوړي ترڅوچي په مشرکانوباندي حجت شي.

لغتونه: (یتحاجون) جګړه کوي (خزنة) دخازن جمع اوساتونکي متکفل اوڅارونکي ته ویل کېږي (الاشهاد) دشاهد جمع اوهغه چاته ویل کېږي چي په دلیل سره په بل چاګواهي وایي (داخرین) ذلیل (تؤفکون) له ایمان څخه کفرته ګرزول کاووشي (قرارا) مستقر (أسلم) اېل اوتابع شو.

تفسیر:

﴿ وَإِذْ يَتَحَآجُّونَ فِى ٱلنَّارِ ﴾ (او (یادکړه) هغه چي جګړه به کوي (دوزخیان) په اورکي) یعني کله چي مشران اواتباع یې یوله بله دعوې دانګلي کوي ﴿ فَيَقُولُ ٱلضُّعَفَٰٓؤُا۟ لِلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓا۟ إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا ﴾ پس وبه وایي ضعیفان (تابعان) هغوکسانوته چي سرکښان (اومشران متبوعان وو) بېشکه موږ ستاسي تابعان وو (تاسي نه دخدمتګارانوپه شان غاړه ایښودونکي ووستاسي له خوادکفراوضلالت ګرداوامربه موږ منل) ﴿ فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا نَصِيبًا مِّنَ ٱلنَّارِ ﴾ پس آیااوس یاست تاسي (ای متبوعانو) دفع کونکي له موږ څخه کومه برخه له اوره ددوزخ؟ (کوم چي موږ پکي یو) امام رازي وایې دوی پدې پوهېږي چي دغه مشران دعذاب په سپکولوقدرت نلري بلکه ددوی دغه خبره دهغوی دخجالت اوشرمولودپاره ده اوداچي دوی ملامت کړي ځکه چي هغوی دوی په قسما قسم ګمراهیوکي

اخته کړي وو([1]) ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓاْ إِنَّا كُلٌّ فِيهَآ ﴾ وايي هغه کسان چي تکبري کړی وو (متبوعان چي څرنگه يې دفع کړو) بېشکه موږ ټول په دوزخ کي يو؛ که موږ د عذاب په دفع کولو توان لرلای نو له خپله ځانه به موليري کړی وای ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ ٱلْعِبَادِ ﴾ بېشکه الله په تحقيق حکم کړی دی په مينځ د بندګانو کي (داسي قطعي حکم چي مؤمنان يې جنت ته او کافران يې دوزخ ته ولېږل نو موږ ستاسي لپاره هيڅ هم نشو کولای ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ فِى ٱلنَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ﴾ او وبه وايي هغه کسان (چي پراته دي) په اورکي متصرفانو د دوزخ ته (لپاره د تخفيف د عذاب. بيضاوي وايي داچي جهنم يې د ضمير پرځای ظاهر راوړ چي ﴿ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ﴾ يې وفرمايل پرځای د دې چي ويلي يې وای (لخزنتها) د دادې لپاره چي هيبت او فظاعت افاده کړي ﴿ ٱدْعُواْ رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ ٱلْعَذَابِ ﴾ دعا وکړئ زموږ د پاره رب خپل ته چي سپک کړي له موږ څخه يو ورځ له عذابه ﴿ قَالُوٓاْ أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ وبه وايي (ورته متصرفان) آيا تاسي ته رسولان نه وو راغلي په ښکاره دلائلو سره (چي تاسو وربا ندي کافران شوی او د هغو تکذيب مو وکړ) ﴿ قَالُواْ بَلَىٰ ﴾ وايي (ولي نه وو راغلي) بلکه راغلي وو ﴿ قَالُواْ فَٱدْعُواْ ﴾ وبه وايي (متصرفان) پس وبولئ تاسي (پخپله الله موږ خو د غه جرأت نلرو. امام رازي وايي چي دا ويناچي ورته وايي ﴿ فَٱدْعُواْ ﴾ د دې لپاره نه ده چي گنه دوی ته به گټه ورسوي بلکه د دې لپاره ده چي په ناهيلي او ناأميدي دلالت وکړي ځکه کله چي د مقربينو ملائکو دعانه اورېدل کېږي د کفارو به څنگه ولورېدل شي([2]) بيا ورته پد ې خبره تصريح کوي چي د دوی دعا اغيزه نلري ﴿ وَمَا دُعَٰٓؤُاْ ٱلْكَٰفِرِينَ إِلَّا فِى ضَلَٰلٍ ﴾ او نه دی دعا د کافرانو مگر په گمراهي کي (گټه ورته نلري) ﴿ إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ بېشکه چي موږ خامخا مدد کوو له خپلو رسولانو سره او له هغو کسانو سره چي ايمان يې راوړی دی په د ې دنيا کي (چي له کفارو څخه د دوی غچ اخلو او انبياوو او مؤمنانو ته پر هغوی بری ورکوو) ﴿ وَيَوْمَ يَقُومُ ٱلْأَشْهَٰدُ ﴾ او په هغه ورځ چي شاهدان به ودرېږي (کوم چي د بندگانو په عملونو به شاهدي وايي لکه پرښتې، نبيان او مؤمنان. امام رازي وايي چي په آيت شريف کي له مؤمنانو سره د دې وعده شوي چي په دنيا او آخرت کي به الله تعالى دوی ته د دوی پر دښمنانو باندي بری ورکوي([3]) ﴿ يَوْمَ لَا يَنفَعُ ٱلظَّٰلِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ ﴾ په هغي ورځي چي به هيڅ گټه نه رسوي ظالمانو ته عذرونه د دوی. ابن جرير وايي چي مشرکانو ته به د دوی عذرونه وړاندي کول څه گټه نه لري ځکه دوی به

---

([1]) التفسير الكبير ۲۷ /۷۴

([2]) التفسير الكبير ۲۷ /۷۴

([3]) كبير تفسير ۲۷ /۷۵

په باطل دول باندي عذرونه کوي ﴿ وَلَهُمُ ٱللَّعۡنَةُ ﴾ اوشته دوی ته لعنت (بُعد له رحمته د الله) ﴿ وَلَهُمۡ سُوٓءُ ٱلدَّارِ ﴾ اوشته دوی ته ناکاره کور (ددوزخ) ابن عباس وايې چي د ﴿ سُوٓءُ ٱلدَّارِ ﴾ معناسوء العاقبة دی ﴿ وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَى ٱلۡهُدَىٰ ﴾ اوخامخاپه تحقيق ورکړي وو موږ موسی ته (امورد) هدايت (لکه معجزې، صحائف او شرائع) (۱) ﴿ وَأَوۡرَثۡنَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱلۡكِتَٰبَ ﴾ اوپه ميراث مو ورکړبني اسرائيلوته کتاب (دتورات) ﴿ هُدٗى وَذِكۡرَىٰ لِأُوْلِي ٱلۡأَلۡبَٰبِ ﴾ پدې حال کي چي هدايت سمه لاره ښوونکی وو اوپند وولپاره د خاوندانود خالصو عقلونو ﴿ فَٱصۡبِرۡ إِنَّ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقّٞ ﴾ پس صبروکړه (ای محمده! دکفارو په ضرر) بېشکه چي وعده د الله حقه ده (په نصرت دانبياوو چي ددوی دښمنان به هلاکوي) په دې وعده کي د خلاف امکان نشته ځکه چي الله لايخلف الميعاد دی. امام فخررازي وايې چي الله وفرمايل چي الله خپل پيغمبران بريالي کوي نوېې دموسی عليه السلام په حال باندي مثال تېرکړاوبيايې خپل پيغمبر ته خطاب وکړچي: ﴿ فَٱصۡبِرۡ إِنَّ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقّٞ ﴾ مقصد داچي الله ستاسو همغسي مرستندوی دی لکه چي ددوی وو او همداسي به الله خپله وعده له تاسره هم ترسره کړي لکه چي له دوی سره يې ترسره کړي وه (۲) ﴿ وَٱسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۢبِكَ ﴾ اومغفرت وغواړه لپاره دګناه خپلې دکوم چي له تاڅخه ترک داولی اوأفضل شوی وي) صاوي وايې چي پدې کي مقصد امت ته ددې تعليم اوښوونه ورکول دي چي دخپلو ګناهونو معافي دي وغواړي ځکه چي رسول الله ﷺ خوله صغائرو او کبائرو ګناهونو څخه مخکي ترنبوت او وروسته معصوم دی (۳) ابن کثير وايې چي پدې کي امت ته داستغفار کولو هڅونه ده (۴) ﴿ وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ بِٱلۡعَشِيِّ وَٱلۡإِبۡكَٰرِ ﴾ او (په دوام سره) تسبيح وايه سره له ثنا د رب خپل هم په آخره برخه دورځي کي او هم په اوله دورځي کي امام رازي وايې چي دامر مقصد له دوام څخه دی چي هيڅ وخت دي ژبه له ذکرڅخه خالي نه وي ترڅو دابرارو ملائکو له ډلي شي هغه چي ﴿ يُسَبِّحُونَ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ لَا يَفۡتُرُونَ ﴾ (الانبيا ۲۰) اومراد له تسبيح څخه د الله (جلت عظمته) له ټولو هغو شيانو څخه تنزيه او پاکي ده چي ورسره نه ښايې، وروسته الله تبارک وتعالی په هغه څه باندي تنبيه فرمايي کوم چي کفاريې په باطله سره جګړه کولو ته ار ايستل ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِيٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ بېشکه هغه کسان چي مجادله جګړه کوي په (بطلان) دآيتونود الله ﴿ بِغَيۡرِ سُلۡطَٰنٍ أَتَىٰهُمۡ ﴾ بې له کوم علمي سنده چي دوی ته راغلی وي ﴿ إِن فِي صُدُورِهِمۡ إِلَّا كِبۡرٞ مَّا هُم بِبَٰلِغِيهِۚ ﴾ بېشکه چي نه دی په سينو (زړونو) ددوی کي مګر کبراو سرکښي ده چي نه دي دوی رسېدونکي هغه (مقصد ته) (چي

(۱) تفسيرد ابو السعود ۵ /۱۲
(۲) التفسير الکبير ۲۷ /۷۷
(۳) دصاوي حاشيه ۴ /۱۷
(۴) دابن کثير مختصر ۳ /۲۴۸

دوی غواړي دالله دنور شغله ووژني اوپرتابرى وومومي) ﴿ فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ﴾ پس پناه ونيسه په الله پوري (له شره ددوی بېشکه دغه الله هم دی دی ښه اورېدونکی (داقوالو) ښه ليدونکی (داحوالوددوی) يعني الله ته ددوی له مکره څخه پناه يوسه بېشکه الله ددوی شرله تاڅخه دفع کوي ورپسې الله ﷻ دخپل قدرت او وحدانيت دلائل داسي يادوي چي ﴿ لَخَلْقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ ٱلنَّاسِ ﴾ خامخاپيداکول دآسمانونواودځمکي ډېرلوی دی له پيدااېښته دخلګو (څوک چي دداسي سترو شيانوپه پيداکولوقادروي هغه به څرنګه دداسي وړوشيانو لکه خلګ دپيداکولوڅخه عاجزوي ؟) په التسهيل کي ليکي چي له دې څخه مقصدپه بعث باندي استدلال راوړل دي څکه هغه پروردګارچي د آسمانونواوځمکي په پيدااېښت قادردی هغه دشيانوله فاني کېدلو وروسته په راپورته کولواو ژوندي کولوهم قادردی (١)﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليکن اکثرد خلګو نه پوهېږي (په آساني ددوهم ځل پيدااېښت تراول )څکه چي دوی خوراپه غفلت کي اودخپلو خواهشاتو پيروي کونکي او درباندي ناپوهي اوجهل غلبه کړي ده ﴿ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ اونه سره برابرېږي کافراومؤمن ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَلَا ٱلْمُسِىٓءُ ﴾ او(هم داسي نه سره برابرېږي) هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه (عملونه) اونه هغه چي بدکاردی (يعني براوفاجرسره برابرنه دي)﴿ قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ ﴾ (ډېرلږ پنداخلی تاسي (ای خلګو) يعني تاسو په دې مثالونوپند نه اخلی مګرلږکسان . ابن کثيروايي چي مقصددادی لکه څرنګه چي ړوند هغه چي هيڅ نه ويني اوبيناهغه چي څويې دسترګوديدرسېږي ليدل کوي سره برابرنه دي همدغه رنګه ابرار مؤمنان اوفجارکافران سره نه دي برابرخوډېرلږخلګ له دې څخه پنداخلي (٢) ﴿ إِنَّ ٱلسَّاعَةَ لَءَاتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا ﴾ بېشکه چي قيامت خامخا راتلونکی دی نشته هيڅ شک په (راتللو) دغه (قيامت) کي ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ وليکن زياتره دخلګوايمان نه راوړي (په راتلودقيامت څکه نوله بعث اوجزاءڅخه منکرېږي. امام رازي وايې چي مرادله ﴿ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ ﴾ څخه کفاردي هغوی چي له بعث اوقيامت څخه منکردي (٣)﴿ وَقَالَ رَبُّكُمُ ٱدْعُونِىٓ أَسْتَجِبْ لَكُمْ ﴾ او فرمايې رب ستاسي (ای زمابندګانو) تاسي ماوبولئ چي قبلوم تاسي ته (دعاستاسي) ابن کثير وايې الله تعالی بندګانوته دعاکول مستحب ګڼلي اوداجابت يې په پخپل فضل اوکرم سره ضمانت

---

(١) التسهيل ۴/ ۸

(٢) ابن کثير ۳/ ۲۴۹

(٣) کبيرتفسير ۲۷/ ۸۰

بېشکه هغه کسان چې ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ﴾ (۱) کړي دی تکبرکوي زماله عبادت څخه ژردی چې ننوزي به دوزخ ته پداسي حال کي چې خوار اوسپک به وي ، بیاالله تعالی دخپل قدرت اووحدانیت آثاربنیي هغه چې دالله لپاره دشکراوعبادت افراد ورڅخه لازمېږي فرمايي ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَٱلنَّهَارَ مُبْصِرًا ﴾ الله هغه ذات دی چې گرزولي يې ده تاسي ته شپه لپاره ددې چې آرامي وکړی تاسي په هغې کي او(گرزولي يې ده) ورځ ليدلوته (چې پکي درزق او معاش لټون وکړی) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ ﴾ ببشکه الله خامخا څښتن دفضل دی پر انسانانو ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴾ لکن زیاتره دانسانانو شکرنه باسي (پدې نعمتونوباندي، اوانکار،کفران يې کوي) ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ خَٰلِقُ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ دغه (ذات) تاسي ته رب ستاسي دی چې خالق پيداکونکی دهرڅېزدی ﴿ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ نشته هيڅوک لائق د عبادت مگرهم دی يوازي (نه بل څوک) ﴿ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴾ پس کوم طرف ته گرزولي شوي یاست تاسي؟ (له عبادت دخالق مالک څخه عبادت دبتانوته ؟! ﴿ كَذَٰلِكَ يُؤْفَكُ ٱلَّذِينَ كَانُوا بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴾ همداسي گرزولي کېږي (له حقه )هغه کسان چې وو له آيتونودالله به يې انکارکاوو. صاوي وايې چې پدې کي درسول الله ﷺ لپاره تسليت اودادينه ده معناداچې ای محمده دخپل قوم په انکارمه خوابدی کېږه څکه پخواني خلگوهم دغسي له خپله پيغمبره انکارکړی وو(۲)اوبيايې دقدرت ددلائلوزيات بيان هسي فرمايلی چې ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ قَرَارًا ﴾ الله هغه (ذات) دی چې گرزولي يي ده تاسي ته ځمکه ځای دقرار (په ژونداومرگ کي) ابن عباس وايې معناداچې ځمکه ستاسودمرگ اوژوندهستوگنځی دی (۳) ﴿ وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً ﴾ او(گرزولی يې دی تاسي ته ) آسمان چت (دبام په شان چې لکه قبه غوندي يې ستاسي په سردرولی دی ﴿ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ﴾ او صورتونه يې درکړي تاسي ته پس ډېرښايسته يې جوړکړه صورتونه ستاسي (په ښايسته انځور،تشکيل اومتناسب اندامونه، داسي يې جوړنکړی لکه څلوربول څاروی چې سر يې کوز او روان وي. زمخشري وايې چې الله تعالی هيڅ سالرونکی حيوان ترانسان په ښه شکل ندی پيداکړی (۴) اودغه لکه دالله هغه ويناغوندي ده چې فرمايي ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِيٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾ (التين۴) ﴿ وَرَزَقَكُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ ﴾ اوروزي

---

(۱) زياتره مفسرينوکراموويلي چې مرادله دعاڅخه عبادت دی قرطبي وايې معناداچې زماوحدانيت ومنئ اوزماعبادت وکړئ ستاسي عبادت به قبول کړم اودرته به مغفرت وکړم......هغه چې موږ وليکل هغه دابن کثيرغوره اوشهاب هم دغسي ويلي اوامام رازي هم ترجيح ورکړي ده.

(۲) حاشية الصاوي ۴-۱۳

(۳) کبيرتفسير ۲۸/ ۸۴

(۴) کشاف ۴_۱۳۷

يې درکړي ده تاسي ته له پاکيزه وو (طيباتو خوندورو شيانو) ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ ﴾ دغه ذات (خالق،مصور ، رازق چي کونکی ددې کارونو اومنعم ددې نعمتونودی) الله دی رب پالونکی ستاسي (چي له هغه پرته بل اله نشته ﴿ فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ پس ډېربرکتي (ډېرپورته دی شان) دالله چي رب پالونکی دټولو عالميانو دی (عبوديت پرته له ده له بل چاسره نه ښايي ) ﴿ هُوَ ٱلْحَىُّ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ هم دی ژوندی دی تل په يو حال باقي قائم کامل تدبيروالا, نشته بل هيڅوک لائق دعبادت مګرهم دی يوازي ﴿ فَٱدْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ پس وبولئ هم دی پدې حال چي خالص کونکي ياست تاسي خاص دغه (الله) لره (دين )له شرکه په ظاهر اوباطن کي پداسي حال کي چي واياست ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ ټوله ثناده خاص الله لره چي پالونکی دټولو عالميانو ده ,نه دبتانولپاره هغوی چي -هيڅ واک اوځواک نلري کله چي الله دخپل جلال اوعظمت صفات بيان کړل وروسته يې دغيرالله له عبادت څخه داسي منع وفرمايله چي ﴿ قُلْ إِنِّى نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته !) بېشکه چي زه منع کړی شوی يم له دې نه چي عبادت وکړم دهغو(بتانو) چي بولی يې تاسي غيرله الله . صاوي وايي الله تعالی خپل نبي ته امروکړچي خپل قوم ته هغوی چي سره له څرګندوعقلي اونقلي دلائلوبياهم دغيرالله عبادت کوي دزجرپه توګه داسي اعلان وکړه ([1]) ﴿ لَمَّا جَآءَنِىَ ٱلْبَيِّنَٰتُ مِن رَّبِّى ﴾ کله چي راغلل ماته ښکاره دليلونه (دتوحيد ) له جانبه د ) رب پالونکي زما. امام رازي وايي چي مراد له ښکاره دليلونو څخه دادی چي دالله دعظمت اوجلال صفتونه ثابت اوصريح عقل په دې شاهدي ورکوي-چي عبادت له دغه الله پرته له بل چاسره نه ښائېږي اوداچي څوک اوثان ،ډبري اوانځورکړي لرګي له الله سره په عبادت کي شريک ګڼي(دغه په ښکاره پوچ اوبې معناعمل دی چي عقل يې نه مني ([2]) ﴿ وَأُمِرْتُ أَنْ أُسْلِمَ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ اوحکم کړی شوی دی پرماچي غاړه کېږدم (تابع شم) رب پالونکي دتماموعالميانوته (خالص کونکی ددين ده لره اوځان پاکيزه کړم له عبادت کولودنوروڅخه).

الله تعالی فرمايي:

﴿ هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوٓا۟ أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا۟ شُيُوخًا ۚ وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ مِن قَبْلُ ۖ وَلِتَبْلُغُوٓا۟ أَجَلًا مُّسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾ هُوَ ٱلَّذِى يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ۖ فَإِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴿٦٨﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴿٦٩﴾ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِٱلْكِتَٰبِ وَبِمَآ أَرْسَلْنَا بِهِۦ رُسُلَنَا ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٧٠﴾ إِذِ ٱلْأَغْلَٰلُ فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ وَٱلسَّلَٰسِلُ

---

([1]) صاوي علی الجلالين ۴ /۱۳

([2]) کبيرتفسير ۲۷ /۸۵

يُسْحَبُونَ ﴿٧١﴾ فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ ﴿٧٢﴾ ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿٧٣﴾ مِن دُونِ اللَّهِ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُوا مِن قَبْلُ شَيْئًا كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ الْكَافِرِينَ ﴿٧٤﴾ ذَٰلِكُم بِمَا كُنتُمْ تَفْرَحُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَمْرَحُونَ ﴿٧٥﴾ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٧٦﴾ فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿٧٧﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُونَ ﴿٧٨﴾ اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَنْعَامَ لِتَرْكَبُوا مِنْهَا وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٧٩﴾ وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ وَلِتَبْلُغُوا عَلَيْهَا حَاجَةً فِي صُدُورِكُمْ وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴿٨٠﴾ وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ فَأَيَّ آيَاتِ اللَّهِ تُنكِرُونَ ﴿٨١﴾ أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَانُوا أَكْثَرَ مِنْهُمْ وَأَشَدَّ قُوَّةً وَآثَارًا فِي الْأَرْضِ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨٢﴾ فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَرِحُوا بِمَا عِندَهُم مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٨٣﴾ فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ ﴿٨٤﴾ فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا سُنَّتَ اللَّهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ فِي عِبَادِهِ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُونَ ﴿٨٥﴾ ﴾ غافر: ٦٧ ـ ٨٥

مناسبت : لاتراوسه پوري آيتونه دالله دقدرت اووحدانيت دلائل بيانوي كله چي يې په افاقوكي دقدرت دلائل وښودل ورپسې يې دأنفسي دلائلوبيان راووړ اوبيادقيامت په ورځ دمشركانوله احواله غږېږي اودسورت پاى دكفارواوګمراهانوپه تهديداووعيدسره بشپړېږي.

لغتونه: (الأغلال) دغل جمع اوهغه قيدته ويل كېږي چي لاسونه له غاړي سره ورباندي تړي اواتكړې يې بولي (الحميم) ايشېدلي اوبه چي نهايت تودوخي ته رسېدلي وي (يسجرون) ورباندي اوربلولى شي (تمرحون) په نازاومكيز(تكبر) تلونكي ياست (مثوى) داوسېدلوځاى (خلت) تېرشوي دي.

تفسير: ﴿ هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ﴾ الله هغه (ذات) دى چي (اول) يې پيداكړى دى (نيكه) ستاسي له خاوروبيابې (پيداكړه اولاده دده) له نطفې (مني څڅه) بياله كلكي توتې دوينو(ترپايه پوري چي نورحالت ورباندي راځي) ﴿ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ﴾ بياراوباسي تاسي (له ارحامودميندو) واړه اطفال ﴿ ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ﴾ بيا(تربيت كوي ستاسي) لپاره ددې چي ورسېږۍ منتهادقوت خپل ته (په عقل اوكمال كي چي دځلوبښت كالوعمردى) ﴿ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا ﴾ بيا(ژوندي ساتي تاسي ) لپاره ددې چي زاړه شى(بې قوته امام رازي وايي الله تعالى د انسان عمرپه درې مرتبووېشل چي يوه يې طفوليت بل منتهادقوت اوبل بيابوډاوالى اوزښت دى اودغه دعقل مطابق دى ځكه انسان دعمرپه پيل كي د ودې اونشو نماپه دوركي وي او ورته طفوليت وايي

ترخوچي بشپړخواک اوعقل ته ورسېږي اوضعف اوناتواني ونلري بیاوروسته بوډاتوب پیل کېږي اودغه دشیخوخت مرتبه ده (۱) ﴿ وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ مِن قَبْلُ ﴾ اوځیني له تاسي هغه دي چي مړه کولی شي مخکي ترشیخوخته (دغه دمجاهد وېناده) اوځوک یې بیاداسي تفسیرکوي چي: ځیني له تاسي هغه دي چي مړه کېږي ترپخوا (له زېږېدلو یې یعني نقصانېږي (سقط وي) ﴿ وَلِتَبْلُغُوٓا۟ أَجَلًا مُّسَمًّى ﴾ او(ساتي مو) لپاره ددې چي ورسېږئ تاسي ترهغې نېټې په نامه کړی شوي پوري (چي دمرګ وخت دی) ﴿ وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ اولپاره ددې چي تاسي عقل وچلوئ (په دلائلودوحدانیت اوقدرت د الله اوبعث بعدالموت کي) ﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ﴾ الله هم (هغه) ذات دی چي ژوندي کول اومړه کول کوي ﴿ فَإِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴾ پس هرکله چي اراده حکم وکړي دیوکارپس بېشکه همداخبره ده چي وایي ورته (موجود ) شه نوهغه (موجود ) شي (بې له مهلته ، بې له ستړیا او کړاوه) ابوالسعودوایي دغه دالله دبشپړخواک تمثیل دی اوهمدادچټک پیدا ینبت لپاره انځور او تصویردی پرته له دې چي هلته آمر اومأمورشتون ولري ترسره کېږي..(۲) وروسته بیاالله دآیتونو په باب د شخړه کونکوذم ته راګرزي فرمايي ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴾ آیانه وینې ته (تعجب نه کوې) هغه کسان چي مجادله کوي په آیتونود الله (کي چي ثرګند دي) چي کوم لوري ته دوی ګرزولی شي ؟(له هدایت څخه ګمراهي اوضلالت ته بیایې بیان پدې وینافرمايي چي ﴿ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِٱلْكِتَٰبِ وَبِمَآ أَرْسَلْنَا بِهِۦ رُسُلَنَا ﴾ هغه کسان چي تکذیب یې کړی دی په (قرآن) کتاب او په هغو(آسماني کتابونواوشریعتونو) چي رالېږلي مودي په هغوسره رسولان(پخوا) ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ پس ژر دی چي دوی به پوه شي (په عاقبت دتکذیب خپل دغه وعیداوتهدیددی) ﴿ إِذِ ٱلْأَغْلَٰلُ فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ وَٱلسَّلَٰسِلُ ﴾ کله چي وي به داورغاره کي په غاړودوی کي اوځنځیرونه ﴿ يُسْحَبُونَ فِى ٱلْحَمِيمِ ثُمَّ فِى ٱلنَّارِ يُسْجَرُونَ ﴾ چي راښکل کېږي به دوی په ایشېدونکو اوبوکي بیا به په اور(ددوزخ) کي دوی وربهولی سوځولی شي ابن کثیروايي معناداچي طوقونه به په دغو ځنځیرانوپسي ترلي اوځنځیرونه به ددوزخ دمتصرفینوپرښتوپه لاس کي وي کله به یې په خوراګرمو ایشېدلواوبوکي راکاږي اوکله به یې دوزخ ته کشوي لکه چي الله فرمايي ﴿ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ ءَانٍ ﴾ (الرحمن:۴۴)(۳) ﴿ ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تُشْرِكُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ بیابه دوی ته وویل شي چي چېرته دي هغه (بتان) چي وی تاسي چي شریکول به مو(له الله سره په عبادت کي) بغیرله الله؟(دغه به دتبکیت په ډول ورته وویل کېږي نو ﴿ قَالُوا۟ ضَلُّوا۟

(۱) کبیرتفسیر۲۷ /۸۵
(۲) ابو السعود ۵-۱۴
(۳) مختصرابن کثیر۳/ ۲۵۱

عَنَّا ﴾ وبه وايي (كفار) چي له موږ څخه ورك شول (هغه زموږ معبودان چي نه يې وينو اونه يې شفاعت غوښتلى شو ﴿ بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُوا۟ مِن قَبْلُ شَيْـًٔا ﴾ بلكه گويانه وو موږ چي بلل به مو (په عبادت سره دغه بتان) پخواله دې نه هيڅ شى. مفسرين كرام وايي چي دوى به يو مخ ايزه دبتانو له عبادت څخه منكرشي اودغه به ددوى دحيرت او اضطراب له سببه وي ﴿ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ همداسي (لكه اضلال ددې مكذبينو) گمراه كوي الله كافران ﴿ ذَٰلِكُم بِمَا كُنتُمْ تَفْرَحُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ دغه (عذاب) تاسي ته په سبب دهغه دى چي وى تاسي چي خوشحالي به موكوله په ځمكه كي په ناحقه سره (په گناهونو بروالي دمال دولت او په حراموكي په لگولو باندي) ﴿ وَبِمَا كُنتُمْ تَمْرَحُونَ ﴾ او په سبب دهغه چي لويې به موكوله په ناحقه سره. صاوي وايي كه څه هم دغه دكفارو په هكله ده مگرهرڅوك چي داسي كوي له دغه وعيدڅخه ورته ونده شته) ﴿ ٱدْخُلُوٓا۟ أَبْوَٰبَ جَهَنَّمَ خَـٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ ننوزئ تاسي په (اوو) دروازو ددوزخ كي په داسي حال كي چي همېشه پاتي كېدونكي ياست په دغه (دوزخ) كي ﴿ فَبِئْسَ مَثْوَى ٱلْمُتَكَبِّرِينَ ﴾ پس ناكاره ځاى دمتكبرانو دى (دا دوزخ) هغوى چي دالله له آيتونو او دايمان او توحيدله دلائلو اعراض كونكي وي) او داچي ويې ويل: ﴿ مَثْوَى ٱلْمُتَكَبِّرِينَ ﴾ او هسي يې نه ويل چي (مدخل المتكبرين) سره له دې چي دنظم غوښتنه وروستى كلمه وه ددې لپاره چي مدخل تلپاتي او همېشه نه وي اومثوى د دوام لپاره وي څكه يې دذم لپاره ځانگړي كره ﴿ فَٱصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ ﴾ پس صبرو كړه (اى محمده ! په ضررد كفارو چي ستا تكذيب كوي) بېشكه چي وعده دالله (په تعذيب او اهلاك ددوى) حقه ده. صاوي وايي چي دغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره تسليت او ډاډدى چي الله به يې په دښمنانو بريالى كوي[1]) ﴿ فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ ٱلَّذِى نَعِدُهُمْ ﴾ پس كه وښيو تاته موږ ځيني دهغه عذاب چي موږ يې وعده كوو له هغوى سره ، دشرط ځواب محذوف دى او تقديريې داچي: (نو ډېر ښه دى) يادا چي ﴿ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴾ يا قبض كړو موږ تا پس (په هرحال (نو ستا به ستر گي ورباندي يخي شي) كي) خاص موږ ته بيا بيرته راوستل شي دوى (د قيامت په ورځ او موږ به ورڅخه سخت انتقام واخلو بيا الله جل جلاله رسول الله ته د نورو انبيا وو كيسي وربه يادوي څو چي زړه يې تسلاشي نو فرمايي: ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ ﴾ او خامخا په تحقيق لېږلي وو موږ رسولان پخواله تا څخه (ډېرچي معجزاتي مو وركړي وې خو قومونو يې تكذيب وكړنو په هغوى پسي اقتداء وكړه ترڅو چي دصبرجزاء ومومي. قرطبي وايي الله تعالى ده ته دپخوانيو انبيا وو سرگذشت ددې لپاره واوراوو چي دده لپاره تعزيه شي ﴿ مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ ﴾ چي ځيني له (يولک څليرويشت زره كم

---

(۱) حاشية الصاوى ٤-١٤-١٥

اوزیاتوانبیاوو ) هغه (نه ویشت ) انبیاء دي چي دهغوی کیسې او دحالاتو بیان (له خپلو قومونو سره ) موږ تاته کړی اوځیني له دغو انبیاوو هغه دي چي موږ یې تاته کیسې ندي کړي ﴿ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِـَٔايَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ ﴾ اونه وو هیڅ رسول ته (ښائېدونکي اونه یې په قدرت کي وو ) داچي راوړي کوم یو دلیل (معجزه ) مګر په اذن حکم دالله سره ، دغه په قریشو باندي ردد ی چي دوی به رسول الله ﷺ ته ویل چي دصفاغر راته دسروزرو کړه اویا به یې نورو راندیزونه کول ﴿ فَإِذَا جَآءَ أَمْرُ ٱللَّهِ قُضِيَ بِٱلْحَقِّ ﴾ پس هرکله چي راغی امر حکم دالله حکم فیصله به وکړه شي په حقه سره (په عذاب ددوی ) ﴿ وَخَسِرَ هُنَالِكَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴾ او زیان به وکړي هلته باطلونکی (دحق )دروغجنان دالله په آیتونو کي مجادله کونکي معاندین او د سرغړوني په توګه وراندیزکونکي خلګ بیاالله خپل نعمتونه هسي شمېري فرمایي ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَنْعَـٰمَ ﴾ الله هغه ذات دی چي پیدا کړي یې دي تاسي ته چارپایان (لکه اوښان ، غوایان اوپسونه ستاسي دخیراو مصلحت لپاره یې درته تابع کړي دي ﴿ لِتَرْكَبُوا۟ مِنْهَا وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴾ دپاره د دې چي سپرېږي په ځینو ددوی اوله ځینو دوی څخه تاسي خوري (غوښي اوشېدې ددوی) ﴿ وَلَكُمْ فِيهَا مَنَـٰفِعُ ﴾ اودی تاسي ته په دغو چارپایانو کي ګټي (ډېري لکه وړۍ ، وزغني ،شیدې ، مسکه ، اوغوړي) ﴿ وَلِتَبْلُغُوا۟ عَلَيْهَا حَاجَةً فِى صُدُورِكُمْ ﴾ اولپاره ددې چي ورسېږی تاسي په دوی سره هغه حاجت ته چي په سینو (زړنو ) ستاسي کي وي (له لیرې مسافرتونو اودرنو بارونو څخه ﴿ وَعَلَيْهَا وَعَلَى ٱلْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴾ اوپه دغو اوښانو (په برکي )اوپه بېړۍ (په بحرکي ) سپرول کېږی تاسي ، دلته چي یې داوښ اوبېړۍ یوځای راوړل وفرمایل څکه چي داوښ اوبېړۍ ترمینځ ډېرکلک مناسبت شته آن تردې چي عرب خلګ اوښ ته (سفينة البر یاسفينة الصحراء ) وایې ﴿ وَيُرِيكُمْ ءَايَـٰتِهِۦ ﴾ اوښیي تاسي ته دلائل (دقدرت وحدانیت ) خپل په آفاقو اوانفسوکي) ﴿ فَأَىَّ ءَايَـٰتِ ٱللَّهِ تُنكِرُونَ ﴾ پس له کوم یوه له دلائلو (دقدرت دالله څخه تاسي انکارکوی )؟داخودانکار وړنه دي ﴿ أَفَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَـٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ ﴾ آیاپس نه دي ګرزېدلي دوی په ځمکه (ملکونو ) کي پس چي وګوري دوی چي څرنګه شوآخره خاتمه دهغو کسانوچي پخواله دوی نه (تېرشوي ) وو(چي څرنګه دخپل کفراوتکذیب په سبب هلاک شول؟ دغه استفهام انکاري دی ﴿ كَانُوٓا۟ أَكْثَرَ مِنْهُمْ وَأَشَدَّ قُوَّةً وَءَاثَارًا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ چي ووهغوی ډېرزیات له دغو (کفارو ) څخه اوډېرسخت وو(په بدني )قوت) او (مدني) آثارو په ځمکه کي چي لاتراوسه یې دغتو اودنګو اوچتو مانیو آثاراو نښني په ځمکه کي پاتي دي ﴿ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴾ پس هیڅ دفع ونکړه له دوی نه هغه څه چي هغوی وو کسب به یې

کاوو (پیدا کول یې له مالونو هستوګنځیو اونورو څخه له دوی څخه یې عذاب دفع نکړاو په کار ورنغلل ﴿ فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ پس هرکله چي رابه غلل دوی ته رسولان ددوی په ښکاره دلائلو (څرګند ومعجزو) ﴿ فَرِحُوا۟ بِمَا عِندَهُم مِّنَ ٱلْعِلْمِ ﴾ نوخوشحاله به شول (دغه کفار استهزاءً) په هغه چي له دوی څخه به وو له علمه (ددنیاچي دوحی اوهدایت له رڼاڅخه به بې برخي وو دوی به په دغه پوهنه خوښ اومغروره شول ﴿ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ (اوچاپېر شو پر دوی هغه عذاب چي په هغه پوري به يې مسخرې کولې) يعني چاپېرشوپردوی عذاب په سبب دکفر اواستهزآء ددوی چي په انبياووبه يې مسخرې کولې ﴿ فَلَمَّا رَأَوْا۟ بَأْسَنَا قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥ ﴾ پس هرکله چي دوی به وليد (په دنياکي) ستر عذاب زموږ نووبه يې ويل ايمان موراوړی دی په الله يوازي اواحدالاحدباندي ﴿ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِۦ مُشْرِكِينَ ﴾ اوكافران شوموږ پرهغو څېزونو چي وموږ په سبب دهغه څيز مشرکان(له الله سره په عبادت کي چي بتان وو) ﴿ فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَٰنُهُمْ لَمَّا رَأَوْا۟ بَأْسَنَا ﴾ (پس نه وو (دا کار) چي نفع ورسوي دوی ته ايمان ددوی هرکله چي دوی به وليد سخت عذاب زموږ) يعني د عذاب دليدلو په وخت کي ددوی ايمان راوړل ورته ګټه نه رسوله ځکه دغه اضطراري ايمان وو ﴿ سُنَّتَ ٱللَّهِ ٱلَّتِى قَدْ خَلَتْ فِى عِبَادِهِۦ ﴾ (طريقه اينبي ده الله) هغه دالله طريقه چي په تحقيق تېره شوي ده په بندګانو ددغه (الله پخواچي دعذاب دليدلو په وخت کي بياايمان راوړل ګټه نه لري) ﴿ وَخَسِرَ هُنَالِكَ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴾ او زيانکاره شول په دغه ځای کي کافران (هغوی چي دالله توحيد يې نه مانو).

بلاغت: پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لندون يې دادی:

۱ - دطباق صنعت چي د ﴿ ٱلذَّنۢبِ... ٱلتَّوْبِ ﴾ ترمينځ اود ﴿ أَمَتَّنَا ... وَأَحْيَيْتَنَا ﴾ ترمينځ اود ﴿ كَٰذِبًا ...صَٰدِقًا ﴾ ترمينځ او ﴿ غُدُوًّا ...وَعَشِيًّا ﴾ ترمينځ اود ﴿ يُحْىِۦ.... وَيُمِيتُ ﴾ ترمينځ اود ﴿ ٱلْأَعْمَىٰ... وَٱلْبَصِيرُ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۲ - مقابله چي فرمايې: ﴿ ذَٰلِكُم بِأَنَّهُۥٓ إِذَا دُعِىَ ٱللَّهُ وَحْدَهُۥ كَفَرْتُمْ ۖ وَإِن يُشْرَكْ بِهِۦ تُؤْمِنُوا۟ ﴾ دلته يې دتوحيداواشراک ترمينځ اودكفراوايمان ترمينځ مقابله راوړي اوهمدارازپه دې آيت کي چي ﴿ يَٰقَوْمِ إِنَّمَا هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا مَتَٰعٌ وَإِنَّ ٱلْءَاخِرَةَ هِىَ دَارُ ٱلْقَرَارِ ﴾ اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

۳ - مرسل مجازکله چي فرمايې: ﴿ وَيُنَزِّلُ لَكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ رِزْقًا ﴾ دلته يې رزق راوړی او مقصد يې باران دی ځکه چي باران دګردو ارزاقواوروزي سبب دی نومسبب يې يادکړی مرادځني سبب دی.

۴ – لطيفه استعاره چې راوړي ﴿ وَمَا يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ ﴾ روندې د کافرلپاره او بيناېي دمؤمن لپاره استعاره کړې دی.

۵ – عقلي مجازلکه ﴿ وَٱلنَّهَارَ مُبْصِرًا ﴾ دلته نسبت ديوڅېزشوی دهغه وخت ته څکه چې ورځ دليدلولپاره زمانه اووخت دي.

۶ – کنايه چې فرمايې: ﴿ يُلْقِى ٱلرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِۦ ﴾ دغه روح له وحی څخه کنايه ده څکه وحی داسي ده لکه چې دبدن لپاره روح وي

۷ – دمبالغې صيغې لکه: ﴿ كَذَّابٌ ، جَبَّارٍ ، ٱلسَّمِيعُ ، ٱلْبَصِيرُ ، ٱلْعَلِيمِ ﴾ اونور.

۸ – ناقص جناس چې پدې کلماتوکي شته لکه ﴿ تَفْرَحُونَ ... تَمْرَحُونَ ﴾ او ﴿ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ﴾.

۹ – تاکيد په إنّ اولام سره لکه ﴿ إِنَّ ٱلسَّاعَةَ لَآتِيَةٌ ﴾ چې راغلي ده.

۱۰ – دحصرصيغه لکه: ﴿ مَا يُجَٰدِلُ فِىٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾.

۱۱ – اشتقاقي جناس لکه چې فرمايې: ﴿ أَرْسَلْنَا ... رُسُلَنَا ﴾.

۱۲ – دسلبي طباق صنعت چې پدې آيت کي دی ﴿ مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ ﴾.

۱۳ – دآيتونودپيل توافق سره له خوندوري سجعي چې په زړه راښکونکي بڼه دفرعون دتبرد مؤمن شخصيت بيان الهي معجزکلام هسي رااخلي اوفرمايې چې: ﴿ وَيَٰقَوْمِ مَا لِىٓ أَدْعُوكُمْ إِلَى ٱلنَّجَوٰةِ وَتَدْعُونَنِىٓ إِلَى ٱلنَّارِ تَدْعُونَنِى لِأَكْفُرَ بِٱللَّهِ وَأُشْرِكَ بِهِۦ مَا لَيْسَ لِى بِهِۦ عِلْمٌ وَأَنَا۠ أَدْعُوكُمْ إِلَى ٱلْعَزِيزِ ٱلْغَفَّٰرِ ﴾ چې ترملغلرين هارلازيات ځلاندی.

دالله جل جلاله په مرسته دغافرسورت تفسيربشپړشو

دفصلت سورت مکي څلورپنځوس آيتونه لري اوله غافرسورت څخه وروسته نازل شوي دی.

دسورت په وړاندي:

دغه مبارک سورت مکي دی اوداسلامي عقيدې جوانب څېړي هغه چي وحدانيت، رسالت، بعث اوجزاء دي دغه ګواکي دګردومکي سورتونوبنسټيزاواساسي اهداف دي چي دايمان دارکانواهتمام پکښي دی په پيل کي سورت له قرآنکريم څخه غږېږي کوم چي درحمن ذات له لوري له ځرګندودلائلوسره رانازل شوي دي هغه دلائل چي درسول الله محمدصلی الله عليه وسلم په رښتنولي دلالت کوي اودغه مبارک کتاب دهغه تلپاتي معجزه ده.

سورت له وحی اورسالته څخه بيان کوي اود پيغمبرحقيقت په ګوته کوي چي هغه بشراوالله جل جلاله په رسالت اوپيغمبري ځانګړی کړی اوپه نبوت يې نازولی دی ترڅوهغه دالله لوري ته بلونکی اودهغه سم اومستقيم دين ته لارښوونکی وي.

ورپسې سورت دژوندانه دپيدايښت لومړنۍ مرحله رااخلي چي الله آسمانونه اوځمکه پداسي دقيق اومحکم شکل پيداکړي کوم چي دالله دنښانودمنکرانوپام دسوچ اوفکرلپاره ځان ته راواړوي خودکفرتيارې هغه څه دي چي ددوی اوايمان راوړلوترمينځ حائل ګرزي هوکائنات ټول دالله په عظمت ګواه اودالله دوحدانيت جل وعلی وياندوی دي.

بياسورت دمکذبينوهلاکتونه رااخلي اوپدې هکله دخورازورورو خلګومثالونه راوړي هغه دعاديانوقوم چي په جبروت کي داسي مرحلې ته رسېدلي ووچي ويل به يې ﴿مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً﴾؟او بيادهغه څه بيان فرمايې کوم چي پردوی رانازل شول اودثموديانوحال تردوی لابترووودوی په طغيان اوسرغړونه کي وروستۍ مرحلې ته رسېدلي اودخپلو پيغمبرانوتکذيب يې کړی وو.

له کفاروروسته بيادمتقينومؤمنانوبيان راځي کوم چي دالله په دين اوشريعت مستقيم وونو دوی ته الله پاک په جنت کي امن اوامان وروبښل اوله نبيانو، صديقينو، شهيدانواوصالحانوسره يې ملګري کړل.

له دې وروسته الله ﷻ په کائناتوکي دعجيبه له حکمته ډکو نظارويادونه فرمايې اوددوی په وړاندي دکفارومنکرينودريز ځرګندوي هغوی چي له دې ګردوځرګندواوښکاره نښونښانوڅخه سترګي پټوي اوايمان نه راوړي.

په پای کي سورت دالله ﷻ هغه وعده له بشريت سره بيانوي کومه چي په آخرالزمان کي به ددې کائناتوځيني رازونه ورښکاره کوي ترڅودوی ته دقرآنکريم دوړاندويني په رښتنولي اوتصديق دليل شي: ﴿سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِى ٱلْـَٔافَاقِ وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ ۗ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ﴾.

## تسمیه اونومول یې:

دغه سورت ته څکه دفصلت سورت وايي چي الله پکي د نښانونوتفصیل فرمایلی اوپخپل قدرت اووحدانیت یې پکي دلائل راوړي اوپه وجوداوعظمت یې کوتلي براهین ویلي چي دغه پراخ کائنات دالله په جلال اوعظیم سلطان باندي له وړایه ګویادي

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ حمٓ ﴿١﴾ تَنزِيلٌ مِّنَ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٢﴾ كِتَٰبٌ فُصِّلَتْ ءَايَٰتُهُۥ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٣﴾ بَشِيرًا وَنَذِيرًا فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿٤﴾ وَقَالُوا۟ قُلُوبُنَا فِىٓ أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُونَآ إِلَيْهِ وَفِىٓ ءَاذَانِنَا وَقْرٌ وَمِنۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ فَٱعْمَلْ إِنَّنَا عَٰمِلُونَ ﴿٥﴾ قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰٓ إِلَىَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ فَٱسْتَقِيمُوٓا۟ إِلَيْهِ وَٱسْتَغْفِرُوهُ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِينَ ﴿٦﴾ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ كَٰفِرُونَ ﴿٧﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٨﴾ ۞ قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِٱلَّذِى خَلَقَ ٱلْأَرْضَ فِى يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُونَ لَهُۥٓ أَندَادًا ذَٰلِكَ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٩﴾ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَٰسِىَ مِن فَوْقِهَا وَبَٰرَكَ فِيهَا وَقَدَّرَ فِيهَآ أَقْوَٰتَهَا فِىٓ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَآءً لِّلسَّآئِلِينَ ﴿١٠﴾ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰٓ إِلَى ٱلسَّمَآءِ وَهِىَ دُخَانٌ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ٱئْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا قَالَتَآ أَتَيْنَا طَآئِعِينَ ﴿١١﴾ فَقَضَىٰهُنَّ سَبْعَ سَمَٰوَاتٍ فِى يَوْمَيْنِ وَأَوْحَىٰ فِى كُلِّ سَمَآءٍ أَمْرَهَا وَزَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنْيَا بِمَصَٰبِيحَ وَحِفْظًا ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴿١٢﴾ فَإِنْ أَعْرَضُوا۟ فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَٰعِقَةً مِّثْلَ صَٰعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ ﴿١٣﴾ إِذْ جَآءَتْهُمُ ٱلرُّسُلُ مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ قَالُوا۟ لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةً فَإِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿١٤﴾ فَأَمَّا عَادٌ فَٱسْتَكْبَرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ وَقَالُوا۟ مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِى خَلَقَهُمْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَكَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا يَجْحَدُونَ ﴿١٥﴾ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا فِىٓ أَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيقَهُمْ عَذَابَ ٱلْخِزْىِ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ أَخْزَىٰ وَهُمْ لَا يُنصَرُونَ ﴿١٦﴾ وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَٰهُمْ فَٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْعَمَىٰ عَلَى ٱلْهُدَىٰ فَأَخَذَتْهُمْ صَٰعِقَةُ ٱلْعَذَابِ ٱلْهُونِ بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿١٧﴾ وَنَجَّيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴿١٨﴾ ﴾ فصلت: ۱ - ۱۸

## لغتونه:

(فصلت) څرګند شوي (أكنة) د(كنان)جمع اوپردې ته وايي (وقر) دروندوالی هغه چي غوږنه اوري (ممنون) پرې کړی شوی (صرصر) طوفاني سیلۍ اوسخت سوړبادچي سخته غړاوشنهار ورسره وی(نحسات) بدمرغه له نحس څخه اخیستل شوي هغه دنېکمرغي ضد،شوم ،شامت ته وايي (أخزى) دېرشرمېدلی اورسواچي دسپکاوي په معنادی (الهون) ذلت، سپکتیا اواهانت ته وايي.

تفسیر:

﴿ حٰمٓ ﴾ له مقطعاتو تورو څخه دی کوم چي دقرآنکريم په اعجازباندي تنبيه ورکوي ﴿ تَنزِيلٌ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴾ (دغه قرآن) رالیږل شوی دی له هغه (الله) چي خورامهربان دېر رحم والادی، دغه دوه نومونه يې ښکه خانګړي کړل چي دقرآنکريم نزول له خوراسترونعمتونو څخه يونعمت دی هو دغه داسي نعمت دی چي ترقيامته پوري به پاتي اوباقي وي ﴿ كِتَٰبٌ فُصِّلَتْ ءَايَٰتُهُۥ ﴾ داسي کتاب دی چي په تفصيل سره بيان شوي دي آيتونه دده جامع دی لپاره دمصلحتونودداړينو، قصص ، مواعظ ،احکام اوامثال پکي په نهايت ښايسته ډول بيان شوي دي ﴿ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ پدې حال چي لوستلی شوی دی په عربي ژبه دهغه قوم لپاره چي پرې پوهېږي (په تفصيل دآيتونو اودلائلو داعجازدهغه ښکه چي دغه په خورالوړه پوړۍ داعجازاوبلاغت کي دی اوله هغه چاپرته چي په عربي کي بشپړمهارت ولري بل څوک يې اسرار اورازونه نشي څکلای اوراسپړلای ﴿ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ﴾ زېری ورکونکی دی (داکتاب مؤمنانوته په جنت ) اووېرونکی دی (داکتاب کفارولره له دوزخ څخه ﴿ فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴾ پس مخ وګرزاووزياتره (ددغوکفارو ) پس دوی نه اوري(حق په اورېدلو دقبول سره سره له دې چي ددوی په لغت اوژبه نازل شوی دی ابوحيان وايې معناداچي اکثره ددوی ورڅخه مخ اړولی سره له دې چي دوی اهل علم هم دي ليکن په بشپړه توګه پکي سوچ اوتدبرنه کوي اوددغه اعراض له امله دی چي دوی يې براهين اودلائل نه اوري ([1]) قرطبي وايې چي سورت دقريشودتوبيخ اوټکولولپاره نازل شوی دی چي هغوی دقرآنکريم په اعجازپوهېدل هم خودقبول سماع (اورېدنه) يې چي ورته ګټه ورسوي نه کوله ([2]) ﴿ وَقَالُوا۟ قُلُوبُنَا فِىٓ أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُونَآ إِلَيْهِ ﴾ او وايې دغه (کفاررسول الله ته) زموږ زړونه له هغه څه څخه چي ته مو ورته بولې (لکه توحيد، ايمان) په پردوکي دي ﴿ وَفِىٓ ءَاذَانِنَا وَقْرٌ ﴾ اوپه غوږونوزموږکي درونډوالی دی (چي ستادوينا له پوهېدلومانع ګرزي صاوي وايې چي دوی خپله اورېدنه له هغو غوږونوسره مشابه کړه چي پکي درونډوالی وي ښکه دوی دحق اورېدلو ته ميلان نه لاره ([3]) ﴿ وَمِنۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ ﴾ اوپه مينځ زموږاوپه مينځ ستاکي (دمخالفت )پرده ده (چي ستاهيڅ ويناموږته نه رسېږي نوموږستاله متابعت څخه معذور يو ښکه چي ترمينځ مومانع شته ﴿ فَٱعْمَلْ إِنَّنَا عَٰمِلُونَ ﴾ نوعمل وکړه ته (پردين خپل ) بېشکه موږ هم عمل کونکي يو(پردين خپل ) ﴿ قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰٓ إِلَىَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ﴾ ووايه(ای محمده ادوی ته) بېشکه همدا خبره ده زه يوبشر انسان

---

([1]) البحر المحيط ۴۸۳/۷
([2]) القرطبي ۳۳۸/۱۵
([3]) الصاوي ۱۷/۴

يم ستاسي په شان (ليكن تو پيرمي دادى چي) ماته وحى كېږي (له طرفه دالله) داسي چي بېشكه همدا خبره ده چي ستاسي معبود يو دى (هغه چي عقلي او شرعي دليلونه يې په وحدانيت او وجود باندي شتون لري موجود دي نو بيا زما د تكذيب كولو اړتيا نشته ﴿ فَٱسْتَقِيمُوٓاْ إِلَيْهِ وَٱسْتَغْفِرُوهُ ﴾ پس سم سيخ ورځې ده ته (په توحيد، اخلاص او ايمان) او مغفرت وغواړئ له ده نه (د تېرو ګناهونو) ﴿ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِينَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ او افسوس هلاک دى لپاره د مشركانو هغه چي زكات نه وركوي يا داسي د خير كار نه كوي چي پرې پاكېږي. قرطبي وايې چي دوى يې په بخل باندي وټكول هغه څه چي فاضلان يې نه خوښوي او ترې كركه كوي او په آيت شريف كي ددې دليل شته چي كافر د كفر له عذاب سره سره د زكات په نه وركولو هم معذب كېږي (۱) او ابن عباس وايې مراد له زكات څخه د ځانونو زكات او پاكي ده يعني دوى ځانونه له شرک او كفر څخه په توحيد باندي نه پاكوي او نه هم لااله الاالله وايې (۲) ﴿ وَهُم بِٱلْأَخِرَةِ هُمْ كَٰفِرُونَ ﴾ او دوى پر آخرت (حساب كتاب ثواب عقاب) هم دوى كافران منكران دي. صاوي وايې داچي له زكات وركولو ممانعت يې له كفره سره اندول راوور پدې چي مال دانسان له روح سره تينګې اړيكي لري نو څوک چي يې دالله په لاره كي لګوي پدې دلالت كوي چي نوموړى سړى په دين كي غښتلى او ثابت دى (۳) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴾ بېشكه هغه كسان چي ايمان يې راوړى دى او كړي يې دي ښه (عملونه) شته دوى ته اجر نه قطع كېدونكى (دائمي) څوچي جنت وي، وروسته الله پاک د خپل قدرت او وحدانيت دلائل داسي يادوي چي ﴿ قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِٱلَّذِى خَلَقَ ٱلْأَرْضَ فِى يَوْمَيْنِ ﴾ ووايه (اى محمده! دوى ته) آيا بېشكه تاسي خامخا كافران كېږى په هغه الله چي پيدا كړي يې ده ځمكه په دوو ورځو كي، استفهام د توبيخ او تعجب لپاره دى يعني څرنګه تاسي په هغه قادر عاليشان ذات كافران كېږى؟ چي ځمكه يې په دوې ورځي كي پيدا كړي ﴿ وَتَجْعَلُونَ لَهُۥٓ أَندَادًا ﴾ او ګرزوى له خپله ځانه (دغه الله ته) شريكان (امثال چي د هغوى عبادت كوى) ﴿ ذَٰلِكَ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ دغه ذات (مبدع، خالق) رب د (ګردو) عالميانو دى (نو څرنګه تاسي ورسره ناچيز بتان په الوهيت او معبوديت كي شريكوى؟ صاوي وايې استفهام ﴿ أَئِنَّكُمْ ﴾ لپاره د انكار او تشنيع دى يعني داچي تاسي پدې پوهېږى چي په عالم سفلي او علوي كي د هغه شريک نشته او بيا هم تاسي ورسره شريكان نيسى؟ (۴) ﴿ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَٰسِىَ مِن فَوْقِهَا ﴾ او پيدا كړي دي (الله) په دغه (ځمكه) كي درانه كلک محكم غرونه د پاسه

---

(۱) القرطبي ۱۵/۳۴۰

(۲) دغه وينا ابن كثير راوړي او نسبت يې ابن عباس ته كړى دى چي مراد له پاكي څخه د ځان پاكوالى له شرک څخه دى خو دغه معتبر قول نه دى او صحيح هغه دى چي مفسرينو راوړى او د مال زكات يې ګڼلى دى او ابن جرير غوره كړى دى.

(۳) الصاوي ۴/۱۷

(۴) الصاوي ۴/۱۸

ددې څخه (ترڅو په بشر باندې ونه خوځېږي) ﴿ وَبَٰرَكَ فِيهَا ﴾ او بيايې برکت کېښود په هغې کې چې او به، زراعت او مالداري يې پکې وپنځول ﴿ وَقَدَّرَ فِيهَآ أَقْوَٰتَهَا ﴾ او مقرره (په اندازه) کړې يې ده پدې ځمکه کې روزي د (اهل) ددې. مجاهد وايي معنا دا چې په ځمکه کې يې نهرونه بهولي، ونې يې زرغونې کړې او حيوانات يې پيدا کړي دي ﴿ فِىٓ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَآءً لِّلسَّآئِلِينَ ﴾ (په څلورو ورځو کې برابر دي لپاره د پوښتنې کونکو) يعني په بشپړو څلورو ورځو کې چې نه پکې زيات او نه کمبود وو لپاره د هغه چا چې ځمکې او مافيها پيدا ښت پوښتنه کونکی وي([1]) ﴿ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰٓ إِلَى ٱلسَّمَآءِ وَهِىَ دُخَانٌ ﴾ بيايې اراده وفرمايله (پيدا کولو د) آسمان ته حال دا چې دغه آسمان يو (ولاړ) لوګی وو ابن کثير وايي چې مراد له دُخان څخه داوبو بخار (براس) وو کوم چې د ځمکې د پيدا ښت په وخت پورته ختلی وو([2]) ﴿ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ٱئْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا ﴾ پس وفرمايل الله دغه (آسمان) ته او دغې (ځمکې) ته چې راشئ دواړه پخپلې خوښې سره يا په زور سره ﴿ قَالَتَآ أَتَيْنَا طَآئِعِينَ ﴾ وويل آسمان او ځمکې راغلو مونږ (ستا فرمان ته) په خوښې سره زمخشري وايي چې دغه د تمثيل په توګه دی معنا دا چې کله الله د دوی د تکوين اراده وکړه دوی ممانعت ونکړاو دوی پدې کې لکه منونکی مأمورغوندې وو چې کله د منل شوي آمرغږ او فرمان ورته وشي او مقصد له دې څخه د الله د قدرت داغيزانځورونه او تصويردی چې څرنګه په مقدوراتو کې چلېږي يې له دې نه چې هلته سوال او ځواب وي او دالکه هغه متل داسې دی چې وايي د بوال مېخ (موږي) ته وويل چې ولې مې څيروې؟ هغه ورته وويل له هغه چا څخه وپوښته چې ما ټک وهي([3]) او له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې الله آسمان ته وفرمايل چې لمر، سپوږمۍ او ستوري دې راوخېژوه او ځمکې ته يې وويل چې رودونه، نهرونه، ونې او مېوې دې راوباسه که په خوښه وي که ناخوښه نو دوی ورته وويل په خپله خوښه ستادامراو فرمان پرځای کونکي يو([4]) دغه ابن جرير غوره کړي ده ﴿ فَقَضَىٰهُنَّ سَبْعَ سَمَٰوَاتٍ فِى يَوْمَيْنِ ﴾ پس مقرر جوړ کړل (الله لوګي څخه) اوه آسمانونه په دووه ورځو کې نو د ځمکې او آسمانو نو پيدا ښت په شپږ ورځو کې ترسره شواو که چېرې الله تعالی غوښتلي وای دسترګو په رپ به يې پيدا کړي وو ليکن ددې لپاره داسې وشول چې بندګانو ته حلم او په کراره د کارونو ترسره کول وروښيي ﴿ وَأَوْحَىٰ فِى كُلِّ سَمَآءٍ أَمْرَهَا ﴾ او ويې لېږل (مقرريې کړل) په هر آسمان کې کار (مناسب تدبير) دهغه (آسمان) ابن کثير وايي معنا دا چې مرتب يې کړ په هر آسمان کې هغه چې ورته ارتيا لري له پرښتو او يا نوروشيانو چې له الله پرته يې بل چا ته علم نشته ﴿ وَزَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنْيَا بِمَصَٰبِيحَ وَحِفْظًا ﴾ او ښايسته کړي مودی دغه نژدې آسمان په ډېوو (ستورو) سره (او ساتلی مو دی) په ساتلو سره (له

---

([1]) الکشاف ۴ / ۱۴۷

([2]) مختصر ابن کثير ۳ / ۲۵۷

([3]) الکشاف ۴ـ۱۴۸

([4]) القرطبي ۱۵ / ۳۴۳

شیطانانو هغه چي ملأ الأعلى ته غوږنیسي ) ﴿ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْعَلِيمِ ﴾ دغه (مخلوقات) اندازه کول دي دالله ښه غالب قوي(پخپل سلطنت کي) ښه عالم (په مصلحتونو د خلګو باندي) ﴿ فَإِنْ أَعْرَضُوا۟ فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَٰعِقَةً مِّثْلَ صَٰعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ ﴾ پس که چېري مخ وګرزاوو (دغو کفارو له ایمان څخه وروسته له دغه بیانه) پس ووایه (ای محمده ! دوی ته) چي وېروم زه تاسي له سخت عذابه په مثل د سخت عذاب دعادیانو(چي بادصرصروو) اوثمودیانو(چي جبرائیلي چیغه وه تعبیرېي په ماضي زمانه سره وفرمایو چي تحقق اووصول ته يې اشاره وکړي ﴿ إِذْ جَآءَتْهُمُ ٱلرُّسُلُ مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ ﴾ کله چي راغلل دوی ته رسولان (هوداوصالح علیهماالسلام)له طرفه دوړاندي (ددغوکفارو) اوله طرفه دوروستوددغو (کفاروداود دوی په لاربنوونه کي له هره لوري هڅي او کوښښونه وکړل نو دکفارو له لوري يې پرته له مخ اړولواو تکبرنه بل څه ونه لیدل دوی ته يې وویل ﴿ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ ﴾ مه کوئ عبادت مګر یوازي دالله ﴿ قَالُوا۟ لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةً ﴾ وویل(کفاروپه ځواب درسولانو کي) که اراده فرمایلي وی رب زمو(په لېږلو درسولانو ) نوخامخا لېږلي به يې وې پرښتې (نه بنیادمان) ﴿ فَإِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴾ (پس بېشکه موږ په هغه څېزچي تاسي په هغه سره رالېږلی شوي یاست کافران یو) یعني موږستاسي په رسالت کافران یوستاسي پیروي نه کووتاسي هم لکه موږبشریاست اوداچي ویې ویل﴿ بِمَآ أُرْسِلْتُم ﴾ دغه یوډول ملنډي او تمسخر دی چي په انبیاوو(علیهم السلام) يې کاوو ﴿ فَأَمَّا عَادٌ فَٱسْتَكْبَرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ (پس هرچي عادیان ووپس (کبر) لويې يې غوره کړه په ځمکه کي په ناحقه سره ) دغه دعادیانواو ثمودیانودعذاب تفصیل دی یعني عادیانولويي وکړه سرغړونه عصیان اوبغاوت يې وکړدالله په بندګانو(هود ) اوورسره مؤمنانوباندي يې پرته له استحقاقه استعلاء اولويې کوله ﴿ وَقَالُوا۟ مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ﴾ وویل دوی چي څوک دی زیات سخت له موږڅخه په قوت کي (موږ په پخپل ځواک اوقوت سره عذاب له ځانه دفع کړو ابوالسعودوایي دوی دېرغټ بدنونه لرل دېراوچت قدیې درلود دومره غښتلي ووچي یوسړي به له غره څخه غټه ډېره بېلولای شوای اوپه لاس باندي يې دغره له تل څخه راایستلای شوای(۱) ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِى خَلَقَهُمْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ﴾ آیانه ویني (اونه پوهېدل) دوی چي بېشکه الله هغه (ذات) دی چي پیدا کړي دي دوی هغه ډېرسخت دی له دوی نه په زور قوت کي ، دغه اعتراضیه جمله اوددوی دبدي خبري په وړاندي تعجب دی معناداچي آیادوی دالله له قدرت څخه غافل شول اوپدې نه پوهېدل چي الله جل جلاله هغه ذات دی چي دوی اوکائنات يې پیدا کړي دي هغه چي تردوی په قوت اوقدرت کي لوړاوپورته دی؟ ﴿ وَكَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا يَجْحَدُونَ ﴾ اودوی ووپه دلائلود (قدرت) زموږچي انکاربه يې کولو(سره له علمه په دې باندي چي هغه حق دی ) امام رازي

---

(۱) دابوالسعودتفسیر ۵ /۳۷

وایې چې ببښکه دوی په دې پوهېدل چې هغه حق دی لیکن له دې سره سره ورځخه منکرېدل لکه چې یو خوک دیو چاله امانت څخه چې ورته ایښودل شوی وي منکرشي(۱) ﴿ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا ﴾ پس راومولېږه پردوی باندې بادډېر یخ زورور هیبتناک (چې په یخني اوقوت یې خلګ هلاکول) ﴿ فِيٓ أَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ ﴾ په څو ورځو کې چې ډېرې بدې شومې وې (برکت پکې نه وو) ﴿ لِّنُذِيقَهُمْ عَذَابَ ٱلْخِزْيِ فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ لپاره ددې چې وڅکوو موږپردغو (کفارو) عذاب رسواکونکی په دغه ژوندون ددنیاکې. امام رازي وايې چې د ﴿ عَذَابَ ٱلْخِزْيِ ﴾ معنادسپکاوي اوذلت عذاب دی اوسبب یې داچې دوی له ایمان څخه استکبارکاوو نوالله ددوی دتکبرپه مقابل کې دغه دسپکتیا اواهانت عذاب ور ولیدل (۲) ﴿ وَلَعَذَابُ ٱلْأٓخِرَةِ أَخْزَىٰ ۖ وَهُمْ لَا يُنصَرُونَ ﴾ اوخامخاعذاب دآخرت خوډېر رسواکونکی دی حال داچې له دوی سره به مددونکړی شي (چې عذاب ورځخه دفع کړي) ﴿ وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَٰهُمْ فَٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْعَمَىٰ عَلَى ٱلْهُدَىٰ ﴾ اوهرڅه چې ثمودیان وو پس لارمو وښودله دوی ته (په لېږلو د رسولانو سره) پس غوره کړدوی روندوالی (ضلالت) په هدایت (اورهنمایې) یعني هغوی ته موسمه لاره دسعادت وښودله خودوی ګمراهي په هدایت غوره کړه اوکفرته یې په ایمان ترجیح ورکړه ﴿ فَأَخَذَتْهُمْ صَٰعِقَةُ ٱلْعَذَابِ ٱلْهُونِ ﴾ پس ونیول دوی لره سختي چیغي (دجبریل او) عذاب سپک کونکي ﴿ بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴾ په سبب دهغه (شرک اوعصیان) چې وو دوی چې کول به یې (طغیان اودحضرت صالح علیه السلام تکذیب. ابن کثیر وایې چې الله پردوی باندې چیغه اوزلزله راواستوله، هوان اوذلت یې ورباندې مسلط کړځکه چې دوی دصالح علیه السلام تکذیب وکړ اوناقه یې ووژله ﴿ وَنَجَّيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴾ (اونجات مو ورکړهغو کسانوته چې ایمان یې راوړی وواو وودوی چې پرهېزګاري به یې کوله (له شرک څخه) یعني حضرت صالح علیه السلام او مؤمنان مو له دغه عذابه وژغورل.

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَآءُ ٱللَّهِ إِلَى ٱلنَّارِ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿١٩﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا مَا جَآءُوهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَأَبْصَٰرُهُمْ وَجُلُودُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٢٠﴾ وَقَالُوا۟ لِجُلُودِهِمْ لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا ۖ قَالُوٓا۟ أَنطَقَنَا ٱللَّهُ ٱلَّذِيٓ أَنطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢١﴾ وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ أَبْصَٰرُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ وَلَٰكِن ظَنَنتُمْ أَنَّ ٱللَّهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٢٢﴾ وَذَٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ ٱلَّذِي ظَنَنتُم بِرَبِّكُمْ أَرْدَىٰكُمْ فَأَصْبَحْتُم مِّنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٢٣﴾ فَإِن يَصْبِرُوا۟ فَٱلنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۖ وَإِن يَسْتَعْتِبُوا۟ فَمَا هُم مِّنَ ٱلْمُعْتَبِينَ ﴿٢٤﴾ ۞ وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ فَزَيَّنُوا۟ لَهُم مَّا بَيْنَ

---

(۱) کبیر تفسیر ۲۷/ ۱۱۲

(۲) کبیر تفسیر ۲۷/ ۱۱۲

أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ ٱلْقَوْلُ فِىٓ أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ خَٰسِرِينَ ﴿٢٥﴾
وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَا تَسْمَعُوا۟ لِهَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ وَٱلْغَوْا۟ فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ ﴿٢٦﴾ فَلَنُذِيقَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَذَابًا شَدِيدًا
وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَسْوَأَ ٱلَّذِى كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٢٧﴾ ذَٰلِكَ جَزَآءُ أَعْدَآءِ ٱللَّهِ ٱلنَّارُ لَهُمْ فِيهَا دَارُ ٱلْخُلْدِ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا يَجْحَدُونَ
﴿٢٨﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ رَبَّنَآ أَرِنَا ٱلَّذَيْنِ أَضَلَّانَا مِنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ أَقْدَامِنَا لِيَكُونَا مِنَ ٱلْأَسْفَلِينَ ﴿٢٩﴾
إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ثُمَّ ٱسْتَقَٰمُوا۟ تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ أَلَّا تَخَافُوا۟ وَلَا تَحْزَنُوا۟ وَأَبْشِرُوا۟ بِٱلْجَنَّةِ
ٱلَّتِى كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴿٣٠﴾ نَحْنُ أَوْلِيَآؤُكُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَفِى ٱلْءَاخِرَةِ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِىٓ أَنفُسُكُمْ
وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ﴿٣١﴾ نُزُلًا مِّنْ غَفُورٍ رَّحِيمٍ ﴿٣٢﴾ وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَآ إِلَى ٱللَّهِ وَعَمِلَ صَٰلِحًا وَقَالَ
إِنَّنِى مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴿٣٣﴾ وَلَا تَسْتَوِى ٱلْحَسَنَةُ وَلَا ٱلسَّيِّئَةُ ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ فَإِذَا ٱلَّذِى بَيْنَكَ وَبَيْنَهُۥ عَدَٰوَةٌ كَأَنَّهُۥ
وَلِىٌّ حَمِيمٌ ﴿٣٤﴾ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴿٣٥﴾ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ
فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٣٦﴾ وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلَّيْلُ وَٱلنَّهَارُ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ لَا تَسْجُدُوا۟ لِلشَّمْسِ
وَلَا لِلْقَمَرِ وَٱسْجُدُوا۟ لِلَّهِ ٱلَّذِى خَلَقَهُنَّ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿٣٧﴾ فَإِنِ ٱسْتَكْبَرُوا۟ فَٱلَّذِينَ عِندَ
رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُۥ بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُونَ ۩ ﴿٣٨﴾ ﴾ فصلت: ١٩ – ٣٨

مناسبت: کله چې الله تعالی په تېروآیتونوکې دعادیانواوثمودیانودهلاکت بیان وفرمایودلته یې
وروسته په عامه توګه دګردوکفارودسرنوشت حال کوم چې دوی ته به په آخرت کې له عذاب اوهلاکت
څخه رسېږي یادکړل ترڅوچې مؤمنان دګناهونوله کولواودالله په نعمتونوله کفران څخه ډډه وکړي
اوبشپړپنداونصیحت واخلي.

لغتونه: (یوزعون) لومړني یې دوروستنیولپاره ځنډول چې سره یوځای شي (تستترون) تاسې پټوی (أرداکم)
سخت هلاکېدونکی ستاسې (یستعتبون) دالله خوښي غوښتونکي (معتبین) منل شوی عتاب ددوی (قیضنا)
موږچمتوکړی (نزلا) مېلمستیا اواکرام (یسامون) خوابدي ماړه کېدونکي.

دنزول سبب: ابن مسعودرضی الله عنه وایې درې تنه چې دوه یې قریشیان اویویې ثقفي ووډکعبې خواکې
یوځای شول دوی په عقل ډېرکم اوبدن چاغ وویوه وویل آیاالله هرهغه چې موږ وایو اوري؟ بل په ځواب
کې ورته وویل که موږیې په لوړآواز وایو بیایې اوري اوکه په ورو یې وایو بیایې نه اوري دریم ورته
وویل که چېرې په زوره غږ اوري بیانوپه وروهم اورېدلای شي نوالله جل جلاله داآیت نازل کړچې: ﴿وَمَا
كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ أَبْصَٰرُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ﴾ (١) دآیت ترپایه.

(١) الحدیث أخرجه مسلم کذافی القرطبي ١٥/٣٥١

تفسير:

﴿ وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَآءُ ٱللَّهِ إِلَى ٱلنَّارِ ﴾ او (یاد کړه ) هغه ورځ چي راټول به کړل شي دښمنان دالله اور (ددوزخ) ته (په څمکه دمحشرکي )﴿ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴾ (پس دوی به ډلي ډلي کړی شي) يعني لومړني به يې وروستنيوته تم او ودرول شي ترڅو سره يوځای شي ابن کثيروايې چي ددوزخ متصرفين زبانيه به لومړني اوروستني سره يوځای کړي(۱)﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا مَا جَآءُوهَا ﴾ ترهغه وخته پوري چي راشي دوی دغه (اورته ) اودحساب لپاره ودرېږي ﴿ شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَأَبْصَٰرُهُمْ وَجُلُودُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ شاهدي به ورکړي پردوی غوږونه ددوی اوسترګي ددوی اوپوستکي ددوی (اونوراعضاء)په هغو(کارونو) چي دوی به کول. په حديث شريف کي راځي چي ددوی په خولوبه مهرولګول شي اوبيابه يې غړواندامونو ته وويل شي چي وګږېږئ نوبه هغوی پخپلو کړو وړو اعتراف وکړي بيابه بيرته پرېنده ته دخبرو کولو اجازه ورکړل شي نوهغه به خپلواندامونوته وايي: ای کمبختانوليري او ورک شئ ماخوستاسي په ګټه جګړې نښلولي وې (حال داچي تاسي پخپلوجرائمواقرار وکړ) (۲)﴿ وَقَالُوا۟ لِجُلُودِهِمْ لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا ﴾ او وبه وايي (کفارپه تعجب سره اعضاووا و)پوستکيوخپلوته ولي موشاهدي وکړه تاسي پرموږ؟ (دغه به دتوبيخ اوتعجب په ډول ورته ووايي چي موږخوپه دنياکي له تاسوڅخه مدافعه کوله تاسي ولي پرموږګواهي ورکړه اواقرارمو وکړ﴿ قَالُوٓا۟ أَنطَقَنَا ٱللَّهُ ٱلَّذِىٓ أَنطَقَ كُلَّ شَىْءٍ ﴾ نو وبه وايي (دغه پوستکي اندامونه چي موږپخپله نه يوغږېدلي بلکه) غږولي يوموږ هغه الله (مقتدرذات) چي هرشی يې غږولی دی) يعني دوی به دمعذرت وړاندي کولوپه توګه ووايي چي خبره زموږدخپل واک نه ده بلکه موږهغه الله غږولي يوچي جمادانسان اوحيوان يې په قدرت باندي ګوياکېږي نوځکه موږستاسي په بدواعمالوشاهدي ولوستله ﴿ وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ ﴾ (حال داچي الله پيداکړي يی تاسي اول ځلي ) يعني الله تاسوله عدم څخه موجودکړی اوله نېستي څخه يې ژوندي کړي ياست اوڅوک چي پردې قادروي نوهغه زموږپه ګوياکولوهم قادردی ﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ اوخاص همدغه الله ته بيرته بېولی شی(مجازاتوته په بعث سره ) ابوالسعودوايې معناداچي زموږ نطق دهغه ذات له لوري چي هرساکښ يې ګوياکړي څه عجيبه کارنه دی ځکه هغه ذات چې ستاسي په لومړي پيداښت قادردي اوبياستاسو په بعث اونشورباندي دوهم ځلي قدرت لري نودغه دتعجب وړخبره نه ده چي ستاسي اعضاووته دي دخبروکولوتوان ورو بښي (۳)﴿ وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ أَبْصَٰرُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ ﴾ اونه وی تاسي (په وخت دکولوددغوفواحشو داسي) چي پټول به مو (دغه فواحش له وېري ددې ) چي

---

(۱) دابن کثيرمختصر ۳ /۲۷۰

(۲) دغه دمسلم شريف داوږده حديث لنډيزدی اوپدې کي دليل شته چي دقيامت په ورځ په انسانانوخپل هډونه شاهدي وايي والله على كل شئ قدير.

(۳) دابوالسعودتفسير ۵ /۲۲

شاهدي به ورکړي پرتاسي غوږونه ستاسي اونه سترګي ستاسي اونه پوستکی ستاسي ، يعني تاسو دا ګمان نه کاوو چي ګنه دغه اندامونه به سبا درباندي شاهدي وايي پدې کي دا تنبيه نغښتې ده چي مؤمن بايد تل دا په پام کي لري چي څارونکی يې څاري (۱) ﴿ وَلَٰكِن ظَنَنتُمْ أَنَّ اللَّهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ وليکن تاسي به ګمان کاوو (په وخت دپټولوکي) ددې چي بېشکه الله نه دی خبرپه ډېرو له هغو کارونو چي تاسي به کول (نوځکه دغه ګمان تاسي په ګناه کولوزړه ورکړي ﴿ وَذَٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِي ظَنَنتُم بِرَبِّكُمْ أَرْدَاكُمْ ﴾ اودغه (فاسدګمان ) ستاسي هغه ستاسي ګمان دي چي کاوو به مو په رب خپل (په هلاکت او په اورکي يې )غورځولي ياست ﴿ فَأَصْبَحْتُم مِّنَ الْخَاسِرِينَ ﴾ پس وګرزېدی تاسي له زيانکارانوڅخه (چي دځان اوخپلوانوپېکمرغي موله لاسه ووته اودغه نوبشپړ خسران اوشقاوت دی ﴿ فَإِن يَصْبِرُوا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ﴾ پس که دوی صبروکړي (يايې ونکړي )پس اور ددوی هستوګنځی دی (هيڅکله به ترې خلاصون ونه مومي) ﴿ وَإِن يَسْتَعْتِبُوا فَمَا هُم مِّنَ الْمُعْتَبِينَ ﴾ اوکه دوی دالله رضاکېدل غواړي پس نه به وي دوی له قبول کړی شويو(په طلب درضادالله) قرطبي وايي چي عتبی دمعتوب عليه رجوع ته ويل کېږي هغه څه ته چي دعاتب رضا ترلاسه کړي وايي چي:( استعتبتُه فاعتبنی) معنا ماورڅخه دهغه خوښي وغوښتله اوهغه ته ما خوښي ئې څرګنده کړه (۲)﴿ وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ ﴾ (اومقررکړی مودی دوی ته ملګری) يعني مشرکانوته موبد ملګري شيطانان ورګمارلي دي اوهمداسي سرغړونکي انسانان مو ور اندېوالان کړي دي ﴿ فَزَيَّنُوا لَهُم مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ﴾ پس ښايسته کړي يې دي دوی ته هغه څيزونه چي وړاندي له دوی دي اوهغه څېزونه چي وروسته له دوی دي ) يعني اوسني اوراتلونکي بداعمال يې ورته ښايسته کړي دي . ابن کثيروايي چي دوی ته يې ګرد کارونه داسي ښايسته کړي چي دوی ځان ښېخي پرحق ګڼي (۳)﴿ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ ﴾ اوثابته شوي ده پردوی خبره (دعذاب قطعي فيصله چي دوی اشقياء دي) ﴿ فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ﴾ په (ډله د) هغوامتونوکي چي په تحقيق تېرشوي دي پخواله دوی نه له پېريانانو اوانسانانوڅخه ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ ﴾ بېشکه چي دوی وو زيانکاران ، دغه ددوی دعذاب دوړتيااواستحقاق لپاره تعليل دی يعني دوی په دنيااوآخرت کي زيانکاران دي نوځکه د ابدي عذاب مستحق وګرزېدل ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ ﴾ او وايي هغه کسان چي کافران شوي دي (په وخت دقرائت دقرآن کي) چي مه اورئ غوږمه نيسئ تاسي دغه قرآن ته) .کله چي الله تعالی دعاديانو اوثموديانوکفربيان کړ ورپسې يې دغه

(۱) تفسيرالبيضاوي ۲/ ۱۵۲
(۲) دقرطبي تفسير۱۵ /۳۵۴
(۳) مختصرابن کثير ۳ /۲۲۷

دقريشي مشركانو څخه اخبار وفرمايل چي دوی څيني څيني نوروته وايي کله چي محمد ﷺ قرآن لولي تاسي ورته غوږمه ږدئ او ﴿ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ ﴾ اوشورماشور جوړکړئ (په وخت دلوستلود ) ده کي ښايي چي تاسي غالب شی (په دين دده باندي ) ابن عباس ﷺ وايي چي ابوجهل ويل کله چي محمد قرآن لولي تاسي يې په وړاندي چيغي اوزوږ جوړکړئ چي ونه پوهيږي چي څه وايي (۱) ﴿ فَلَنُذِيقَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا عَذَابًا شَدِيدًا ﴾ (الله فرمايي چي) پس خامخاوبه څکوو موږ هرومرو هغو کسانوته چي کافران شوي دي عذاب سخت) يعني قسم دی چي خامخابه دغومستهزئينوپه قرآن ته سخت عذاب وروڅکوچي نه به سپکيږي اونه به ختميږي ﴿ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ اوخامخا جزابه ورکړو موږ هرومرودوی ته ډيره بده سزادهغواعمالو چي وو دوی چي کول به يې ﴿ ذَٰلِكَ جَزَاءُ أَعْدَاءِ اللَّهِ النَّارُ ﴾ دغه (سخت عذاب ) جزاء ده ددښمنانودالله (يعني) چي اوردی (ددوزخ جزاء د مجرمينو ) ﴿ لَهُمْ فِيهَا دَارُ الْخُلْدِ ﴾ شته دوی ته په دغه اورکي کور دهميشه والي (تل ترتله چي هيڅ به خني نه ايستل کيږي) ﴿ جَزَاءً بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ ﴾ (دپاره دجزاء )په جزاء ورکولوپه سبب دهغه چي وو دوی (په دنياکي) چي په آيتونوزموږ (قرآن) به يې انکارکاوو (استهزآء وي به يې کولې. امام رازي وايي چي په قرآن باندي ددوی لغوي ته يې څکه جحود ووايوچي دوی کله چي پدې وپوهېدل قرآنکريم په بشپړه توګه وروستي سرحددا عجازته رسيدلی دی نوپدې ووېرېدل که چېري يې خلګ واوري ورباندي ايمان به راوري نويې دغه فريب وسنجول چي دلوستلوپه وخت کي يې په شورماشور لاس پوري کړی دغه پدې دلالت کوي چي دوی په دي پوه ووچي دغه معجزکلام دی نودحسدله مخي يې ترې انکار وکړ (۲) ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا رَبَّنَا أَرِنَا الَّذَيْنِ أَضَلَّانَا مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ﴾ او وبه وايي (په دوزخ) هغه کسان چي کافران شوي دي ای ربه زموږ وښيه موږته هغه (دوه تنه ) له پېريانو اوله انسانانوچي موږيې ګمراهان کړي وو، دلته يې دماضي په لفظ (قال) ددې لپاره تعبيروفرمايو چي دغه ثابته خبره ده اومعنايې دمستقبل دی ابوحيان وايي چي مرادله ﴿ الَّذَيْنِ ﴾ څخه جنس دی يعني هريوله ګمراه کونکي له دغودوانواعوڅخه (۳) ﴿ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ أَقْدَامِنَا ﴾ چي وايي اچوولاندي له قدمونو خپلو (دکسات اخيستلواوزره يخولولپاره) ﴿ لِيَكُونَا مِنَ الْأَسْفَلِينَ ﴾ (لپاره ددې چي شي دوی له ښکته خلګوڅخه) يعني ترڅودوی په درک أسفل کي شي هغه چي دمنافقينوځای دی اودغه دجهنم خوراسخت عذاب دی کله چي الله دبدمرغه مجرمينوحال بيان کړوړپسې دنېکمرغه مؤمنانوحال بيانوي چي ﴿ إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ

(۱) القرطبي ۳۵۲/۱۵
(۲) کبيرتفسير ۱۲۰/۲۷
(۳) البحرالمحيط ۴۹۵/۷

﴿اَسْتَقَـٰمُوا۟﴾ بېشکه هغه کسان چي ويلي يې دي صدقاً له زړه چي رب زموږ الله دی بيا ټينګ ولاړوي (په دغه توحيد اونورو ديني اعمالو طاعاتوترمرګه پوري) روايت کېږي چي حضرت عمررضی الله عنه کله چي په منبرداآيت تلاوت کړنوېې وويل: زمادي قسم په الله وي (معنادا) چي ټينګ ولاړوي په طاعت اوداسي نه وي لکه د ګيدړو غوندي چي يوه بله خواچل ول کوي، مقصدداچي دوی دالله په شريعت پخپلو ټولو کړو وړو اخلاقو، اقوالو اوافعالوکي ټينګ ولاړوي نودغه حقاني مؤمنان اوربښتوني مسلمانان دي له خيني عارفانوڅخه دکرامت په هکله وپوښتل شول هغوی ورته وويل چي استقامت عيني کرامت دی له حسن بصري رحمه الله څخه روايت شوی چي هغه به ويل: (اللهم أنت ربنافارزقناالاستقامة). ﴿تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ أَلَّا تَخَافُوا۟ وَلَا تَحْزَنُوا۟﴾ رانازلېږي به پردوی پرښتې (دنزع په وخت کي) چي مه وېرېږئ اومه خپه کېږئ يعني مه وېرېږئ له احوالودقيامته اومه خفه کېږئ په هغه مال اواهل اولادچي له تاسي څخه پاتي کېږي موږستاسوله خوا ددوی تکفل کوو

﴿وَأَبْشِرُوا۟ بِٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِى كُنتُمْ تُوعَدُونَ﴾ اوخوشحاله اوسئ تاسي په جنت هغه چي وی تاسي چي وعده يې درسره کړی شوي ده (دانبياوو په ژبه) شيخ زاده وايې چي پرښتې به دزنکندن په وخت مؤمن ته حاضرېږي اودغه زېری به ورکوي چي دمرګ له سختيومه وېرېږه اودقبرله کړاوونو اودقيامت له سختيوپروا مکوه اومؤمن به خپلودوو پرښتوته ګوري چي سرته به يې ولاړي وي هغوي به ورته داسي وايې چي نن مه خوابدی کېږه اومه وېرېږه زېری درکووپه هغه جنت چي درسره يې وعده کړل شوي ده نن به ته څه هېښونکي حالات وويني چي کله دي هم نه دي ليدلي ته څني مه وېرېږه دغه دنورولپاره دی

(۱)﴿نَحْنُ أَوْلِيَآؤُكُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَفِى ٱلْـَٔاخِرَةِ﴾ (بل ملائکي داسي ورته وايې) موږستاسي دوستان يوپه دغه دنيوي ژوندانه اوپه اُخروي کي (چي هغه لوري ته به موږ رهنمايي وکړو چي ستاسوددارينو نېکمرغي پکې وي) ﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِىٓ أَنفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ﴾ اوشته تاسي ته په دغه جنت کي هغه نعمتونه چي مينه ورته کوي نفسونه ستاسي اوشته تاسي ته په دغه (جنت) کي چي غواړی يې تاسي (له لذتونوڅخه اوتمنايې کوی) ﴿نُزُلًا مِّنْ غَفُورٍ رَّحِيمٍ﴾ مېلمستياده له جانبه د(الله) ښه بښونکی دېررحم والا (لپاره دمتقيانوبندګانو) ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَآ إِلَى ٱللَّهِ وَعَمِلَ صَـٰلِحًا وَقَالَ إِنَّنِى مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ﴾ اوڅوک دی دېرښايسته (بلکه نشته) له جهته دويناله هغه چا چي بولي (خلګ) دالله لوري ته او وايي بيشکه زه له مسلمانانو غاړه اېښودونکويم(احکام الله ته) يعني څوک دی دېرښايسته له جهته دوينا ترهغه چاچي خلګ دالله توحيد اوطاعت ته پخپل قول، فعل اوحال سره بولي نېک عملونه کوي اواسلام يې خپل دين اومذهب غوره کړی وی. ابن کثيروايي دغه آيت دهرهغه چالپاره عام دی څوک چي پخپله سم اونورخلګ دخيرښېګڼي لوري ته بولي (۲) زمخشري وايې

(۱) حاشية شيخ زاده على البيضاوي

(۲) مختصرابن کثير ۳/ ۲۲۴

چي آيت دهرهغه چاپه هکله عام دی څوک چي دغه دريِ سپېڅلي صفتونه يې يوځاى کړي وي پخپله معتقدمؤمن دښوکارونو کونکی اوښوکارونوته بلونکی وي دغه بل څوک نشي کېدای پرته له عاملينوعلماوو (۱) ﴿ وَلَا تَسۡتَوِى ٱلۡحَسَنَةُ وَلَا ٱلسَّيِّئَةُۚ ﴾ اونه برابرېږي سره نېکي اونه بدي (په جزاء اوحسن عاقبت کي بلکه ددوی ترمينځ ستر فرق شته) ﴿ ٱدۡفَعۡ بِٱلَّتِى هِىَ أَحۡسَنُ ﴾ دفع کوه (بدي) په هغه خصلت سره چي هغه ډېرښه وي، لکه چي غضب په صبر، جهل په حلم، ظلم په عفوسره دفع کوه (۲) ﴿ فَإِذَا ٱلَّذِى بَيۡنَكَ وَبَيۡنَهُۥ عَدَٰوَةٌ كَأَنَّهُۥ وَلِىٌّ حَمِيمٌ ﴾ پس ناڅاپه هغه څوک چي په مينځ ستااومينځ دهغه کي عداوت دښمني وي لکه چي دی به دوست وي ډېرمهربان ) يعني کله چي دي داسي وکړل نوبه دي دښمن دوست وګرزي ﴿ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ ﴾ (اونه ورکول کېږي دا (نېک خصلت دبدي دفع په نېکي سره) مګرهغوکسانوته چي صبرتحمل کوي) يعني دغه ستره رتبه اواوچت ښايسته خوی نه ورکول کېږي مګرهغه چاته ورکول کېږي چي قهر خوري ، غصه زغمي اوتکليف برداشت کوي ﴿ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴾ اونه ورکول کېږي دا (نېک خصلت) مګرخاوند دبرخي ډېري لويي ته (له خيراوسعادت څخه) ﴿ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ ٱلشَّيۡطَٰنِ نَزۡغٌ فَٱسۡتَعِذۡ بِٱللَّهِۖ ﴾ اوکه ورسېږي تاته له طرفه دشيطان څخه وسوسه (چي وادي ړوي له دغه ښه خصلته او انتقام اخيستوته دي وهڅوي) نوپناه ونيسه په الله (له شره اوفريبه دده څخه) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴾ بېشکه الله همدی دی ښه اورېدونکی (په اقوالودبندګانو )ښه پوهېدونکی (په افعالواواحوالويې ورپسې الله دخپل قدرت دلائل اوبالغه حکمت داسي بيانوي ﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِ ٱلَّيۡلُ وَٱلنَّهَارُ وَٱلشَّمۡسُ وَٱلۡقَمَرُۚ ﴾ اوځيني له دلائلو(دقدرت )دالله شپه او ورځ دي (چي يوپه بل پسي يې را ډېره کوي )اولمرسپوږمۍ (يې دبشردمصالحولپاره تابع کړي دي) ﴿ لَا تَسۡجُدُوا۟ لِلشَّمۡسِ وَلَا لِلۡقَمَرِ وَٱسۡجُدُوا۟ لِلَّهِ ٱلَّذِى خَلَقَهُنَّ ﴾ مه کوئ تاسي سجده لپاره دلمراونه لپاره دسپوږمۍ او سجده کوئ تاسي خاص لپاره دهغه (الله) چي پيداکړي يې دي (داشيان) ﴿ إِن كُنتُمۡ إِيَّاهُ تَعۡبُدُونَ ﴾ که چېري يی تاسي چي خاص هم ده (الله) ته عبادت کوی (يوازي نوله ده پرته بل چاته سجده مه کوئ ﴿ فَإِنِ ٱسۡتَكۡبَرُوا۟ ﴾ پس که لويي وکړه دوی (کفاروله سجدې کولوالله ته نوالله مستغني دی) ﴿ فَٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُۥ بِٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ ﴾ پس هغه څوک چي په نزد درب ستادی (له پرښتو) تسبيح وايې دغه (الله) ته هم په شپه هم په ورځ کي ﴿ وَهُمۡ لَا يَسۡـَٔمُونَ ﴾ اوحال دا چي دوی له دغه (تسبيح اوعبادته) نه ستړي کېږي

---

(۱) کشاف ۴/۱۵۲

(۲) القرطبي ۱۵/۳۶۷

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنَّكَ تَرَى ٱلْأَرْضَ خَٰشِعَةً فَإِذَآ أَنزَلْنَا عَلَيْهَا ٱلْمَآءَ ٱهْتَزَّتْ وَرَبَتْ ۚ إِنَّ ٱلَّذِىٓ أَحْيَاهَا لَمُحْىِ ٱلْمَوْتَىٰٓ ۚ إِنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَآ ۗ أَفَمَن يُلْقَىٰ فِى ٱلنَّارِ خَيْرٌ أَم مَّن يَأْتِىٓ ءَامِنًا يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ ٱعْمَلُوا۟ مَا شِئْتُمْ ۖ إِنَّهُۥ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٤٠﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِٱلذِّكْرِ لَمَّا جَآءَهُمْ ۖ وَإِنَّهُۥ لَكِتَٰبٌ عَزِيزٌ ﴿٤١﴾ لَّا يَأْتِيهِ ٱلْبَٰطِلُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِۦ ۖ تَنزِيلٌ مِّنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ ﴿٤٢﴾ مَّا يُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدْ قِيلَ لِلرُّسُلِ مِن قَبْلِكَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ وَذُو عِقَابٍ أَلِيمٍ ﴿٤٣﴾ وَلَوْ جَعَلْنَٰهُ قُرْءَانًا أَعْجَمِيًّا لَّقَالُوا۟ لَوْلَا فُصِّلَتْ ءَايَٰتُهُۥٓ ۖ ءَا۬عْجَمِىٌّ وَعَرَبِىٌّ ۗ قُلْ هُوَ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ هُدًى وَشِفَآءٌ ۖ وَٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ فِىٓ ءَاذَانِهِمْ وَقْرٌ وَهُوَ عَلَيْهِمْ عَمًى ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِن مَّكَانٍۭ بَعِيدٍ ﴿٤٤﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ فَٱخْتُلِفَ فِيهِ ۗ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَفِى شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴿٤٥﴾ مَّنْ عَمِلَ صَٰلِحًا فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ أَسَآءَ فَعَلَيْهَا ۗ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿٤٦﴾ ۞ إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ ۚ وَمَا تَخْرُجُ مِن ثَمَرَٰتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِۦ ۚ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَآءِى قَالُوٓا۟ ءَاذَنَّٰكَ مَا مِنَّا مِن شَهِيدٍ ﴿٤٧﴾ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَدْعُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَظَنُّوا۟ مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ ﴿٤٨﴾ لَّا يَسْـَٔمُ ٱلْإِنسَٰنُ مِن دُعَآءِ ٱلْخَيْرِ وَإِن مَّسَّهُ ٱلشَّرُّ فَيَـُٔوسٌ قَنُوطٌ ﴿٤٩﴾ وَلَئِنْ أَذَقْنَٰهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِى وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ قَآئِمَةً وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّىٓ إِنَّ لِى عِندَهُۥ لَلْحُسْنَىٰ ۚ فَلَنُنَبِّئَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِمَا عَمِلُوا۟ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٠﴾ وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ أَعْرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ فَذُو دُعَآءٍ عَرِيضٍ ﴿٥١﴾ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ثُمَّ كَفَرْتُم بِهِۦ مَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ فِى شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ﴿٥٢﴾ سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِى ٱلْءَافَاقِ وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ ۗ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴿٥٣﴾ أَلَآ إِنَّهُمْ فِى مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآءِ رَبِّهِمْ ۗ أَلَآ إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَىْءٍ مُّحِيطٌۢ ﴿٥٤﴾ فصلت: ٣٩ ـ ٥٤

مناسبت:

كله چي الله تعالى دابرارومؤمنانوصفات يادكړل وروسته يې پخپل وجود اووحدانيت باندي دلائل راوړل اودخپل علم اوحكمت كمال (بشپړتوب) يې وستايونودلته يې هغه څه بيان كړل چي په بعث اونشور دلالت كوي اوهغه دلائل هم په دغه كائناتي ويركتاب كي چي دليدلووړدی ترسترګو كېږي اوبيايې دكفارو ملحدينو يادونه وكړه چي دالله جل جلاله دآيتونو او پيمغبرانو اونبيانو تكذيب كوي اودسورت پای يې دبدمرغه مجرمينو په حال هغوی چي له قرآن كريمه منكروي وتاكو.

لغتونه:

(يلحدون) له حق څخه ميلان کوي ، الحادميلان اوعدول ته وايې ويل کېږي : (ألحد في دين الله) يعني دالله له دين څخه يې عدول اوکړوالی وکړ(اعجميًا) دعجموپه لغت (وقر) دروندوالی چي له اورېدلومانع شي(أكمامها) د(کم) جمع اودمېوې اوښکي ته وايې (محيص) دتېښتي ځای (نأى) ليري شو(الآفاق) دځمکي اوآسمانونواقطار(څنډي ځوکي) (مرية) شک اوستره شبه

تفسير:

﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنَّكَ تَرَى ٱلْأَرْضَ خَٰشِعَةً ﴾ (اوځيني له دلائلو(دقدرت) دده (الله) دادی چي بېشکه ته وينې ځمکه وچه کلکه) يعني له هغودلائلوچي دالله په وحدانيت اوبشپړقدرت ګوياوي ځيني هغه دي چي ته وچه کلکه ځمکه وينې چي هيڅ زرغون بوټی پکي نه ترسترګوکېږي لکه خاشع اوعاجز خوارسړی چي سپېرې دوړې اوخاوري ترې پورته کېږي ﴿ فَإِذَآ أَنزَلْنَا عَلَيْهَا ٱلْمَآءَ ٱهْتَزَّتْ وَرَبَتْ ﴾ پس هرکله چي نازلې کړو موږپه دغي(ځمکي) اوبه (دباران) نوسره وخوځېږي او وپړسېږي (اوشنه شي په بوټو،دانو، مېووباندي) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِىٓ أَحْيَاهَا لَمُحْىِ ٱلْمَوْتَىٰٓ ﴾ بېشکه هغه الله چي ژوندۍ کړي يې ده دا (ځمکه) خامخاژوندی کونکی دی دمړيو(له قبرونوڅخه په راپورته کولو) ﴿ إِنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ (بېشکه الله په هرشي (چي اراده يې وفرمايې) ښه قادردی) يعني دالله له هيڅ شي ترسره کولوڅخه ځوک مانع نشي ګرزېدلای لکه چي وانبه فصلونه اومېوې يې له وچي ځمکي څخه رازرغونې کړي همداسي دمړو په راژوندي کولوباندي قادردی ، ورپسې هغه چاته وعيد اوروي کوم چي ورروسته له دلائلوبراهينو بياهم دالله له آيتونوڅخه الحاداوکږوالی کوي فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَآ ﴾ بېشکه هغه کسان چي ميلان کوي له حقه باطل ته په آيتونو(دقرآن) زموږکي پرموږ پټ نه دي (نوددغه الحادجزابه ورکړو ، پدې کي وعيداو تهديددی ، قتاده وايې چي الحادکفراوعنادته وايې اوابن عباس ﷺ وايې چي الحاددکلام تبديل اوله خپله ځايه پرته په بل ځای کي اېښودل دی[1]) ﴿ أَفَمَن يُلْقَىٰ فِى ٱلنَّارِ خَيْرٌ أَم مَّن يَأْتِىٓ ءَامِنًا يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ آياپس هغه ځوک چي په اورکي وغورځول شي (په وېري هيبت سره غوره دی ياهغه ځوک چي رابه شي په امن(له عذابه) په ورځ دقيامت کي ؟ امام رازي ﷺ وايې چي غرض پردې باندي تنبيه ده چي دالله دآيتونو ملحدين به په اورکي غورځول کېږي اومؤمنان به له عذابه په امن وي ددوی دواړوترمينځ دځمکي اوآسمان فرق دی[2]) ﴿ ٱعْمَلُوا۟ مَا شِئْتُمْ ﴾ (نوورته ويل کېږي چي ) کوئ تاسي هرڅه چي موخوښ وي (دغه تهديددی چي وعيدپکې دی) ﴿ إِنَّهُۥ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ بېشکه الله په هغه چي تاسي يې کوی ليدونکی دی (ستاسي هيڅ عمل له هغه څخه پټ نه دی اوورباندي به جزا

---

[1] دقرطبي تفسير ١٥/ ٣٢٢

[2] کبيرتفسير ٢٧/ ١٣١

درکړي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِٱلذِّكۡرِ لَمَّا جَآءَهُمۡۖ ﴾ بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي په ذکر(قرآن) کله چې دوی ته راغی د (اِنّ) خبر محذوف دی چې د أمرهیبت او د چاري دهشت څرګند کړي لکه چې ویلي یې وي ژردی چې د دوی په کفر به داسي سزا ورکوله شي چې له ډېري سختي او فظاعته یې بیان نشي کېدای (۱) ﴿ وَإِنَّهُۥ لَكِتَٰبٌ عَزِيزٌ ﴾ حال دا چې بېشکه دغه قرآن خامخا کتاب قوي دی (په حجت او دلیل کې چې هیڅ مثال او ساری یې نشته ، په اعجاز مشتمل دی چې هر منکر او معاند مغلوبوي ﴿ لَّا يَأۡتِيهِ ٱلۡبَٰطِلُ مِنۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ وَلَا مِنۡ خَلۡفِهِۦۖ ﴾ نه راځي دغه قرآن ته باطل نه د مخي له طرفه ده او نه د شاله طرفه ده . ابن کثیر وایې معنا دا چې بطلان ورته لاره نلري ځکه چې د رب العالمین له لوري نازل شوی دی (۲) ﴿ تَنزِيلٌ مِّنۡ حَكِيمٍ حَمِيدٍ ﴾ رالېږل شوی دی له طرفه د حکمت والا ثنا ویلي شوي (الله) یعني دغه قرآن رالېږلی شوی دی له لوري د هغه حکیم ذاته چې په تشریع احوالو اقوالو کي یې حکمت دی او د بندګانو له طرفه ستایلی شوی ذات دی ځکه چې ډېر نعمتونه یې ورکړي دي، له دې وروسته الله تعالی خپل پیغمبرته د کفارو څخه په کړاوونو ګاللو داسي ډاډ او تسلیت ورکوي چې ﴿ مَّا يُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدۡ قِيلَ لِلرُّسُلِ مِن قَبۡلِكَۚ ﴾ (نه ویل کېږي (تاته ای محمده !) مګر (هم هغسي) وینا چې په تحقیق ویلی شوي وه لپاره د هغو رسولانو چې پخوا له تاتېر شوي دي) یعني تاته ستا د قوم کفار هم هغه څه وایې چې تر تا د مخه پیغمبرانو ته به کفارو ویل او د الله په کلام باندي به یې پېغورونه ترل ، قرطبي وایې چې الله خپل پیغمبرته دلاساینه ورکوي (۳) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغۡفِرَةٖ وَذُو عِقَابٍ أَلِيمٖ ﴾ بېشکه رب ستا خامخا څښتن د مغفرت دی (مؤمنانو لره) او څښتن د دردناک عذاب دی (کافرانو لره) نو خپلي چاري هغه ته وسپاره چې هغه دې له دښمنانو څخه کسات (انتقام) واخلي بیا الله تعالی د کفارو د تعنت او مکابرې یادونه هسي فرمایې چې: ﴿ وَلَوۡ جَعَلۡنَٰهُ قُرۡءَانًا أَعۡجَمِيّٗا ﴾ او که ګرزولی مو وای دغه قرآن په ژبه د عجمو ﴿ لَّقَالُواْ لَوۡلَا فُصِّلَتۡ ءَايَٰتُهُۥٓۖ ﴾ نو خامخا ویلي به وو دغو (عربو کفارو) ولي واضح ندي بیان شوي آیتونه د دې (قرآن) چې موږ ورباندي پوهېدلي وای ولي زموږ په عربي فصیحه ژبه نه دی نازل شوی)؟ ﴿ ءَا۬عۡجَمِيّٞ وَعَرَبِيّٞۗ ﴾ آیا عجمي دی او (نبي یې) عربي دی ؟ دغه انکاري استفهام دی یعني آیا قرآن عجمي او پیغمبر عربي دی ؟ (دا خو نه بنایې) امام رازي وایې چې داسي ویل کېږي چې کفارو به د خپلي سرکشي له کبله ویل چې ولي قرآن په عجمي ژبه ندی نازل شوی ؟ نو دوی ته ځواب ورکول شو که چېري داسي شوي وای لکه چې تاسو یې وړاندیز کوی بیا به موهم اعتراض کاوو (چې قرآن عجمي او پیغمبر عربي دی) وروسته زیاتوي چې

---

(۱) دغه دا اکثره مفسرینو رأیه ده او ابو حیان په البحر المحیط کي لیکي چې د (اِنّ) خبر مذکور دی هغه دا چې ﴿ لَّا يَأۡتِيهِ ٱلۡبَٰطِلُ مِنۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ ﴾ خبر دی خو عائد خني حذف شوی مګر لومړی وینا ښکاره ده.

(۲) مختصر ابن کثیر ۳ / ۲۶۵

(۳) ۱۵ / ۳۶۷ قرطبي

زماپه نزدحقه خبره داده چي دغه سورت ځيني يې له ځيني نورسره له سره ترپايه پېيلي ، اوبدلی دی تعلق اوپتلېزلري دسورت په پېیل کي الله فرمايلي ووچي ﴿ وَقَالُواْ قُلُوبُنَا فِيٓ أَكِنَّةٖ مِّمَّا تَدۡعُونَآ إِلَيۡهِ ﴾ (فصلت ۵) نوبيا الله تعالی ددوی ترديد په دې وفرمايو که چېري دغه قرآن دعجمو په ژبه وای نوبه دوی ويل چي څرنګه عجمي کلام دعربو خلګوته راغلی دی نوددوی هغه وينابه پرځای وه چي ويل يې: ﴿ وَقَالُواْ قُلُوبُنَا فِيٓ أَكِنَّةٖ مِّمَّا تَدۡعُونَآ إِلَيۡهِ ﴾ ځکه نوموږ پرې نه پوهېږو ، اوداچي دعربو پخپله ژبه رانازل شوی اودوی دهمدې لغت خلګ دي نوڅرنګه بيادوی ته امکان ميسردی چي داسي دي ووايې چي پرې نه پوهېږو ؟! نومعلومه شوه چي آيت شريف په خورابنکلي وجوهاتومشتمل دی (۱) ﴿ قُلۡ هُوَ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ هُدٗى وَشِفَآءٞۚ ﴾ ووايه (دوی ته ای محمده!) چي دغه قرآن دپاره دهغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی هدايت اوشفادی يعني دغه قرآن د مؤمنانولپاره له ضلالت څخه هدايت اوله جهل اوشک شبهې څخه شفادی ﴿ وَٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ فِيٓ ءَاذَانِهِمۡ وَقۡرٞ ﴾ اوهغه کسان چي ايمان نه راوړي په غوږونودوی کي دروندوالی دی (ځکه يې دشور ماشور جوړولوحيلې بهانې جوړولې ) ﴿ وَهُوَ عَلَيۡهِمۡ عَمًىۚ ﴾ (حال داچي دغه قرآن په دوی باندي پټوالی ړوندوالی دی چي کمال جمال يې نهويني) يعني لکه څرنګه چي داقرآن دمؤمنانولپاره رحمت دی همداسي دکفارولپاره بدبختي اوهلاکت دی لکه چي الله فرمايې ﴿ وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ مَا هُوَ شِفَآءٞ وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا خَسَارٗا ﴾ (الاسرا۸۲) دبيضاوي په حاشيه کي ليکي چي قرآنکريم له ښکاره دلائلو اوڅرګندونښانو څخه دحق لوري ته هادي اودشک او شبهې له مينځه وړونکی دی دجهل اوناپوهي ، کفراوشبهاتوله ګردوناروغيوشفاورکونکی دی او څوک چي پکي شک اوشبهه کوي دغه شک اوشبهه يې له شهوتونو پلوي کولوڅخه سرمنشاء اخلي اودنجات اونېکمرغي له لاروڅخه يې راګرزوي(۲) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ يُنَادَوۡنَ مِن مَّكَانِۭ بَعِيدٖ ﴾ دغه کفار (ګواکي داسي دي لکه چي) غږ ورته کاووه شي له ليري ځايه (بېشکه چي دوی دغه غږنه اوري او نه پرې پوهېږي دغه دمثال په توګه بيان دی) ابن عباس وايې معناداچي دوی

---

(۱) کبيرتفسير ۲۷/ ۱۳۳ دغه چي امام رازي ذکر کړی بېخي ښکاره دی ځکه دوی خودغه وراندېز کله هم ندی کړی چي قرآن دي دعجمو په ژبه وای بلکه دغه دفرض اوتقدير په توګه اودليل يې هم دادی چي ﴿ وَلَوۡ جَعَلۡنَٰهُ قُرۡءَانًا أَعۡجَمِيّٗا ﴾ اوداهغه څه دي چي موږهم ترجيح ورکړي اوعلامه قرطبي هم دغه لوري ته تللی چي دآيت شريف په تفسيرکي داسي ليکلي: يعني که چېري موږ داقرآن پرته له عربي ژبې په بله ژبه نازل کړی وای نوبه دوی ويل ولي يې آيتونه په عربي ژبه نه دي موږ خوعرب يو په عجمي ژبه خوګردسره نه پوهېږونو الله ددې بيان وفرمايو چي قرآن يې ددوی په لغت نازل کړچي داعجاز معنايې ثابته شي ځکه دوی ډېر خوراستر ژب پوهان ووچي په نظم اونثرکي ددوی پوهه لوړ سرحدته رسېدلې وه اوکله چي دوی له دې سره سره دقرآن کريم له معارضې څخه ناتوانه شول نودغه خوراکلک دليل اوکوټلی برهان دی چي داالهي کلام دی.

(۲) حاشية شيخ زاده على البيضاوي ۳/ ۲۲۵

لکه چارپایان غوندي دي چي په څه نه پوهېږي مګر په چیغونارو(۱) ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ فَٱخْتُلِفَ فِيهِ ﴾ او خامخا په تحقیق ورکړی وو موږ موسی ته کتاب (تورات) پس اختلاف وکړشو په هغه کي (چا یې تصدیق وکړ او چا یې تکذیب نو ستا د قوم حال هم د قرآنکریم په هکله همداسي دی قرطبي وايي چي دغه رسول الله ته تسلیت ورکول دي چي ته د خپل قوم د اختلاف په هکله خواشیني مکوه تردې له مخه نورو قومونو هم د خپلو کتابونو په هکله اختلاف کړی دی خینو وربانديي ایمان راوړی او خینو یې تکذیب کړی دی (۲) ﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ ﴾ او که چېري نه وای هغه خبره چي رومبی شوي ده (له طرفه ) د رب ستا (چي تاخیر د عذاب دی تر قیامته پوري) نو خامخا حکم به کړی شوی وو په مینځ د دوی (په دنیا ) کي ، یعني که چېري دغه د حساب جزاء او تأخیر حکم تر قیامته پوري خنډېدلی نه وای نو اوس مروبه الله دوی معذب کړي او په دنیا کي هلاک کړي وو ﴿ وَإِنَّهُمْ لَفِى شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴾ او بېشکه چي دغه (کفار) خامخا په داسي شک کي دي (له دې قرآنه) چي د اضطراب موجب دی (د دوی عقول ادراک نلري او سترګي یې د حق له لیدلو ړندې دي چي داسي یې شکمن کړي دي ﴿ مَّنْ عَمِلَ صَٰلِحًا فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ أَسَآءَ فَعَلَيْهَا ۗ ﴾ هر څوک چي نېک کار وکړي (په دنیا کي) پس لپاره د خپل ځان یې دی او هر څوک چي بد کار وکړي (په دنیا کي) پس هغه په ده باردی (ضرریې ورته راجع دی) ﴿ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴾ او نه دی رب ستا ظلم کونکی پر بندګانو (چي بې موجبه یې په عذاب اخته کړي ) یعني الله جل جلاله پر ته له دې نه چي څوک ګناه وکړي یو چا ته عذاب نه ورکوي یعني بې موجبه الله پاک څوک نه ځوروي، مفسرین کرام وايي چي د (ظلام) صیغه د مبالغې لپاره نه ده بلکه دغه د نسبت لپاره ده او مثال یې لکه : عطار، نجار، او تمار غوندي دی او که چېري د مبالغې لپاره واخیستل شي نو بیا به داسي خیال کېږي چي الله د ډېر ظلم نه کوي او دا به افاده کېږي چي کله ناکله څو ظلم کوي او دغه معنا ناروا او مستحیل ده ځکه چي الله جل جلاله له ظلم څخه منزه دی ﴿ إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ ﴾ خاص همدغه (الله) ته ورکاووشي علم د قیامت (چي څه وخت به واقع کېږي بل چا ته معلوم نه دی امام رازي وايي چي د قیامت بعینه وخت هیچا ته پر ته له الله څخه معلوم نه دی د دې مناسبت له رومبني سره دادی چي څرنګه الله پاک کفار په دغي وینا چي ﴿ مَّنْ عَمِلَ صَٰلِحًا فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ أَسَآءَ فَعَلَيْهَا ﴾ باندي وو پرول او معنا یې دا چي د دوی جزاء به د قیامت په ورځ ورکول کېږي نو به پوښتونکي ته سوال پیدا کېدو چي دغه د قیامت ورځ به نو کله وي الله جل جلاله وفرمایل چي د دغي ورځي علم له الله پرته بل چا ته هډو معلوم نه دی (۳) ﴿ وَمَا تَخْرُجُ مِن ثَمَرَٰتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا ﴾ او نه راوزي هیڅ قسم له مېوو څخه له غلافونو (وږي ،وابنکي) د دوی څخه ﴿ وَمَا

---

(۱) تفسیر کبیر ۲۷ / ۱۳۴

(۲) القرطبي ۱۵ / ۳۷۰

(۳) کبیر تفسیر ۲۷ / ۱۳۶

تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِۦ ﴾ اونه اخلي بارهيڅ ښځينه (له انسانه اوحيوانه) اونه ږدي بار (حمل) خپل مګرپه علم دالله سره (دالله له علم څخه يو ذره په ځمکه او آسمان کي پټ نه دي) ([1]) ﴿ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَآءِي ﴾ اوپه هغه ورځ غږبه وکړي (الله) مشرکانو ته چي څه شول شريکان زما (په زعم ستاسو پدې کي تهکم اوتقريع ده) ﴿ قَالُوٓاْ ءَاذَنَّٰكَ مَا مِنَّا مِن شَهِيدٍ ﴾ نووبه وايي دغه (مشرکان) چي خبرکړئ موږ ته (اوس) چي نشته زموږ نه هيڅوک شاهد (پدې چي تاته شريک شته) مفسرين کرام وايي کله چي دوی د قيامت ورځ ووينی نو به دوی له شريکانو څخه بېزاره شي اوبتان به له دوی څخه بېزاره شي دوی به په داسي وخت کي ايمان په توحيد راوړي کله چي ايمان ورته ګټه نه رسوي ﴿ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُواْ يَدْعُونَ مِن قَبْلُ ﴾ اوورک به شي له دوی نه هغه (بتان) چي وو دوی چي عبادت به يې کاووپخوا له دې نه (په دنيا کي) ﴿ وَظَنُّواْ مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ ﴾ اويقين به راشي ددوی چي نشته دوی ته هيڅ ځای د تېښتي (له عذابه دالله) ﴿ لَّا يَسْـَٔمُ ٱلْإِنسَٰنُ مِن دُعَآءِ ٱلْخَيْرِ ﴾ نه ستړی کېږي انسان له غوښتلو د خير (ښېګڼو غوښتلو لپاره د ځان لکه مال ، روغتيا ، دولت اوپاچهي ) ﴿ وَإِن مَّسَّهُ ٱلشَّرُّ فَيَـُٔوسٌ قَنُوطٌ ﴾ اوکه ورسېږي ورته کوم شرپس دی ډېر سخت نااُميده وي) يعني که چېري ورته ناروغي اوفقر ورسېږي بيا دی دالله له رحمت څخه ناهيلی وي ﴿ وَلَئِنْ أَذَقْنَٰهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ ﴾ اوقسم دی خامخا که وڅکوو ده ته رحمت مهرباني (غنااوصحت) له جانبه زموږ پس له هغي سختي چي ده ته رسېدلي وي (له فقر اومرض څخه) ﴿ لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِى ﴾ نوخامخاوبه وايي دی چي دغه (غنااوصحت لائق) زما دی (چي ماپخپل زيارا وکوښښ ځانته ګټلي دي . ابوحيان وايي چي نعمت ته يې ځکه رحمت ووايوچي هغه د رحمت له آثارو څخه دی ([2]) ﴿ وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ قَآئِمَةً ﴾ اوګمان نه کوم په قيامت د رېدونکي (چي رابه شي) ﴿ وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّىٓ إِنَّ لِى عِندَهُۥ لَلْحُسْنَىٰ ﴾ اوقسم دی که (بالفرض) بيرته وګرزولی شم په طرف د رب خپل نو بېشکه زما لپاره به وي په نزدد دغه (الله) کي خامخا نېکي (جنت لکه چي ماته يې په دنيا کي نعمتونه راکړي وو . ابن کثير وايي چي دغه په الله جل جلاله باندي سره له دې چي يقين اونېک عمل نلري آرزوګاني اوتمنيات تړي ([3]) ﴿ فَلَنُنَبِّئَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِمَا عَمِلُواْ ﴾ پس خامخابه خبرورکړو هرومرو هغو کسانو ته چي کافران شوي دي په هغو (عملونو) چي دوی کړي دي) يعني قسم دی چي

---

([1]) په الظلال تفسيرکي ليکي : زړه همداسي د مېوو ابنکي اوورې پلټي په ارحامو کي د ماشومانو اوپه باغونو کي د مېوو د غلافونو څارنه کوي هغه چي خورابې شمېره دي اوپه خيال کي نه راځي نودلته دالله جل جلاله دعلم اوپوهي انځور په ضميرکي رادبره شي څومره چي يې دانسان اوبشرزړه ځايولای شي هغومره حقيقت پکي څرګندېږي اوبشپړ حقيقت يې يوازي الله جل جلاله ته معلوم دی چي حدود نلري. في ظلال القرآن ۲۴ / ۱۴۰

([2]) البحرالمحيط ۷ / ۵۰۴

([3]) دابن کثير مختصر ۳ / ۲۲۷

دغو کافرانو ته به ددوی دعملونو په حقیقت پوهېدنه اوددوی په بدواعمالولیدنه ورکړو ﴿ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴾ اوخامخاوبه څکوو هرومرو دوی له سخته لویه عذابه څخه (چې هغه تل ترتله په دوزخ کې اوسېدل دي) ﴿ وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ أَعْرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ ﴾ اوکله چې انعام وکړو موږ پرانسانانونو وګرزي له حقه اوله شکره په څنګ شي (اودالله له اوامروغاړه وغړوي اوتکبرته ملاوتړي) ﴿ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ فَذُو دُعَآءٍ عَرِيضٍ ﴾ اوکله چې ورسېږي ده ته کومه سختي (بلا) پس دی داوږدې دعاخاوندوي(چې زاري جګې کوي دغه دانسان خته اوطبیعت) دی چې کله یې تکلیف په برخه شي نوالله یې په یادوي اوچې په نعمت کې غوپه شي بیایې الله هېروي ابن کثیروایې چې (عریض) پلنوالی یې ددعااوږدوالي لپاره استعاره کړی لکه چې دعذاب دسختوالي لپاره یې (غلیظ) استعاره راوړی دی([1]) ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ثُمَّ كَفَرْتُم بِهِۦ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته) آیاوینی تاسې (نوماهم خبرکړئ چې) که چېرې وي دغه قرآن له نزده دالله بیاکافران شئ تاسې په دغه (قرآن)یعني ای محمده دغو مشرکانو ته ووایه که چېرې داقرآن دالله له جانبه وي اوتاسوبې له سوچ اوفکره ورباندې کافران شی نوستاسې حال به څه وي؟ ﴿ مَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ فِى شِقَاقٍ بَعِيدٍ ﴾ څوک دی ډېرګمراه له هغه چاڅخه چې دی په مخالفت لیرې کې(له حقه) وي؟ دغه استفهام انکاري اودنفي په معنادی یعني نشته تردې بل سترګمراه څکه چې عداوت اوشقاوت یې منتهاته رسېدلی دی. ابوالسعود وایې داچې ﴿ مَنْ أَضَلُّ ﴾ یې د(منکم) پرځای راوړی ددې لپاره دی چې ددوی دحال بیان اودزیات ضلالت سبب یې وښیي ([2]) ﴿ سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِى ٱلْءَافَاقِ ﴾ ژردی چې وبه ښیو دوی (مشرکانو) ته دلائل خپل(پردې چې قرآن حق دی) په آفاقو(دځمکي او آسمان کې. لکه لمر، سپوږمۍ، ستوري ، ونې، نباتات اونورعلوي اوسفلي عجائبات) ﴿ وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ ﴾ اوپه نفسونوددوی کې (له عجائباتودقدرت دالله ددوی په خلقت اوتکوین کې. قرطبي وایې چې په نفسونوکې مرادهغه لطیف صنعت اوبدیع حکمت دی آن تردې چې دموادغائطه او ادرارو له دلارې جلاوالی څکه چې انسان په یوه خوله خوراک،څښاک کوي مګرله دوولاروڅخه بیرته ځنې خارجېږي اودالله جل جلاله له بدیع صنعت څخه یوهم هغه دانسان په سترګوکې یوڅاڅکی اوبه دي چې له ځمکې ترآسمانه دپنځو سووکالوواټن ورباندې وینې اوهمداسې یې په غوږونو کې چې ډول ډول غږونه ورباندې اوري اودهغوی ترمینځ توپیرکوي اوداسې نورچې دالله دښایسته او بدیع صنعت بېلګې اومثالونه دي([3]) ﴿ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ ﴾ ترهغه پورې چې ښکاره شي دوی ته چې بېشکه دغه قرآن حق دی ﴿ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴾ (آیاکافي نه دی

---

([1]) کبیرتفسیر ۲۷ /۱۳۸

([2]) ابوالسعود ۵ /۲۷

([3]) القرطبي ۱۵ /۳۵۷

رب ستا (بلکه کافي دی) بېشکه الله پر هر څيز شاهد، ګواه دی) يعني آيا دوی ته ستا د رښتنولي په توګه دا کافي نه دی چي ستا له ربه په څمکه او آسمان کي هيڅ شی هم پټ نه دی؟ ګرد شيان هغه ته څرګند او هغه پرې خبردار دی ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآءِ رَبِّهِمْ ﴾ (واوره خبردار شه چي بېشکه کفار په شک کي دي له ملاقاته د رب خپل (ځکه چي له بعثه منکر دي) ﴿ أَلَآ ﴾ د تنبيه کلمه او د استفتاح لپاره ده يعني ای قومه خبردار اوسئ چي کفار له حساب، جزاء او بعث څخه په شک کي دي ځکه نو دوی تفکر نه کوي او ايمان نه راوړي ﴿ أَلَآ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطٌ ﴾ واورئ خبردار شئ چي بېشکه الله په هر څيز چاپېر کېدونکی دی (په علم او قدرت نو دوی ته به د دوی په کفر سزا ورکړي).

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي د بيان او بديع کومي ښکلاوي شته لندون يې دا دی:

۱- د طباق صنعت چي د ﴿ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ﴾ ترمينځ او ﴿ طَوْعًا أَوْ كَرْهًا ﴾ او د ﴿ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ﴾ او د ﴿ الْحَسَنَةُ ...... وَلَا السَّيِّئَةُ ﴾ او د ﴿ مَغْفِرَةٍ وَذُو عِقَابٍ ﴾ او د ﴿ ءَأَعْجَمِيٌّ وَعَرَبِيٌّ ﴾ او د ﴿ تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ ﴾ ﴿ الْخَيْرِ ...... الشَّرُّ ﴾ ترمينځ شتون لري.

۲- سلبي طباق لکه ﴿ لَا تَسْجُدُوا لِلشَّمْسِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ ﴾ او همداسي د ﴿ ءَامَنُوا هُدًى وَشِفَآءٌ وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ په جملو کي.

۳- د التفات صنعت چي فرمايي: ﴿ فَإِنْ أَعْرَضُوا ﴾ چي وروسته له دې وينا څخه راځي ﴿ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ ﴾ چي دغه له خطاب څخه غياب ته التفات دی او دغه اعراض مناسب هم دی ځکه چي دوی له حق څخه اعراض کړی دی او دا ښکلی تناسب دی.

۴- تمثيلي استعاره چي فرمايي: ﴿ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا ﴾ د الله جل جلاله د قدرت داغيز مثال يې ديو با چاله فرمان سره مثال راوړی هغه چي يو مأمور يا مربي ته حکم کوي او د هغه حکم ژر تر ژره ترسره کېږي او منل کېږي.

۵- تصريحي استعاره چي پدې کلام کي ده ﴿ وَقَالُوا قُلُوبُنَا فِي أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ وَفِي ءَاذَانِنَا وَقْرٌ ﴾ دلته په حقيقت کي کوم چي دوی وينا کوله هيڅ هم موجود نه وو مګر دوی دغه خبره پدې کوله چي دوی د قرآن کريم کوم وعيد و نه يا جوامع البيان اورېدو پر دوی به درونده شو لکه چي دوی له ډېري کرکي او نفرته يې له اورېدو کاڼه شوي وو او زړونه يې له پوهېدلو ړانده شوي وو.

۶- بله استعاره چي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ يُنَادَوۡنَ مِن مَّكَانِۭ بَعِيدٖ ﴾ ددوی حال دپندونوله نه منلو او اعراض سره له هغه چاسره مشابه کړ چې له ليري ځايه غږ ورته ناري وهي نو نه يې دوی غږ اوري او نه پرې پوهيږي او وجه جامع يې په دواړوکي نه پوهېدل دي.

۷- تهديدي امرلکه: ﴿ ٱعۡمَلُواْ مَا شِئۡتُمۡ ﴾ امريې له خپلي صيغي څخه دوعيد او تهديد معناته ايستلی دی.

۸- مرسله مجمله تشبيه لکه داچي فرمايي ﴿ وَلِيٌّ حَمِيمٞ ﴾ دتشبيه ادات ذکرشوی او وجه دشبه حذف شوي نو مرسله مجمله تشبيه ده.

۹- انسان دقرآني اسلوب دجمال او ښايست له انځورولوچي دبلاغت په تول يې وتلي عاجز او ناتوانه دی دغه بياني جمال او ښکلاچي دالله تعالی پدې کلام کي نغښتي ده ولوله: ﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنَّكَ تَرَى ٱلۡأَرۡضَ خَٰشِعَةٗ فَإِذَآ أَنزَلۡنَا عَلَيۡهَا ٱلۡمَآءَ ٱهۡتَزَّتۡ وَرَبَتۡۚ إِنَّ ٱلَّذِيٓ أَحۡيَاهَا لَمُحۡيِ ٱلۡمَوۡتَىٰٓۚ إِنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ ﴾ او دغه هنري تناسق او پېيلتوب ته وگوره چي په تعبيراواداکي له ورايه بريښي بياد خشوع او اهتزاز کلماتي وځېره او بيادخمکي دپړسوب خبره چي الله يې له مرگه وروسته راپنځوي يو په بل مخ واړوه لکه چي الله مړي له قبرونو څخه راپاځوي دغه دبيرته راپاځون فضاء او دژوندانه دبيرته ترلاسه کېدلو دگردی وگوره چي دغه انځورونه څرنگه عقلونه ځان ته راکاږي او خپلوي يې.

دفصلت سورت تفسيردالله په مرسته بشپړشو

***

## د(الشوری )سورت مکي دی او دري پنځوس آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دغه مکي سورت دی او دنورو مکي سورتونو په شان موضوع لري هغه چي له عقيدې څخه بحث کوي، وحدانيت، رسالت او بعث جزاء څېړي هغه محورچي سورت وربانديي راتاوېږي هغه وحی او رسالت دی چي دسورت بنستيزه موخه (هدف) يې گڼلای شو.

سورت په پيل کي دوحی اورسالت مصدرڅېړي رب العالمين الله هغه ذات دی چي په انبياوو پيغمبرانو يې وحی اورسالت رانازل کړی او دپيغمبري لپاره يې هغه کسان غوره کړي چي دده خوښ وي ترڅوچي بشريت دشرک او گمراهي له تياروڅخه دهدايت او ايمان لورته وباسي.

وروسته دځيني مشرکانو حال راآخلي هغوی چي الله ته يې داولاد، ذوذات نسبت کړی تردې چي آسمانونه نژدې له دې سختي خبري څخه وچوي خودوی له دې سره سره پخپلي گمراهي کي لامبي او هلته

ملا الاعلی پخپلو تسبیحاتو کي لګیا او د الله جل جلاله تمجید او تسبیح وايي داهغه پرتله کېدل دي چي دځمکي دخلګو کفر او ګمراهي او د آسمان د مخلوقاتو د ایمان او باور خبره سپینوي

بیا سورت بیرته دوحی حقیقت او رسالت ته راګرزي او داجوتوي چي دین یو دی چي الله پاک ګردانبیاء وربا ندي رالستولي دي او داچي دانبیاو وعلیهم السلام شریعتونه که څه هم سره ګوښي وو خو دین دټولو یو دی او هغه داسلام سپېڅلی دین دی چي الله وربا ندي نوح ، عیسی، موسی او نور انبیاء علیهم السلام رالستولي دي ﴿ شَرَعَ لَكُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا وَصَّىٰ بِهِۦ نُوحًا وَٱلَّذِىٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ وَمَا وَصَّيۡنَا بِهِۦٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَىٰٓ ﴾.

سورت دقرآنکریم دمکذبینوله بیان څخه دقیامت دبعث او جزاء منکرینو ته لېږدي او هغوی په خورا سخت عذاب وېروي داسي عذاب چي له وېري يې دسرو ښتان سپينېږي او زړونه دربېږي خودوی په دنیاکي دهغه عذاب په هکله ملنډي وهي او د استهزاء په توګه يې ژر تر ژره راتلل غواړي

وروسته له دې چي سورت دکائناتو په ویړ کتاب کي دایمان نښي او دلائل وښیي هغه چي دالله جل جلاله له آثارو څخه یو اثر او دالله د حکمت او قدرت یوه بېلګه ده نو بیا خلګو ته دالله جل جلاله دبلني استجابت ته او دالله حکم ته په غاړه اېښودلو دعوت ورکوي پخواتر دې چي دوی ته ترینګلي ورځ راشي چي هلته نه مال دولت دڅه په کار ېږي او نه هم خپلوان چاته ګټه رسولای شي: ﴿ ٱسۡتَجِيبُواْ لِرَبِّكُم مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِىَ يَوۡمٌ لَّا مَرَدَّ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ ﴾.

سورت په پای کي له وحی او قرآن څخه خبري کوي لکه چي وربا ندي پیل شوی هم وو تر څو چي پیل او پای سره پېلی او متناسق وي ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ رُوحًا مِّنۡ أَمۡرِنَاۚ مَا كُنتَ تَدۡرِى مَا ٱلۡكِتَٰبُ وَلَا ٱلۡإِيمَٰنُ ﴾ دآیت تر پایه.

تسمیه او نوموليي:

دغه سورت ته ځکه دشوری سورت وايي چي دشوری ستر مقام په اسلام کي وښیي او مؤمنانو ته ددې ښوونه وکړي چي په دغه ښایسته بشپړه نبکمرغي تګلاري خپل ژوند روان کړي ځکه چي دغه شوری دفرد او ټولني په ژوند کي خورا مهم رول لري لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَأَمۡرُهُمۡ شُورَىٰ بَيۡنَهُمۡ ﴾.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ حمٓ ﴿١﴾ عٓسٓقٓ ﴿٢﴾ كَذَٰلِكَ يُوحِىٓ إِلَيۡكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكَ ٱللَّهُ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴿٣﴾ لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلۡأَرۡضِۖ وَهُوَ ٱلۡعَلِىُّ ٱلۡعَظِيمُ ﴿٤﴾ تَكَادُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ يَتَفَطَّرۡنَ مِن فَوۡقِهِنَّۚ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُونَ بِحَمۡدِ رَبِّهِمۡ

وَيَسْتَغْفِرُونَ لِمَن فِي الْأَرْضِ ۗ أَلَا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ (٥) وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ اللَّهُ حَفِيظٌ
عَلَيْهِمْ وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ (٦) وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ قُرْآنًا عَرَبِيًّا لِّتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا وَتُنذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ لَا
رَيْبَ فِيهِ ۚ فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ (٧) وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَهُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَٰكِن يُدْخِلُ مَن يَشَاءُ فِي رَحْمَتِهِ ۚ
وَالظَّالِمُونَ مَا لَهُم مِّن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ (٨) أَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ ۖ فَاللَّهُ هُوَ الْوَلِيُّ وَهُوَ يُحْيِي الْمَوْتَىٰ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ
قَدِيرٌ (٩) وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبِّي عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ (١٠) فَاطِرُ
السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَمِنَ الْأَنْعَامِ أَزْوَاجًا ۖ يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ ۚ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ۖ
وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ (١١) لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ
(١٢) ۞ شَرَعَ لَكُم مِّنَ الدِّينِ مَا وَصَّىٰ بِهِ نُوحًا وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَىٰ ۖ أَنْ
أَقِيمُوا الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ ۚ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ ۚ اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَن
يُنِيبُ (١٣) وَمَا تَفَرَّقُوا إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى
لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ أُورِثُوا الْكِتَابَ مِن بَعْدِهِمْ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ (١٤) فَلِذَٰلِكَ فَادْعُ ۖ وَاسْتَقِمْ كَمَا
أُمِرْتَ ۖ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ ۖ وَقُلْ آمَنتُ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِن كِتَابٍ ۖ وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ بَيْنَكُمُ ۖ اللَّهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۖ لَنَا
أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ ۖ لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ۖ اللَّهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا ۖ وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ (١٥) وَالَّذِينَ يُحَاجُّونَ فِي اللَّهِ
مِن بَعْدِ مَا اسْتُجِيبَ لَهُ حُجَّتُهُمْ دَاحِضَةٌ عِندَ رَبِّهِمْ وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ (١٦) اللَّهُ الَّذِي أَنزَلَ
الْكِتَابَ بِالْحَقِّ وَالْمِيزَانَ ۗ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيبٌ (١٧) يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا ۖ وَالَّذِينَ
آمَنُوا مُشْفِقُونَ مِنْهَا وَيَعْلَمُونَ أَنَّهَا الْحَقُّ ۗ أَلَا إِنَّ الَّذِينَ يُمَارُونَ فِي السَّاعَةِ لَفِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ (١٨) ﴾

الشورى: ١ - ١٨

## لغتونه:

(يتفطرن) چوي، فطورچاودلوته وايې لکه چي بل ځای فرمايې ﴿ هَلْ تَرَىٰ مِن فُطُورٍ ﴾ (فاطر) خالق ، مبدع اومخترع ته وايې (يوم الجمع) دقيامت ورځ ځکه چي خلک پکي يوځای کېږي(أم القرى) مکه مکرمه (يذرؤكم) پيدا کوي اوزياتوي مو(مقاليد) د(أقليد ) غيرقياسي جمع اوکليګانوته وايې (شرع) مقرر کړی اوښکاره کړی دی (كبر) ستراوعظيم دی سخت دی (ينيب) له ګناهونوڅخه توبه اورجوع کولو ته وايې (مريب) دشک اوشبهې ځای( داحضة) باطل اوزائل ، وايې چي (دحضت رجله) معناداچي پښه يې وښوئېدله

تفسير: ﴿حمٓ عٓسٓقٓ ﴾ دغه مقطعات توري اودقرآنکريم په اعجازدلالت کوي چي انسان په لومړنيوتورو پوهوی کوم چي په ناآشناتوګه پيل کېږي ﴿ كَذَٰلِكَ يُوحِىٓ إِلَيْكَ وَإِلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكَ ٱللَّهُ ٱلْعَزِيزُ

﴿ ٱلْحَكِيمُ ﴾ په مثل د(وحی) دهمدې (سورت) همېشه تاته وحی کوي (ای محمده!) او وحی یې کړې وه (هغو نبیانو ته) چې تر تا دمخه وو الله ښه غالب قوي (پخپله پاچهي کې) ښه حکمت والا (پخپل صنعت کې) ﴿ لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ خاص همده لره دي هرهغه شیان چې په آسمانونو کې دي اوهرهغه شیان چې په ځمکه کې دي (خلقاً ملکاً اوعبیداً) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَلِيُّ ٱلْعَظِيمُ ﴾ او همدی دی ډېر پورته ډېر لوی (منفرد (په کبریا اوعظمت کې) ﴿ تَكَادُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِن فَوْقِهِنَّ ﴾ نږدې دي آسمانونه (تول دې ته) چې وچوي له پاسه ددوی (له جهته دظهور د کبریا او جلاله درب او شناعته دهغې وینا چې مشرکین یې کوي او الله لره ولد ثابتوي) ﴿ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ﴾ او پرښتې تسبیح وایې سره له حمده درب خپل (دالله تنزیه کوي له هغه څیزڅخه چې ورسره نه ښایې) ﴿ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِمَن فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ او مغفرت غواړي لپاره دهغه چاچې په ځمکه کې دي (له مؤمنانو په التسهیل کې وایې چې په آیت شریف کې عموم دی اود خصوص اراده ترې کیږي ځکه چې پرښتې یوازې مؤمنانو ته ښښنه او مغفرت غواړي لکه چې بل ځای فرمایې: ﴿ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ (غافر ۷)([1]) ﴿ أَلَآ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ واوره! خبردار شه چې بېشکه هم دغه (الله) ښه مغفرت کونکی (دخطیئاتو دبندګانو) ډېر رحم والادی (پر دوی باندې چې ژر تر ژره عذاب نه ورکوي سره له دې چې هغوی کفر او ګناهونه کوي قرطبي وایې چې الله جل جلاله په پیل کې دهیبت او جلال یادونه وکړه او په پای کې یې بیا دمهرباني او بشارت لورینه وفرمایله ([2]) ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ ﴾ او هغه کسان چې نیولي دي دوی یې له دغه (الله نور) دوستان (بتان) په الوهیت سره) ﴿ ٱللَّهُ حَفِيظٌ عَلَيْهِمْ ﴾ الله ښه ساتونکی دی (په اعمالو احوالو د) دوی (هیڅ شی له الله څخه پټ او الونیانه دی الله به له دوی سره حساب وکړي ﴿ وَمَآ أَنتَ عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ ﴾ او نه یې ته پر دوی وکیل (مسلط کړی شوی چې په زوره یې دایمان راوړلو ته اړ باسي بلکه ته یوازې وېرونکی یې ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا ﴾ او همداسې (چې هر نبي ته مو وحی کوله) وحی مو کړې ده تاته (ای محمده!) عربي قرآن (معجز چې هیڅ التباس پکې نشته ابهام او غموض نلري) ﴿ لِّتُنذِرَ أُمَّ ٱلْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا ﴾ د پاره ددې چې وو ېروې اهل د مور دښارونو (چې مکه مکرمه ده) او هغه کسان چې له دې چاپېر (خواوشا) دي امام فخر رازي وایې چې مکې ته یې ځکه دښارونو مور وویله چې شرافت او تعظیم یې وشي ځکه په مکه کې مقام ابراهیم او بیت الله دي عرب اصل د هر څېز ته دهغه مور وایې داسې ویل کېږي چې دغه قصیده دفلاني شاعر د قصید و له

---

([1]) التسهیل لعلوم التنزیل ۴/۱۷

([2]) القرطبي ۵/۱۲

امهاتو (مېندو) څخه دی (¹) ﴿ وَتُنذِرَ يَوْمَ ٱلْجَمْعِ ﴾ چي وو ېروي خلک له ورځي دجمع کېدلو (هغه هیبتناکه ورځ چي خلګ دحساب ورکولو لپاره په یوه ډګر راغونډېږي ﴿ لَا رَيْبَ فِيهِ ﴾ هیڅ شک نشته (په راتلوددغه (قیامت) کي ﴿ فَرِيقٌ فِي ٱلْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي ٱلسَّعِيرِ ﴾ یوه ډله به وي په جنت کي (چي مؤمنان دي) اوبله فرقه به وي په دوزخ کي (چي کافران دي) کله چي دوی له حسابه وروسته په أشقیاوو اوسعداوو ووېشل شي لکه چي الله فرمایي ﴿ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ ﴾ (هود: ١٠٥) ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَجَعَلَهُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً ﴾ اوکه الله اراده فرمایلي وای نوخامخاګرزولي به یې وودغه ګردخلګ یوامت (چي اسلامي امت دی) ضحاک وایي چي دیوه دین پلویان هغه که دضلالت اوګمراهي وای اویادهدایت پیروان (²) ﴿ وَلَٰكِن يُدْخِلُ مَن يَشَآءُ فِي رَحْمَتِهِۦ ﴾ ولیکن ننې باسي (الله) هرهغه چي اراده وفرمایي په رحمت (جنت) خپل کي (اوداچي الله ته معلومه ده چي څوک ضلالت غوره کوي نو بیاهغه دوزخ ته بیایي څکه الله فرمایي:

﴿ وَٱلظَّٰلِمُونَ مَا لَهُم مِّن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴾ اوظالمان چي دي نشته دوی ته هیڅوک دوست اونه مرستندوی (چي دالله له عذابه یې وژغوري ، ابوحیان وایي چي په آیت شریف کي درسول الله لپاره تسلیت دی چي هغه دخپل قوم له لاسه کړاوونه ګالل اوددې سپیناوی دی چي دغه دسعادت او شقاوت چاري الله ته سپارلي شوي دي چاته چي الله پاک نېکمرغي لیکلي وي الله یې پخپل رحمت کي نغاړی اواسلام راوړي (³) ﴿ أَمِ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ ﴾ آیانیولي دي کفاروپرته له الله (نوربتان دوستان) ؟ استفهام دانکار لپاره دی یعني آیادوی له دغو بتانوڅخه مرسته غواړي اوشفاعت ته یې سترګي په لاردي؟

﴿ فَٱللَّهُ هُوَ ٱلْوَلِيُّ ﴾ (که دوی حقاني دوست نیسي) پس الله چي دی هم دی دی دوست (په حقه سره ) مرستندوی مؤمنانولره) ﴿ وَهُوَ يُحْيِ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ اوهم دی مړي ژوندي کوي (دغه بتان دهیڅ څېزتوان نلري نه ګټه رسولای شي اونه هم زیان دفع کولای شي ) ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوهم دی پرهرڅیزباندي قادردی( په حقیقت کي په دوستۍ نیولوسره الله جل جلاله مستحق دی) ﴿ وَمَا ٱخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ اوپه هغه خبره کي چي جګړه کوی تاسي (ای مؤمنانوله دیني او دنیوي چارونه) پس حکم ( فیصله ) دهغه (مفوض دی) الله ته (الله دهغه په باب پخپل کتاب اودخپل نبي په سنت کي حکم فرمایلی دی) ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبِّي ﴾ دغه موصوف پدې صفاتو (مطلق قدیرچي په حقه سره حکم کوي) الله دي رب زما ، قرطبي وایي چي پدې کي اضمارشته یعني (ای محمده ورته ووایه چي دغه ذات چي مړي ژوندي کوي اودمختلفینوپه مینځ کي فیصله کوي دغه زماپروردګاردی ﴿ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ﴾ خاص

---

(¹) کبیرتفسیر ١٤٧/٢٧

(²) القرطبي ٢/١٢

(³) البحرالمحیط ٥٠٩/٧

پرهم ده ماتوكل كړى دى (په ګردوچاروكي) ﴿ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ ﴾ اوخاص هم ده ته رجوع كوم (په تولومشكلاتو او كړاوونوكي له هغه پرته بل هيڅوك نلرم. امام رازي رحمه الله وايي چي دغه عبارت حصرافاده كوي يعني زه په بل چاتوكل نه كوم مګرپه الله يې كوم بل چاته رجوع نه كوم مګرالله ته يې كوم پدې كي دااشاره هم شته چي څوك پرته له الله بل څوك په دوستي نيسي دغه لاره ناسمه ده[1] وروسته الله جل جلاله خپل قدسي جليل صفات چي دربوبيت له مظاهرواو آثاروڅخه دي داسي بيانوي:

﴿ فَاطِرُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ (الله) پيداكونكى دى دآسمانونواودځمكي (بې له پخواني مثاله) ﴿ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَٰجًا ﴾ پيداكړي دي الله (پخپل قدرت) تاسوته له ځانونوستاسي جوړې (له جنسه ستاسي ښځي انساناني ﴿ وَمِنَ ٱلْأَنْعَٰمِ أَزْوَٰجًا ﴾ اوله چارپايانوجوړې (نراوښځه د اوښانو، غوايانو، پسونو اووزوڅخه ) ﴿ يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ ﴾ پيداكوي (زياتوي) تاسي ته په دغه (طريقه دتوالداوتناسل ) سره (كه دغه نرينه او ښځينه مخلوق نه واى نوبه دغه توليداوپيدا ينبت نه وو ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِۦ شَىْءٌ ﴾ نشته په شان د دغه (الله) هيڅ شيز(نه په ذات، نه په صفاتواونه په افعالو كي الله واحداحددى فرد اوصمددى ، غرض له دې څخه دالله پاكي بيانول دي چي الله له مخلوق سره مشابه نه دى كاف دنفى دتاكيدلپاره راغلى دى معناداچي : (ليس مثله شئ) ابن قتيبه وايي عرب خلګ مثل دځان پرځاى راوړي مثلاوايي: ( مثلى لايقال له هذا ) معنا يې داچي (لايقال لي هذا ) دآيت شريف معناداچي: دالله په شان هيڅ شى هم نه دى[2] قرطبي وايي هغه څه چي پدې هكله بايد وربانديعقيده ولرل شي دادى چي الله جل اسمه په خپل عظمت ، كبريا ، پاچهي اواسماء حسنى كي له هيڅ مخلوق سره مشابه نه دى اونه هيڅوك له ده سره مشابهت لري اوهغه صفات چي په شريعت كي دخالق اومخلوق دواړولپاره راغلي په حقيقي معناكي يې ترمينځ مشابهت نشته ځكه چي دقديم صفات ماسوى له صفاتودحادث څخه دي اودمخلوق صفتونه له اعراضواواغراضوڅخه خالي نه وي اوالله تعالى له دې څخه منزه دى . ځينو محققينوويلي دي چي دتوحيدمعنا اثبات دذات دى چي له ذواتوسره مشابه نه وي اونه هم معطل كونكى دصفاتووي واسطي پردي وينابانديدازياته كړي چي وايي: نشته په شان دذات دالله كوم ذات اونشته لكه نوم دده بل نوم اونشته لكه فعل يې بل فعل همدغه دحق دلاري لارويانواهل سنت اوجماعت تولى عقيده ده[3] ﴿ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ﴾ اوهمدغه (الله) دى ښه اورېدونكى (دټولواقوالو دبندګانو) ښه ليدونكى (په ګردواعمالويې ) ﴿ لَهُۥ مَقَالِيدُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ خاص دغه الله لره دي كليګاني (دخزانو) دآسمانونواوځمكي (له بارانونو، نباتاتو اوګردو اړتياوو حاجاتوڅخه) ﴿ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ ﴾ پراخوي رزق روزي لپاره دهرهغه چاچي اراده وفرمايي اوتنګوي يې (په هغه چاچي اراده

---

[1] كبيرتفسير ٢٧ / ١٤٩

[2] دجمل حاشيه په جلالين باندي ٤ / ٥٥

[3] قرطبي تفسير ١٢ / ٨

وفرمايې ) څرنګه چې دالهي حکمت غوښتنه وي ﴿إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ ببشکه دغه (الله) په هرڅيز باندې ښه عالم دی ؛ دغه دپخواني لپاره تعليل دی يعني دالله علم ارت پراخ اوپه ګردوشيانو چاپېر دی الله ته ښه معلوم دی چې دبنده لپاره بدايې ښه ده اوکه فقر ﴿شَرَعَ لَكُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا وَصَّىٰ بِهِۦ نُوحًا وَٱلَّذِىٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ﴾ (مقرر کړی بيان کړی دی (الله) تاسې ته له دين څخه هغه چې وصيت (حکم) يې کړی وو هغه سره نوح ته او هغه څيزچې وحی کړی ووتاته (ای محمده ) يعني ای مؤمنانو تاسو ته الله جل جلاله هغه ښايسته او آسانه حنيف دين تاکلی کوم چې دشريعت خاوندانو اودانبياوو له مشاهيرو څخه لکه نوح او محمد عليهما السلام ته وربانديې حکم شوی وو ﴿وَمَا وَصَّيْنَا بِهِۦٓ إِبْرَٰهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَىٰٓ﴾ او هغه څيزچې حکم کړی وو موږ (دالزام په توګه) په هغه سره ابراهيم ته اوموسی ته اوعيسی ته (له شرائعو او احکامو څخه. صاوي وايې دغه څوتنه پيغمبران يې ځکه ځانګړي يادکړل چې دوی ستر انبياء ,اوالوالعزم دي دمعظمو شرائعو خاوندان دي هريوه ددوی ته نوی شريعت وواوله دوی پرته نور انبياء عليهم السلام هغوی به دپخوانيو دشريعتونو دتعقيب او پالنې لپاره رااستول کېدو اوتل ترتله به دغه چاره دانبياوو په راتلو اودپيغمبرانو په مبعوث کېدلو ټينګېدله يو په بل پسې به راتلو يو شريعت وروسته له بل شريعته پس کېدو ترڅو چې الله تعالی د ولسونو په غوره ولس اودامتونو په چاڼ شوي امت باندې دالړی ختم کړه اوخاتم الانبياء محمد رسول الله يې ورته راواستاوو نومعلومه شوه چې زموږ (شريعت دمحمدي امت) شرع هغه څه دي چې دګردو پخوانيو شرائعو داعتقاداتو او احکامو اصول پکې ځای شوي دي نوځکه الله وفرمايل ﴿أَنْ أَقِيمُوا۟ ٱلدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا۟ فِيهِ﴾ داسې چې قائم کړئ سم ودروئ دين د(توحيد ) اومه اچوئ اختلاف په هغه کې ، قرطبي وايې معناداچې دين تل ترتله سم ودروئ په اصولو کې يې خلاف او اختلاف ته لاره مه ورکوئ ځکه چې هيڅ شريعت له بله مختلف نه دی او هغه توحيد ، لمونځ ، روژه ,زکات ,حج اونوردي دغه ټول دمتحده ملت لپاره يو دين مقرر شوی دی ([1]) ﴿كَبُرَ عَلَى ٱلْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ﴾ دېردروند دی په مشرکينو هغه (څيز) چې ته دوی هغه (توحيد او عبادت) ته بولې ﴿ٱللَّهُ يَجْتَبِىٓ إِلَيْهِ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِىٓ إِلَيْهِ مَن يُنِيبُ﴾ (الله راکاږي خپل ځان ته (غوره کوي) هغه څوک چې اراده وفرمايې (دغوره کولو يې) يعني الله غوره کوي اوچاڼوي هغه کسان چې غواړي يې له بندګانو خپلو لپاره دايمان او توحيد او لارښوونه کوي دهغه چاچې طاعت عبادت کوي او حق دين منې الله دوی ته توفيق ور ملګری کوي او ځان ته يې په رحمت او اکرام سره نژدې کوي ﴿وَمَا تَفَرَّقُوٓا۟ إِلَّا مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ ٱلْعِلْمُ﴾ اونه وو سره مختلف شوي (پخواني خلګ په دين خپل کې) مګر پس له هغه چې راغی دوی ته علم (نومختلف شول) يعني دمختلفوادیانو خلګ له يهودانو اونصرانيانو او نورو څخه ترهغو مختلف نه وو مګر هغه وخت چې دلائل او براهين ورته ددوی دمرسل نبي

---

([1]) دقرطبي تفسير ١٢/١٧

په هکله ښکاره شول بيايې اختلاف وکړ ﴿ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ﴾ له جهته دحسده پخپل مينځ کې(په ظلم عناداوتعدی سره) ﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ که چېرې نه وی يوه خبره چې ړومبی وېلې شوې ده له (جانبه) درب ستاترنښتې په نامه کړی شوي پورې(دتاخيردعذاب ترورځې دقيامته) ﴿ لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ ﴾ نوخامخاحکم به کړی شوی ووپه مينځ ددوی کې(په عذاب دکفاروپه دنيا ) کې ابن کثيروايې معناداچې که چېرې دالله له لورې پخوادمهلت حکم نه وای شوی چې دبندګانوعذاب دې ترقيامته پورې معطل وي نوبه ژرترژره دوی ته عذاب ورکول شوی وو(١) ﴿ وَإِنَّ الَّذِينَ أُورِثُوا الْكِتَابَ مِن بَعْدِهِمْ ﴾ (اوبېشکه هغه کسان چې ورته په ميراث ورکړل شوی دی کتاب) يعني اوبېشکه ځيني هغه اهل کتاب چې درسول الله په زمانه کې اوسېدل وروسته له خپلواسلافوڅخه ﴿ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴾ (خامخاپه داسې شک کې دي له دې (کتابه) چې په اضطراب کې اچونکي دي) يعني دوی له تورات اوانجيل څخه په سخت شک اوحيرت کې دي دوی پخپل دين اوکتاب باورنلري ايکې يوازې دخپلوپلرونو اواسلافوتقليدکوي کوم علمي سند اوبرهان يې نشته ، بيضاوي وايې معناداچې دوی پخپل کتاب علم نه لري اونه پرې پوهېږي نه يې وربانديې په حقه ايمان راوړی دوی مطلقًا له هغه څخه په شک کې دي(٢) ﴿ فَلِذَٰلِكَ فَادْعُ وَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ ﴾ (پس دغه (توحيد ) ته پس وبوله (ای محمده دغه خلګ) اومحکم ولاړاوسه (پدې دعوت) لکه چې تاته امرحکم کړی شويدی) يعني ددغې تفرقې اواختلاف له وجهې چې اهل کتاب وربانديې اخته دي تاته موحکم وکړ ای محمده!چې خلګ اسلامي حنيف دين ته راوبولې هغه دين چې ترتاله مخه ګردوانبياوو ته موږ ورباندې حکم کړی وو نوهمغه دين ته بلنه ورکړه اوپه سمه سيخه لاره يې مستقيم اوسه لکه څرنګه چې دې رب درته حکم کړيدی ﴿ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ ﴾ اومکوه متابعت دخواهشاتوددوی يعني دمشرکانودباطلوخواهشاتومتابعت مکوه کله چې دوی تادتوحيدله دعوت څخه راګرځوي ﴿ وَقُلْ آمَنتُ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِن كِتَابٍ ﴾ اووايه ( ای محمده ! دوی ته ) ايمان مې راوړی دی پرهغه چې نازل کړی دی الله له (جنسه دسماوي ) کتاب څخه . امام رازي وايې يعني ايمان په ټولو آسماني کتابونومې راوړی څکه چې کتابيان پخپل دين کې متفرق دي په ځينويې نه راوړي (٣) ﴿ وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ بَيْنَكُمُ ﴾ اوامرحکم کړی شوی دی ماته چې عدل وکړم ستاسوپه مينځ کې (په حکم کولوکې ابن جزي وايې معنا داچې کله تاسوماته خپل خصومتونه وړاندې کړی ماته ددې حکم شوی چې عادلانه فيصلې

---

(١) دابن کثيرمختصر ٣ /٢٧٢
(٢) دبيضاوي تفسير ٢ /١٧٣
(٣) کبيرتفسير ٢٧ /١٥٨

درته واوروم(١) ﴿ٱللَّهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾ الله رب زموږاورب ستاسو دی (نولازم دی چي موږ يې په وحدانيت ومنواوعبادت يې پرځای کړو ﴿لَنَآ أَعْمَٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَٰلُكُمْ﴾ موږته ده (جزاء د) اعمالوزموږ اوتاسي ته ده (جزاء د) اعمالوستاسو(که خيروي اوکه شر نه موږته ستاسو نېکي اوحسنات گټه رسوي اونه مو هم سيئات موږته تاوان کوي. ابن کثيروايي دغه دبرائت معنا ورکوي لکه چي الله فرمايي: ﴿وَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل لِّي عَمَلِي وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ أَنتُم بَرِيٓـُٔونَ مِمَّآ أَعْمَلُ وَأَنَا۠ بَرِيٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ﴾ (يونس ٤١)(٢) ﴿لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ﴾ نشته هيڅ جګړه زموږ اوستاسوپه مينځ کي ؛ ځکه چي حق ځرګند دی داسي ځرګندلکه چي لمرپه تکنده غرمه کي وي خوتاسوعناداوسرغړونه کوی ﴿ٱللَّهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا وَإِلَيْهِ ٱلْمَصِيرُ﴾ الله به جمع وکړي زموږ اوستاسو ترمينځ (لپاره دفيصلې) اوخاص همده ته بيا ورتلل دي(چي هرچاته په خپل عمل که خيروي اوکه شرجزاء ورکړي) صاوي وايې چي حق واضح او ځرګند دی دلائل ښکاره دي له عنادڅخه پرته بل هيڅ مانع نشته اوله عنادسره بياهيڅ دليل اوجدال نه ځائېږي الله به ګردخلګ په قيامت کي سره يوځای کړي اوهرچاته به پخپلوکړو وړو جزاء ورکړي(٣) ﴿وَٱلَّذِينَ يُحَآجُّونَ فِي ٱللَّهِ﴾ اوهغه کفار چي مخاصمې جګړې کوي په (دين د) الله کي (چي خلګ له ايمانه څخه راوګرزوي ﴿مِنۢ بَعْدِ مَا ٱسْتُجِيبَ لَهُۥ﴾ وروسته له هغه چي قبول والی کړی شوی دی (حکم د) دغه الله ته (اوپه دين کي يې داخل شوي دی) ﴿حُجَّتُهُمْ دَاحِضَةٌ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ خصومت حجت د دوی باطل دی په نزد درب ددوی (ثبوت نلري ابن عباس وايې چي دغه دبني اسرائيلو ديوې ډلي په هکله نازل شوی چاچي به خلګ له اسلام څخه ګرزول اوپه باطلودلائلوبه يې ګمراه کول(٤) ﴿وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ﴾ اوپردوی غضب دی (دالله) اوشته دوی ته عذاب ډېرسخت (په آخرت کي) ﴿ٱللَّهُ ٱلَّذِيٓ أَنزَلَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ﴾ الله هغه (لوی ذات) دی چي نازل کړی يې دی (قرآن) (ټول الهي کتابونه ) په حقه سره (ټول احکام اخباراو تشريعات يې په قطعي توګه رښتيادي ﴿وَٱلْمِيزَانَ﴾ اوتله يې هم مقرره کړي ده(دعدل اوانصاف) دغه دابن عباس وينادوه مفسرين کرام وايې چي عدل ته يې ځکه ميزان وواي ځکه چي پرتله باندي عدل اوانصاف ځرګندېږي نودلته تسميه دشي ده په نوم دسبب سره ﴿وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ ٱلسَّاعَةَ قَرِيبٌ﴾ اوڅه شي خبرکړی يې ته (ای مخاطبه !) ښايي چي قيامت دي نژدې وي؟ نوپه هوښيارسړي دالازم دي چي له راتلوېې ووېرېږي اوڅان ورته چمتوکړي. ابوحيان وايي چي دآيت شريف له پخواني

---

(١) التسهيل لعلوم التنزيل ١٩/٤

(٢) مختصرابن کثير .

(٣) حاشية الصاوي ٣٣/٤

(٤) البحرالمحيط ٥١٣/٧

سره دپیوستون وجه داده چي دقیامت ورځ دحساب ورځ ده نولکه چي ویلي یې دي الله تاسو ته دعدل اومساوات کولو امرکړی دی ترپخوا اله دې چي تاسو ته هغه ورځ راشي کومه چي دحساب ورځ ده اوهلته ستاسو اعمال تلل کېږي (۱) ﴿ يَسْتَعْجِلُ بِهَا ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا ﴾ تلواره کوي په راتلو ددغه (قیامت) هغه کسان چي نه راوړي ایمان په هغه (قیامت) اوداستهزاء په توګه وایې چي کله به وي قیامت؟! ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مُشْفِقُونَ مِنْهَا ﴾ اوهغه کسان چي ایمان یې راوړی دی وېرېدونکي دي له دغه (قیامته چي راشي) ﴿ وَيَعْلَمُونَ أَنَّهَا ٱلْحَقُّ ﴾ اوپدې پوهېږي چي بېشکه دغه قیامت حق دی ﴿ أَلَآ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُمَارُونَ فِى ٱلسَّاعَةِ لَفِى ضَلَٰلٍۭ بَعِيدٍ ﴾ واوره خبردارشه بېشکه هغه کسان چي مخاصمه جګړې کوي په راتللو دقیامت کي خامخا دوی په ګمراهي لیري کي دي (له حقه ځکه چي دوی دالله دعدل اوحکمت څخه انکار کوي

الله تعالی فرمایي:

﴿ ٱللَّهُ لَطِيفٌۢ بِعِبَادِهِۦ يَرْزُقُ مَن يَشَآءُ ۖ وَهُوَ ٱلْقَوِىُّ ٱلْعَزِيزُ ﴿١٩﴾ مَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ ٱلْءَاخِرَةِ نَزِدْ لَهُۥ فِى حَرْثِهِۦ ۖ وَمَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ ٱلدُّنْيَا نُؤْتِهِۦ مِنْهَا وَمَا لَهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِن نَّصِيبٍ ﴿٢٠﴾ أَمْ لَهُمْ شُرَكَٰٓؤُا۟ شَرَعُوا۟ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنۢ بِهِ ٱللَّهُ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةُ ٱلْفَصْلِ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ ۗ وَإِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢١﴾ تَرَى ٱلظَّٰلِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا كَسَبُوا۟ وَهُوَ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۗ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فِى رَوْضَاتِ ٱلْجَنَّاتِ ۖ لَهُم مَّا يَشَآءُونَ عِندَ رَبِّهِمْ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَضْلُ ٱلْكَبِيرُ ﴿٢٢﴾ ذَٰلِكَ ٱلَّذِى يُبَشِّرُ ٱللَّهُ عِبَادَهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ۗ قُل لَّآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا إِلَّا ٱلْمَوَدَّةَ فِى ٱلْقُرْبَىٰ ۗ وَمَن يَقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهُۥ فِيهَا حُسْنًا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿٢٣﴾ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا ۖ فَإِن يَشَإِ ٱللَّهُ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ ۗ وَيَمْحُ ٱللَّهُ ٱلْبَٰطِلَ وَيُحِقُّ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿٢٤﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى يَقْبَلُ ٱلتَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِۦ وَيَعْفُوا۟ عَنِ ٱلسَّيِّـَٔاتِ وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٢٥﴾ وَيَسْتَجِيبُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَيَزِيدُهُم مِّن فَضْلِهِۦ ۚ وَٱلْكَٰفِرُونَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ﴿٢٦﴾ ۞ وَلَوْ بَسَطَ ٱللَّهُ ٱلرِّزْقَ لِعِبَادِهِۦ لَبَغَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَٰكِن يُنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ۚ إِنَّهُۥ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرٌۢ بَصِيرٌ ﴿٢٧﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى يُنَزِّلُ ٱلْغَيْثَ مِنۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوا۟ وَيَنشُرُ رَحْمَتَهُۥ ۚ وَهُوَ ٱلْوَلِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴿٢٨﴾ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦ خَلْقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيهِمَا مِن دَآبَّةٍ ۚ وَهُوَ عَلَىٰ جَمْعِهِمْ إِذَا يَشَآءُ قَدِيرٌ ﴿٢٩﴾ وَمَآ أَصَٰبَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوا۟ عَن كَثِيرٍ ﴿٣٠﴾ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِى ٱلْأَرْضِ ۖ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٣١﴾ ﴾ الشوری: ۱۹ – ۳۱

---

(۱) پخوانی مرجع .

## مناسبت:

کله چې الله تعالی د قیامت یادونه وکړه او هغه څه یې بیان کړل چې ابرار مؤمنان او فجار کافران به ورسره مخامخ کېږي نو د لته یې ورپسې دا زیاته کړه چې الله په بندګانو لطف کونکی دی ژر تر ژره ګناهګارانو ته عذاب نه ورکوي سره له دې چې د عذاب مستحق هم وي او بیا یې د متقیانو وروستی برخه لیک او همداسې د مجرمینو بیان وکړ کله چې په آخرت کې به ورسره مخامخ کېږي هلته چې د عدل او جزاء ځای دی.

## لغتونه:

(لطیف) نېکي، نرمي او مهرباني کونکی (حرث الآخرة) حرث په اصل کې په ځمکه کې تخم اچولو ته وایې چې بیا محصولات ورکوي وروسته بیا د اعمالو په ثمراتو او نتائجو کې مستعمل شوی دی او استعاره پکې ده (الفصل) پخوانی فیصله (یقترف) ترسره کوي (روضات) د (روضة) جمع او هغه هغه ځای ته وایې چې ډېر ګلان، ونې مېوې او منظرې لري (الغیث) باران ته وایې ځکه یې غیث بولي چې هغه د خلګو په ښمر ښېګڼه ورځي (قنطوا) ناهیلي شول (بث) خپاره کړي تیت کړي (معجزین) د الله له عذابه تښتېدونکي

## تفسیر:

﴿ اللَّهُ لَطِيفٌ بِعِبَادِهِ ﴾ الله ډېر لطف کونکی ښه مهربان دی په بندګانو خپلو (چې د دوی له ګناهونو سره سره ورباندې د احساناتو، ښېګڼو او خیراتونو باران اوروي. مقاتل وایې چې لطیف په بر او فاجر باندې دی چې هغوی سره له ګناهونو له لوږې څخه نه هلاکوي (۱) ﴿ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ ﴾ (رزق روزي ورکوي (الله) هغه چاته چې اراده وفرمایې) یعنې پراخوي رزق د هغه چا چې ورته خوښه یې شي. قرطبي وایې دا چې چاته ډېر مال دولت ورکوي په دې کې حکمت دی ترڅو چې ځیني، ځیني نورو ته اړوي او ترڅو چې بډای په فقیر و ازمویې او فقیر په بډای وازمویي لکه چې الله تعالی فرمایې ﴿ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً أَتَصْبِرُونَ ۗ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا ﴾ (الفرقان ۲۰) ﴿ وَهُوَ الْقَوِيُّ ﴾ او هم دی قوي زورور زبردست (قادر په هر څه دی) ﴿ الْعَزِيزُ ﴾ ډېر غالب دی (چې څوک ورباندې غلبه موندلای نشي، وروسته څرنګه چې وې فرمایل الله ډېر لطف کونکی په بندګانو دی او ډېر احسان ورکونکی دی نو دې ته اشاره ده چې پر دوی باندې لازم دي چې انسانان څو چې په دغه ژوندکې وي د نېکمرغي د اسبابو او خیر ښېګڼې لارې ولټوي وېې فرمایل: ﴿ مَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْآخِرَةِ نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ ﴾ هر څوک چې اراده لري (په عمل سره ثواب) کښت د آخرت نو زیادت کوو ده ته په کښت دده کې (چې حسنات یې مضاعف کوو) ﴿ وَمَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا ﴾ (او هر څوک چې وي دی اراده لري (په عمل سره متاع) کښت د دنیا نو ور به یې کړو ده ته له هغه څخه) یعنې او هر څوک چې په خپل عمل سره یوازې د ژوندانه متاع او نعمت غواړي

---

(۱) تفسیر القرطبي ۱۲/ ۱۸

نوخيني له هغه چي ده ته مقدردی وربه يې کړو ﴿ وَمَا لَهُۥ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِن نَّصِيبٍ ﴾ اونه به وي ده ته په آخرت کي هيڅ برخه (له ثوابه اونعمته څخه) زمخشري وايې چي هغه عمل يې چي عامل يې دگټي ترلاسه کولو لپاره کوي حرث وباله اوپدې کي مجازدی اوددې ترمينځ يې توپيرهسي وکړڅوک چي دآخرت لپاره عمل کوي نېکي اوحسنات به يې څوچنده شي او څوک چي يې ددنيالپاره عمل کوي هغه ته به يوه څني ورکړی شي نه گردهغه چي دی يې غواړي (۱) اوپه التسهيل کي وايې دآخرت کښت عبارت دی له عمل کولولپاره دآخرت اوهمداسي ددنياکښت اودغه دځمکي له کروندې څخه استعاره شوی څکه چي کروندگرکله چي کرونده وکري دخپل زيار دمحصول اوگټي انتظارکوي (۲) وروسې الله دکفارو عبادت چي غيرالله ته يې کوي داسي غندي فرمايې: ﴿ أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمۡ يَأۡذَنۢ بِهِ ٱللَّهُۚ ﴾ (آيادي دوی لره شريکان چي سازکړي دوی لپاره هغوی ته له دينه هغه (څيز) چي حکم ندی کړی په هغه سره (الله) استفهام دتقرير اوتوبيخ لپاره دی يعني آياددغوکفارولپاره له شيطانانو اوبتانو څخه شريکان شته چي دوی ته يې دشرک اوعصيان هغه لاري چاري جوړي کړي چي الله ورباندي امرنه دی کړی؟ شيخ زاده وايې چي د تشريع نسبت بتانو ته مجازي دی اودغه نسبت دفعل سبب ته دي اودغه بيي دين دمشاکلت په توگه ونوماوو اوپدې کي تهکم دی(۱) ﴿ وَلَوۡلَا كَلِمَةُ ٱلۡفَصۡلِ لَقُضِيَ بَيۡنَهُمۡۗ ﴾ اوکه چېري نه وای (ويلي شوي) خبره دفيصلې (په ازل کي)(دتأخيردعذاب)نوخامخا حکم به کړی شوی ووپه مينځ ددغو (کفارواومؤمنانو) کي (په ورکولودعذاب ظالمانو او ورکولود ثواب مؤمنانوته ژرترژره ﴿ وَإِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ (اوبېشکه ظالمان چي دي شته دوی ته عذاب ډېردردونکی ) يعني کفارو هغوکسانوته چي په خپل ځان يې په کفراوعصيان ظلم کړی وي هغوی لره دردناک عذاب دی. ﴿ تَرَى ٱلظَّٰلِمِينَ مُشۡفِقِينَ مِمَّا كَسَبُواْ ﴾ وبه وينې ته په قيامت کي ظالمان وېرېدونکي له جهته (دجزاء) دهغو (بديو ) چي کړي يې دي (په دنياکي) ﴿ وَهُوَ وَاقِعُۢ بِهِمۡۗ ﴾ خامخاچي جزابه پر دوی پرېوتونکي وي (که وېرېږي اوکه نه) ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فِي رَوۡضَاتِ ٱلۡجَنَّاتِۖ ﴾ اوهغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه عملونه په (خوراښو ) باغونود جنت کي به وي (په لوړو مانيو کي به اوسي) ﴿ لَهُم مَّا يَشَآءُونَ عِندَ رَبِّهِمۡۚ ﴾ وي به دوی ته (په نزد درب ددوی هغه نعمتونه چي ددوی خوښ وي ابن کثير وايې چي دغه اوهغه څومره زيات توپيرلري؟ هغه ظالمان کسان خوراپه ذلت ، هوان کي اوهغه مؤمنان چي په باغچودجنان کي دي اقتول خوندونه دخوراک ،څښاک نعمتونه يې په واک کي وي څکه الله فرمايې ﴿ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَضۡلُ ٱلۡكَبِيرُ ﴾ دغه (مذکور کرامت) همدغه دی فضل ډېرلوی (چي هيڅ څيزورسره نه پرتله کېږي) قرطبي وايې معناداچي داسي

(۱) حاشية البيضاوي ۳ /۲۷۵

۲ مختصر ابن کثير ۳-۲۷۵

فضل دی چي ستاينه يې امکان نلري اونه يې دصفت داندازې تاکنه عقل کولای شي کله چی يې الله (کبير) بولی نو څوک يې اندازه کولای شي ؟(١) ﴿ ذَٰلِكَ ٱلَّذِى يُبَشِّرُ ٱللَّهُ عِبَادَهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ دغه (ثواب) هغه دی چي الله زېری کوي(په هغه سره) په هغو بندګانو چي ايمان يې راوړی دی او کړی يې دي ښه (عملونه متقيان دي ترخوبې خوښي زياته اودلقاء شوق يې بشپړشي ﴿ قُل لَّآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا إِلَّا ٱلْمَوَدَّةَ فِى ٱلْقُرْبَىٰ ﴾ (ووايه (ای محمده دوی ته !) چي نه غواړم په دغه (پيغام رسولو) اجر(مزدوري) ليکن دوستي غواړم په قرابت خپلوي کي) يعني ای پيغمبره دوی ته ووايه چي زه په دغه تبليغ درسالت له تاسوڅخه مزدوري نه غواړم چي مال راکړئ بلکه داهيله لرم چي دخپلوي خاطرمي وساتئ اوتکليف رانکړئ څوچي خپل رسالت په ښه توګه ابلاغ کړم. ابن کثيروايې چي زه په دغه تبليغ اونصيحت باندي له تاسي څخه دمال دولت غوښتنه نه کوم خوداغواړم چي تاسوموقع راکړئ ترڅودالله رسالت ورسوم اوماته په لحاظ دخپلوي لرلوتکليف مه راکوئ(٢)عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وايې: معناداچي له تاسودبل څه انتظار نلرم يوازي داچي زمااوستاسوترمينځ چي کومه خپلوي (قرابت) شته هغه وپالئ اوماته تکليف مه راکوئ ﴿ وَمَن يَقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهُۥ فِيهَا حُسْنًا ﴾ اوهرڅوک چي وکړي نېک کارونه زيادت به کړو موږ ده ته په هغه نېک کار کي ښايست (ثواب به يې مضاعف کړو) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴾ (بېشکه الله ښه مغفرت کونکی (دمعصيت) ښه قبلونکی دطاعت دی) يعني الله دګناهکارانومعصيت ښښي اودمحسنانودا حسان قدرداني کوي د هغه په نزد دهيچاعمل نه ضائع کېږي څکه نود برګناهونه هم ښښي اولږنېکي هم څوچنده کوي ﴿ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا ﴾ آيا وايې (داکفار) چي له خپله ځانه تړلي دي (محمد) پرالله دروغ؟ (چي قرآن يې له خپله ځانه جوړکړي؟. ابوحيان وايې چي استفهام مشرکانوته دانکاراوتوبيخ لپاره دی چي څرنګه داسي وایاست ؟ يعني داسي سړی خوله دي سره نه ښايې چي ددروغوتور ورباندي ولګول شي تاسوخودهغه په رښتنولي اوامانت اعتراف کوی !(٣) ﴿ فَإِن يَشَإِ ٱللَّهُ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ ﴾ (که اراده وفرمايې الله نومهربه کېږدي په زړه ستا) يعني که چېري داسي وي لکه چي دوی تور لګوي چي ته په الله دروغ تړې نوالله به ستاپه زړه مهرکېښولی وو ترڅوچي قرآن دي هېرشي خوتاافترآء نه ده کړي څکه الله مرسته درسره کوي) ابن کثيروايې ددغه هسي مثال دی لکه چي الله فرمايې: ﴿ وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ ٱلْأَقَاوِيلِ لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِٱلْيَمِينِ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ ٱلْوَتِينَ ﴾ (الحاقة: ٤٤-٤٦) ابوالسعودوايې چي په آيت شريف کي ددې استشهاددی چي: ددوی ويناباطله ده څکه که چېري (محمدصلی الله عليه وسلم) په الله دروغ تړلای نوله دې څخه به يې قطعًامنع کړی ووپه زړه به يې مهر لګولی ووچي هيڅ معناله معانيوڅخه يې په زړه نه پاتي کېدای اونه يې په يوه توري له توروڅخه ګړېدلای شوای

---

(١) تفسيرالقرطبي ٢٠/١٢
(٢) دابن کثيرمختصر ٢٧٥/٣
(٣) البحرالمحيط ٥١٢/٧

﴿ وَيَمۡحُ ٱللَّهُ ٱلۡبَٰطِلَ ﴾ اومحوه کوي الله باطل (په بشپړه توګه ) ﴿ وَيُحِقُّ ٱلۡحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦٓۚ ﴾ اوثابتوي حق په خپلو کلماتو سره (چي منزل کلام اومبرم قضاء ده . ابن کثیروايي چي د (کلماته) معنا حجج اوبراهین دي[1]

﴿ إِنَّهُۥ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ ببشکه دغه (الله) بنه عالم دی په خبرودسینود (زړونو) باندي هم. قرطبي وايي مقصدداچي که ته له خانه سره هم داسي جوړه کړې چي په الله افتراء وکړې نو الله ته معلومه ده په زړه به دي مهرولګوي[2] ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِي يَقۡبَلُ ٱلتَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهِۦ ﴾ (اوالله هغه (مهربان ذات) دی چي قبلوي توبه له بندګانو خپلو ) دغه د الله له لوري يوډول امتنان دی چي پخپل فضل اوکرم سره دبندګانو توبه مني کله چي له ګناه څخه لاس واخلي اوپه رښتوني نيت اواخلاص توبه ګارشي ﴿ وَيَعۡفُواْ عَنِ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ﴾ او عفو کوي له بدوکارونو (يعني دصغيره اوکبيره ګناهونوبښنه کوي هرچاته چي يې اراده شي ﴿ وَيَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُونَ ﴾ او ورمعلوم دی هرهغه کارچي تاسي يې کوی (له خيراوشرڅخه ) ﴿ وَيَسۡتَجِيبُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ اوقبلوي الله (دعاء)دهغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه (عملونه) امام رازي وايي چي دلته لام حذف شوی دی اصل يې داچي: (ويستجيب للذين آمنوا ) او ددې مثال هغسي دی لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَإِذَا كَالُوهُمۡ ﴾ (المطففين۳) چي په اصل کي (کالوا لهم) وو ﴿ وَيَزِيدُهُم مِّن فَضۡلِهِۦۚ ﴾ اوزيادت کوي دوی ته له مهرباني خپلي (زيات له هغه چي دوی غوښتي وي اوزيات له هغه چي دوی يې مستحق وي څکه الله جواد ، براوکريم دی ﴿ وَٱلۡكَٰفِرُونَ لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٞ ﴾ اوکافران چي دي شته دوی ته عذاب دېرسخت (ددوزخ) ﴿ وَلَوۡ بَسَطَ ٱللَّهُ ٱلرِّزۡقَ لِعِبَادِهِۦ لَبَغَوۡاْ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ اوکه چېري الله ارته (پراخه ) کړي وي روزي لپاره دټولوبندګانو خپلو نوخامخاسرکښي به کړي وه دوی په ځمکه کي (په فسادخپرولوګناهونوکولوسره څکه چي بډايې دطغيان اوسرکښي موجب ګرزي. ابن کثيروايي معناداچي که چېري الله جل جلاله ددوی له اړتيازيات څه ورکړي وای نوبه يې دوی سرغړوني اوبغاوت ته اړايستلي وو اوځينوبه په ځينو نورو باندي تکبرکاوو. قتاده وايي بهترينه روزي هغه ده چي تاخوندي ساتي اوطغيان ته دي نه راکاږي[3] ) ﴿ وَلَٰكِن يُنَزِّلُ بِقَدَرٖ مَّا يَشَآءُۚ ﴾ وليکن نازلوي (روزي الله دوی ته) په هغي اندازې سره چي اراده وفرمايي (اودحکمت اومصلحت مقتضاوي لکه چي په قُدسي حديث شريف کي راځي: ببشکه ځيني له بندګانوزماهغه دي چي له بډايي پرته بل څه ورسره نه ښايي که چېري يې زه مسکين کړم نودهغه دين به مي ورباندي له مينځه وړی وي اوببشکه ځيني له بندګانوزماهغه څوک دي چي له مسکنته اوفقره پرته بل څه ورسره وړنه دي اوکه چېري هغه ته پراخ رزق

---

[1] دابو السعود تفسير ۵ /۳۴
[2] دقرطبي تفسير ۱۲ /۲۵
[3] دابن کثير مختصر ۳ /۲۷۲

ورکړم نودین به یې له مینځه لاړشي(۱) ﴿ إِنَّهُۥ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرُۢ بَصِيرٞ ﴾ (بېشکه الله پخپلو بندګانو ښه خبردارذی ښه لیدونکی دی) یعني ددوی په احوالو او مصالحو پوهېدونکی دی چاته یې ورکوي او له چاڅخه یې منع کوي چاته روزي پراخوي چاته یې تنګوي هغسي سم چي دالله د حکمت غوښتنه وي ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِي يُنَزِّلُ ٱلۡغَيۡثَ مِنۢ بَعۡدِ مَا قَنَطُواْ ﴾ او الله هغه لوی ذات دی چي اوروي باران وروسته له هغه چي نا امیده شي (خلک له اورښته) ﴿ وَيَنشُرُ رَحۡمَتَهُۥۚ ﴾ او غوړوي خوروي رحمت (باران) خپل (په ټولو ځایونو کي په بندګانو خپلو) ﴿ وَهُوَ ٱلۡوَلِيُّ ٱلۡحَمِيدُ ﴾ او همدی دی کارساز د هر ستایلی شوی (ثناویل شوی) په هره ژبه څکه چي ګردوته یې نعمتونه ورکړي دي ﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦ خَلۡقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ او ځیني له دلائلو (د قدرت) دالله پیدا کول دآسمانونو او دځمکي (په دغه بدیع شکل سره) دي ﴿ وَمَا بَثَّ فِيهِمَا مِن دَآبَّةٖۚ ﴾ او پیدا کول دهغو اشیاوو دي چي خواره کړي یې په آسمانونو او ځمکه کي له خوځېدونکو (مخلوقاتو ابن کثیر وایې چي دغه پرښتو، پېریانو، انسانانو او ټولو حیواناتو ته شامل دی چي مختلف شکلونه، رنګونه، جنسونه او انوع لري (۲) مجاهد وایې معنایې انسانان او پرښتې دي ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ جَمۡعِهِمۡ إِذَا يَشَآءُ قَدِيرٞ ﴾ او دغه (الله) په جمع کولو ددوی (محشرته) هر کله چي اراده وفرمایي ښه قادر دی ﴿ وَمَآ أَصَٰبَكُم مِّن مُّصِيبَةٖ فَبِمَا كَسَبَتۡ أَيۡدِيكُمۡ ﴾ او هغه څه چي رسېږي تاسي ته (ای مؤمنانو) له کوم مصیبت پس (له شامته) دهغو اعمالو دي چي ستاسو لاسونو کړي دي. جلال وایې چي تعبیر یې په لاسونو وفرمایو څکه چي د هر کارونه په لاسونو تر سره کېږي (۳) ﴿ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖ ﴾ او عفوه کوي الله له ډېرو ګناهونو جزا ورباندي نه درکوي که په ګردو ګناهونو یې ستاسي مؤاخذه کولای نو هلاک شوي به وای په حدیث شریف کي راغي چي: بنیادم ته هیڅ تکلیف نه رسېږي لکه داغزي جګېدل، پښه ښوئېدل او درګونو او ښتل مګرد ده دګناه په سبب وي او هغه ګناهونه چي الله یې عفوه کوي خوراډېر دي (۴) ﴿ وَمَآ أَنتُم بِمُعۡجِزِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِۖ ﴾ (او نه یی تاسي عاجزکونکي دالله (ای مشرکانو په انفاذ داحکامو خپلو سره) په ځمکه کي) یعني او ای مشرکانو تاسو دالله له قضا او عذابه څخه په ټوله ځمکه کي تېښتېدونکي او خلاصېدونکي نه یاست ﴿ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِيّٖ وَلَا نَصِيرٖ ﴾ او نشته تاسي ته غیر له الله هیڅوک ولي، دوست کار جوړونکی او نه مدد کونکی (چي دالله عذاب او انتقام درڅخه دفع کړي.

---

(۱) همدا اسي ابن کثیر له انس رضی الله عنه څخه مرفوع روایت کړی دی.

(۲) دابن کثیر مختصر ۳ /۲۷۸

(۳) دجلالین تفسیر ۴ /۳۸

(۴) البحر المحیط ابن کثیر دغه حدیث مرسل بولي چي ابي حاتم له حسن څخه روایت کړی دی.

فائده:
کوم مصیبتونه چي خلگوته رسېږي هغه دگناهونو درژولولپاره وي اوچي انبیاووعلیهم السلام ته رسېږي نو دهغوی ددرجاتو دلوړولو لپاره وي څکه دوی له گناهونو څخه معصوم دي.

تنبیه:
خيني علماء وايې چي داليري نه دي چي په سياراتو اوعلوي عالم كي پرته له ملائكودى نور مخلوقات هم شتون ولري چي دځمكني مخلوقاتوسره دي مشابه وي اوداسي حيوانات دي پكې وي چي له دغوحيواناتوسره ورته وي لكه دافلاكودلائل اونښي نښانې چي ښيي چي په مريخ كي دي ژوندوي اوپه دې آيت شريف يې استدلال كړى چي ﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦ خَلْقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيهِمَا مِن دَآبَّةٍ ﴾ دآيت ترپايه پوري. زه وايم چي احتمال لري په دې ارته فضاء كي دي له انسانه پرته نورژوندي مخلوقات وي مګردانسان په هكله قطعي باوردادى چي پرته له دغي ځمكني كړې بل خاى نشته چي الله فرمايې ﴿ قَالَ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴾ (الاعراف ۲۵).

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلْجَوَارِ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ﴿٣٢﴾ إِن يَشَأْ يُسْكِنِ ٱلرِّيحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلَىٰ ظَهْرِهِۦٓ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٣٣﴾ أَوْ يُوبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوا۟ وَيَعْفُ عَن كَثِيرٍ ﴿٣٤﴾ وَيَعْلَمَ ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ ﴿٣٥﴾ فَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَىْءٍ فَمَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٣٦﴾ وَٱلَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَٰٓئِرَ ٱلْإِثْمِ وَٱلْفَوَٰحِشَ وَإِذَا مَا غَضِبُوا۟ هُمْ يَغْفِرُونَ ﴿٣٧﴾ وَٱلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٨﴾ وَٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَابَهُمُ ٱلْبَغْىُ هُمْ يَنتَصِرُونَ ﴿٣٩﴾ وَجَزَٰٓؤُا۟ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۖ فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٤٠﴾ وَلَمَنِ ٱنتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِم مِّن سَبِيلٍ ﴿٤١﴾ إِنَّمَا ٱلسَّبِيلُ عَلَى ٱلَّذِينَ يَظْلِمُونَ ٱلنَّاسَ وَيَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٤٢﴾ وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ ﴿٤٣﴾ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن وَلِىٍّ مِّنۢ بَعْدِهِۦ ۗ وَتَرَى ٱلظَّٰلِمِينَ لَمَّا رَأَوُا۟ ٱلْعَذَابَ يَقُولُونَ هَلْ إِلَىٰ مَرَدٍّ مِّن سَبِيلٍ ﴿٤٤﴾ وَتَرَىٰهُمْ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا خَٰشِعِينَ مِنَ ٱلذُّلِّ يَنظُرُونَ مِن طَرْفٍ خَفِىٍّ ۗ وَقَالَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِنَّ ٱلْخَٰسِرِينَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ أَلَآ إِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ فِى عَذَابٍ مُّقِيمٍ ﴿٤٥﴾ وَمَا كَانَ لَهُم مِّنْ أَوْلِيَآءَ يَنصُرُونَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن سَبِيلٍ ﴿٤٦﴾ ٱسْتَجِيبُوا۟ لِرَبِّكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِىَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ ۚ مَا لَكُم مِّن مَّلْجَإٍ يَوْمَئِذٍ وَمَا لَكُم مِّن نَّكِيرٍ ﴿٤٧﴾ فَإِنْ أَعْرَضُوا۟ فَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ۖ إِنْ عَلَيْكَ إِلَّا ٱلْبَلَٰغُ ۗ وَإِنَّآ إِذَآ أَذَقْنَا

ٱلْإِنسَٰنَ مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ بِهَا ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَإِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ كَفُورٌ ﴿٤٨﴾ لِّلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ يَهَبُ لِمَن يَشَآءُ إِنَٰثًا وَيَهَبُ لِمَن يَشَآءُ ٱلذُّكُورَ ﴿٤٩﴾ أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَٰثًا ۖ وَيَجْعَلُ مَن يَشَآءُ عَقِيمًا ۚ إِنَّهُۥ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴿٥٠﴾ ۞ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ ٱللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَآئِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِىَ بِإِذْنِهِۦ مَا يَشَآءُ ۚ إِنَّهُۥ عَلِىٌّ حَكِيمٌ ﴿٥١﴾ وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا ۚ مَا كُنتَ تَدْرِى مَا ٱلْكِتَٰبُ وَلَا ٱلْإِيمَٰنُ وَلَٰكِن جَعَلْنَٰهُ نُورًا نَّهْدِى بِهِۦ مَن نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا ۚ وَإِنَّكَ لَتَهْدِىٓ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٥٢﴾ صِرَٰطِ ٱللَّهِ ٱلَّذِى لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۗ أَلَآ إِلَى ٱللَّهِ تَصِيرُ ٱلْأُمُورُ ﴿٥٣﴾ ﴾ الشورى: ٣٢ – ٥٣

## مناسبت:

کله چي الله پخپل وحدانيت باندی دځمکي، آسمان پيدايښت اوپه هغوکي دبېشمېره مخلوقاتو په پيداکولو اوخپرولو ځيني دلائل يادکړل ورپسې يې ديوبل دليل چې دقادرحکيم ذات الله تعالی په وجود شاهدي ورکوي راوړ چې هغه غټي کښتۍ (بېړۍ) دي چي غرونوته په لوی والي اوپلن والي کي ورته دي دالله په قدرت سره داوبوپه سردرومي اوخورادرانه بارونه، خوراکي توکي اورزق روزي يې بارکړي دي په پای کي سورت دوحی په اثبات اودقرآن په ربښتنولي پای ته رسېږي.

## لغتونه:

(الجوار) دجارية جمع اوبېړۍ ته وايې ځکه يې جارية بولي چي په اوبوکي روانه وي (کالأعلام) دعلم جمع اوهغه سترا وچت غره ته وايې (رواکد) دراکد جمع او ولاړ ته وايي (محص) دخلاصون اوتېښتي ځای (يوبقهن) له (اوبق) څخه اخيستل شوی اوهلاکولوته وايې (الفواحش) دفاحشة جمع دی اوهغه څه ته ويل کېږي چي په بدي اوقبح کي وروستني سرحدته رسېدلی وي لکه زنا، قتل، شرک اونور (نکير) هغه منکرکېونکی دنازلېدونکي عذاب (عقيما) له عقم څخه اخيستل شوی اوشنډوالي ته وايې.

## تفسير:

﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلْجَوَارِ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ﴾ اوځيني له دلائلو (دقدرت دالله روان جهازونه په بحر سيند کي په شان دغرونو (په لويوالي کي) ﴿ إِن يَشَأْ يُسْكِنِ ٱلرِّيحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلَىٰ ظَهْرِهِۦٓ ﴾ که اراده وفرمايې (الله) نوو به دروي دغه باد (خوځونکی) پس وبه ګرزي (دغه جهازونه) ولاړپه شاددغه بحر (چي له ځايه به حرکت نه کوي) ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴾ بېشکه په دغه (حرکت دبېړيو) کي خامخا لوی دلائل (دقدرت) دي دپاره دهرصبرکونکي (په کړاوونو، مصيبت) شکرکونکي (په نعمت، سوکالي کي) صاوي وايې معنادا چي په مصيبتونوډېرصبرکونکی اوپه نعمتونو ډېرشکرکونکی وي[1] ابوحيان وايې داچي په بحرکي يې دبېړيويادونه وفرمايله ځکه چي پدې کي خوراستردقدرت دلائل شته په دې چي اوبه نرۍ اوشفاف جسم دی چي دروند څېزېکي دوبېړي اوبېړۍ پداسي حال کي چي درانه بارونه

[1] حاشية الصاوی ۳۹-۴

پکي باروي اوستراجسام لري الله تعالى په اوبو کي داخواک اينبی دی چي له ډوبېدلو څخه يې ژغوري اوبيايې بادونه دهغوی دروانولواوبېولولپاره سبب پيداکړي دي اوکله چي الله پاک وغواړي هغه ودروي نوبادونه کرار کړي بيابېړۍ له ځايه هم نه خوځېږي (۱) ﴿أَوْ يُوبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوا﴾ (يابه هلاک (ډوب) کړي دغه (جهازونه) په سبب دهغوگناهونوچي کړي دي ( راکبينويې) يعني که الله اراده وفرمايې دغه بادونه به توپاني کړي اوبېړۍ به ډوبي کړي سره له سپرليوپه سبب دگناهونوددوی ﴿وَيَعْفُ عَن كَثِيرٍ﴾ اوعفو کوی (الله)له ډيرو(گناهونو څخه يې نه غرقوی) ﴿وَيَعْلَمَ الَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِيٓ ءَايَٰتِنَا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ﴾ اوچي پوه شي هغه کسان چي مجادلې جگړې کوي په آيتونوزموږکي چي نشته دوی ته هيڅ ځای دخلاصېدلو (له عذابه دالله څخه. قرطبي وايې معناداچي: کفارپه دې وپوهېږي کله چي يې ددرياب په مينځ کي طوفاني بادونه گردچاپېرشي چي دالله ۰له عذابه دخلاصېدلواوتښتېدلوځای هډونشته اوداسي دفع کونکی هم نهويني چي دالله له عذابه يې وژغوري نوبه يوازي همدغه الله ته عبادت کوي(۲) ﴿فَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا﴾ پس هغه چي درکړی شوی دی تاسي ته (ای مخاطبانو ) له څه څيزه (لکه دنيوي اسباب) متاع دژوندددنيا دي (چي زاتلېږي څه موده تاسي ورباندي خونداخلی ) ﴿وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ اوهغه ثواب چي د الله په نزدخيرغوره او ډېرباقي (تلپاتي) دی (نوتاسي فاني دنياته په باقي ترجيح مه ورکوئ) ﴿لِلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ دپاره دهغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (اوددنيا نعمتونوته يې شاکړي ده) ﴿وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾ او(خاص) پخپل رب باندي توکل کوي (په گردوچاروکي) ﴿وَٱلَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَٰٓئِرَ ٱلْإِثْمِ﴾ او (دپاره د هغوکسانوچي ځان ساتي دوی له غټوگناهونوڅخه (لکه شرک، قتل اوعقوق دوالدينو ) ﴿وَٱلْفَوَٰحِشَ﴾ اونوروقباحتونه. ابن عباس وايې دفواحش معنازناوې دی ﴿وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ﴾ او هرکله چي په غضب شي هم دوی ببښنه کوي. صاوي وايې له مکارم الاخلاق څخه يودادی چي دغضب په وخت کي سړی حلم اوزغم خپل کړي لاکن پدې شرط چي دمېراني برخلاف نه وي اونه هم کله چي ددديني واجباتواوحرماتوهتک اوپايمالي وشي نوپه دې وخت کي بايدله غضب څخه کار واخيستلی شي دحلم اوزغم مظاهره کول سم نه دي. امام شافعي رحمه الله وايې: ( څوک چي په همداسي چارو کي غضب ته وهڅول شي خوبياهم غضب نکوي هغه بوده دی) اوشاعروايې: چي دځوان زغم اوصبرپرته له خپله ځايه جهل اوناپوهي ده(۳) ﴿وَٱلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ﴾ (او(دپاره ) دهغوکسانوچي اجابت کوي (داحکامو ) درب ددوی) يعني هغوی چي درب بلني ته لکه توحيداوعبادت لبيک وايې بيضاوي ليکي:چي دغه

---

(۱) البحرالمحيط ۷/۵۲۰

(۲) القرطبي ۱۲/۳۳

(۳) حاشية الصاوي على الجلالين ۴/۴۰

دانصارو رضوان الله عليهم په باب نازل شوی دی کله چي رسول الله ﷺ دوی ايمان ته راوبلل هغوی يې اجابت وکړ(۱) ﴿ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ اوسم درويي (اداکوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ (پخپلو وختونو کي سره له شروطو او آدابو يې) ﴿ وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ ﴾ او کارددوی په مشوره سره وي په مينځ ددوی کي (تلواره نه کوي) ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَـٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴾ او خيني دهغو شيانو چي موږ دوی ته ورکړي نفقه کوي يې (په لاره دالله کي په نيکی سره يې دالله مخلوق ته ورکوي) ﴿ وَٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَابَهُمُ ٱلْبَغْىُ هُمْ يَنتَصِرُونَ ﴾ او (لپاره د) هغو کسانو کله چي ورسېږي دوی ته ظلم تعدی (دکفاروله لوري) نودوی انتقام اخلي (له متجاوزينو استعمارګرانو څخه (نه ورته تسلمېږي) ابراهيم نخعي رحمه الله وايي مؤمنانوله دې څخه کرکه کوله چي ځان سپېتاني ته ورکړي او فاسقان وربانديي زړه ورشي (۲) ابوالسعود وايي چي دغه دمؤمنانو دزړورتيا او غښتلتوب صفت دی چي ورو سته له نورو اوصافو يې راوړی دی او دغه له بښنې سره منافي نه دی څکه چي هريو پخپل ځای کي ستايلی شوی دی(۳) ﴿ وَجَزَٰٓؤُا۟ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ﴾ او جزاء دبدکار بدکاردی په شان دهغه (نه زيات) امام رازي رحمه الله وايي: کله چي الله وفرمايل: ﴿ وَٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَابَهُمُ ٱلْبَغْىُ هُمْ يَنتَصِرُونَ ﴾ نو ورپسې يې زياته کړه چي کسات اخيستل بايد دهغه تجاوز په مثل وي زيات نه وي او سيئة چي يې وبلله له دې جهته چي چاته ورسېږي هغه يې بد ګڼي (۴) ﴿ فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِ ﴾ (پس هرچاچي عفوه وکړه اوسوله يې وکړه پس اجردده پر الله دی) يعني چاچي ظالم ته عفوه وکړه او دځان او هغه ترمينځ يې صلح وکړه الله به په دې ورته ستراجرورکړي ابن کثيروايي چي الله تعالی په عدل سره قصاص رواکړی دی او فضل يې مستحب فرمايلی دی چي هغه عفوه دی نو څوک چي عفووکړي الله يې دغه عفوه نه ضائع کوي او اجر ورکوي لکه چي په حديث شريف کي راځي(ومازادالله تعالی عبدابعفو الاعزا) (۵) الله تعالی بنده ته په بښنه (عفو) سره عزت ورزياتوي ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ بېشکه الله ظالمان نه خوښوي (بلکه الله ﷻ له هغوسره چي په ظلم شروع کونکي وي بغض او کرکه لري) ﴿ وَلَمَنِ ٱنتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِۦ ﴾ او خامخا هغه څوک چي واخلي حق خپل پس له مظلوم کېدلو دده ﴿ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِم مِّن سَبِيلٍ ﴾ پس دغه کسان (چي خپل حق يې اخيستی دی) نشته پر دوی هيڅ لياره (دملامتيا او مؤاخذې څخه دوی خپل رواکسات اخيستی دی) ﴿ إِنَّمَا ٱلسَّبِيلُ عَلَى ٱلَّذِينَ يَظْلِمُونَ ٱلنَّاسَ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چي لاره د(معاتبت) په هغو کسانو ده چي (ابتدآء په) ظلم کوي په خلګو باندي (تجاوزېږي کوي) ﴿ وَيَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ

---

(۱) دبيضاوي تفسير۲ /۱۷۵
(۲) القرطبي ۱۲ /۳۹
(۳) ابوالسعود ۵ /۳۷
(۴) دابن کثير مختصر ۳ /۲۸۰
(۵) دصاوي حاشية ۴ /۴۷

﴿ٱلْحَقِّ﴾ اوسرکښي تجاوزکوي په ځمکه کي په ناحقه سره ، په تکبراوجبروت باندي فسادګناوي کوي اودخلګوپه ځان اومال باندي تېری اوتعدی کوي ﴿أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ دغه (ظالمان)شته دوی ته عذاب دردناک (په سبب دظلم اوتجاوزددوی) ﴿وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ﴾ اوخامخا هغه څوک چي صبروکړي (په ظلم اوآزاراودالله له وجي کسات نه اخلي) اوبښنه يې وکړه ، بېشکه دغه (صبر، غفران اوعفوه) خامخاله عزم الاموراوغوره کارونوڅخه ده (کوم چي الله جل جلاله يې مارېښنه کړي او ورباندي تاکيدي فرمايلی دی. صاوي وايې صبريې داهتمام اوترغيب لپاره مکرر راوړی دی اوداچي وبښي دصبرآخره خاتمه (عاقبت )ستايلی شوی (محمود ) دی([1]) ﴿وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن وَلِيٍّ مِّنۢ بَعْدِهِۦ﴾ اوهرهغه څوک چي الله يې ګمراه کړي پس نشته ده ته هيڅوک ولي دوست کار جوړونکی وروسته له(ګمراه کولود )الله نه (چي حق ته يې لاربښوونه وکړي) ﴿وَتَرَى ٱلظَّٰلِمِينَ لَمَّا رَأَوُاْ ٱلْعَذَابَ﴾ او وينې به ته ظالمان (کافران) هرکله چي ووينې دوی عذاب ددوزخ (په ورځ دقيامت کي) ﴿يَقُولُونَ هَلْ إِلَىٰ مَرَدٍّ مِّن سَبِيلٍ﴾ وايي به دوی آياشته بيرته تللو(ددنياته) کومه لاره ؟(چي بيرته دمافات تدارک وکړو) قرطبي وايې دوی به غواړي چي دنياته ستانه شي ترڅودالله طاعت وکړي خوخبره به يې نه اوربدل کېږي ([2]) ﴿وَتَرَىٰهُمْ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا﴾ او وينې به ته دوی چي وړاندي کولای به شي په دغه اور ﴿خَٰشِعِينَ مِنَ ٱلذُّلِّ﴾ چي وېرېدونکي به وي له خواري (اهانته) ﴿يَنظُرُونَ مِن طَرْفٍ خَفِيٍّ﴾ ګوري به دوی(دغه اورته) په پټي کتني (له ډېره هيبته به دسترګوترکو نجانووړته ګوري لکه چي يوڅوک دوژلولپاره په ميدان درول شوی وي هغه توري ته په سمه توګه له وېري کتلای نشي. ابن عباس وايې چي دوی به په مړاوسترګوپه سپکاوي ګوري قتاده وايې معناداچي دوی به له ډېري وېري په غلاکتنه کوي([3]) ﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ ٱلْخَٰسِرِينَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓاْ أَنفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ﴾ اووايې به هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي (داسي چي) بېشکه زيانکاران هغه کسان دي چي خپلوځانونو او خپلوکورنيو ته يې زيان رسولی دی په ورځ دقيامت کي (په خلودفی الجحيم اوحرمان عن النعيم سره) ﴿أَلَآ إِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ فِى عَذَابٍ مُّقِيمٍ﴾ واوره خبرداَرشه چي بېشکه ظالمان په همېشني عذاب کي دي ﴿وَمَا كَانَ لَهُم مِّنْ أَوْلِيَآءَ يَنصُرُونَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ اونه به وي دغوکفاروته هيڅوک له دوستانوچي مددوکړي له دوی سره (په دفع کولودعذاب کي) غيرله الله څخه (لکه چي دوی به په دنياکي هيله لرله) ﴿وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن سَبِيلٍ﴾ اوهرهغه څوک چي الله يې ګمراه کړي نه به وي ده ته هيڅ لاره (حق ته په

---

([1]) دقرطبي تفسير ۱۲/ ۴۵
([2]) دقرطبي تفسير ۱۲/ ۴۶
([3]) کبيرتفسير ۲۷/ ۱۷۸

دنیا کښې او جنت ته په آخرت کې) (ځکه چې دده پر مخ د نجات لاره تړل شوې ده. ابن کثیر وايي ځوک چې الله گمراه کړي د خلاصون لاره يې نشته ([1]) ﴿ ٱسۡتَجِيبُواْ لِرَبِّكُم ﴾ اجابت وکړئ (ای خلگو) رب ستاسو ته (په ایمان او توحید سره) طاعت يې وکړئ) ﴿ مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا مَرَدَّ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِۚ ﴾ (پخوا له هغه چې راشي (هغه) ورځ چې نشته هيڅ رد او دفع هغې (ورځې) لره له (جانبه د) الله) يعني پخوا له هغه چې راشي هغه هيبتناکه ورځ چې هيڅوک يې رد ولای نشي ځکه چې دافع او مانع يې نشته ﴿ مَا لَكُم مِّن مَّلۡجَإٖ يَوۡمَئِذٖ ﴾ نه به وي تاسي ته هيڅ د پټېدلو (تښتېدلو) ځای په دغه ورځ کې ﴿ وَمَا لَكُم مِّن نَّكِيرٖ ﴾ او نه به وي تاسي ته هيڅ لاره د انکار (يعني تاسو لره به انکار کونکی نه وي چې ستاسو دغه نازلېدونکي عذاب منکرو گڼي) او ابوالسعود وايي معنا داچې تاسوته به د انکار لاره نه وي چې له خپلو کړي گناهونو څخه يې وکړی ځکه هغه ستاسو په اعمالنامو کې ليکلي شوي دي او ستاسي اندامونه در باندي شاهدي وايي([2]) ﴿ فَإِنۡ أَعۡرَضُواْ ﴾ پس که مخ وگرزاوو دغو مشرکانو (له ايمانه او د الله لار ښوونه يې ونه منله) ﴿ فَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ عَلَيۡهِمۡ حَفِيظًاۖ ﴾ پس نه يې لېږلی موږ ته پردوی ساتونکی (د اعمالو د دوی او محاسب پر دوی باندي ﴿ إِنۡ عَلَيۡكَ إِلَّا ٱلۡبَلَٰغُۗ ﴾ نشته پر تا مگر يوازي تبليغ (د احکامو د دوی او تا دغه کار کړی دی. ابوحيان وايي په آيت شريف کې د رسول الله لپاره تسليت او تأنيس دی او د دوی په هکله د رسول الله د خفگان او غم غلطول او ليري کول دي. وروسته له دې الله تعالی د انسان طبيعت ښيي چې د هغه په خټه کې د نعمتونو کفران اغښلی دی فرمايي: ﴿ وَإِنَّآ إِذَآ أَذَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ مِنَّا رَحۡمَةٗ فَرِحَ بِهَاۖ ﴾ او بېشکه کله چې موږ وڅکوو (جنس) د انسان ته له خپله لوري کوم رحمت (لکه روغتيا، بډايي او امن نو پر هغه خوشحاله شي او تکبر او غرور خپل کړي) ﴿ وَإِن تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةُۢ بِمَا قَدَّمَتۡ أَيۡدِيهِمۡ فَإِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ كَفُورٞ ﴾ (او که ورسېږي ده ته کوم ډول بدي (لکه ناروغي، قحطي، مصيبت، کړاو) په سبب د هغو بديو چې پخوا لېږلي دي لاسونو د دوی بېشکه چې (جنس د) انسان ناشکره دی) يعني نهايته کفران کونکی دی نعمتونه هېروي او مصيبتونه يادوي. صاوي وايي داچې د نعمت په پيل کې يې (اذا) او د بلاء په سر کې يې (ان) راوړ دي ته اشاره ده چې نعمتِ خامخا شته او بلا د غسي نه ده کله کله وي ځکه چې د الله رحمت تر غضب ړومبی دی([3]) امام فخر رازي وايي د دنيا نعمتونه که څه هم خورا لوی او ستر دي په نسبت د اخروي نعمتونو لکه څاڅکی د درياب په وړاندي هسې دي ځکه نو الله تعالی د هغوی په هکله څکل ياد کړل نو الله داسي وفرمايل چې انسان که څه هم په دومره لږ نعمتونو هم بسياشي و رباندي خوشحاله کېږي او د غرور تکبر سبب يې شي او داسي انگېري لکه چې گردي هيلي او آرزوگاني يې ترسره

---

([1]) د ابن کثير مختصر ١٣/ ١٨٢

([2]) د ابو السعود تفسير ٥/ ٣٧

([3]) د صاوي حاشيه ٤/ ٤٧

شوي وي اودغه دده دهغي ناپوهي لامل (نتيجه ) ده كوم چي ددنيااوآخرت دحال په هكله يې لري[۱])

﴿ لِّلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ﴾ (خاص الله لره دی سلطنت پاچهي دآسمانونواودځمكي پيدا كوي (الله) هرهغه شی چي اراده وفرمايې) يعني الله تعالی دگردوكائناتومالک دی هغه كه علوي دي اوكه سفلي دی الله په هغوی كي څرنگه چي غواړي په خلق اوايجادكي تصرف كوي. مقصدله آيت شريف څخه دادی چي انسان دي پخپل مال دولت او جاه اوجلال باندي نه تېروزي پدې دي وپوهېږي چي گرده پاچهي يوازي له الله سره ده دالله په يدقدرت كي د آسمانونواوځمكي دتصرفاتوكليگاني دي چاته مال دولت وركوي له چانه يې اخلي دالله دحكم اوفيصلې مانع ځوک نشته ﴿ يَهَبُ لِمَن يَشَآءُ إِنَٰثًا ﴾ ببښي لپاره دهرهغه چاچي اراده وفرمايې لوڼي (بې زامنو ) ﴿ وَيَهَبُ لِمَن يَشَآءُ ٱلذُّكُورَ ﴾ اوببښي الله لپاره دهرهغه چاچي اراده يې شي زامن (پرته له لوڼو ) ﴿ أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَٰثًا ۖ وَيَجْعَلُ مَن يَشَآءُ عَقِيمًا ﴾ ياجوړه وركوي (نارينه اوښځينه) ځامن اولوڼي (دواړه برخي) اوگرزوي هرهغه ځوک چي ( الله) اراده وفرمايې شنډ(يعني ځيني نارينه گان الله بې اولاده شنډوگرځوي اولادېې نه زېږي اوځيني ښځي الله شنډي وگرزوي اولادېې نه كېږي. بيضاوي وايې معناداچي دبندگانواحوال داولادپه هكله مختلف گرزوي څرنگه چي دالله دمشيت غوښتنه اومقتضاء وي هغسي كوي ځينوته يوازي يويونوع نارينه ياښځينه اولاد وركوي اوځينوته دواړه وركوي ځيني بياشنډوي هيڅ اولادذوذات يې نه زېږي[۲]) غرض له آيت څخه په كائناتوكي دالله جل جلاله دقدرت نفاذدی هرډول چي يې خوښه شي هغسي كوي څكه نوفرمايې: ﴿ إِنَّهُۥ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴾ ببشكه دغه الله دی ښه عالم (په فائدې دهرچا ) ښه قادر(په هرشي باندي چي اراده وفرمايې) يعني هغه څه كوي چي دحكمت يې غوښتنه اومصلحت پكې وي. ابن كثيروايې چي الله خلگ څلورډوله وگرزول ځيني دلوڼو پلرونه، ځيني دزامنو،ځيني ددواړو اوځيني بې اولاده خلگ چي هيڅ ذوذات يې نه وي فسبحان العليم القدير[۳]) وروسې الله تعالی وحی يادوي اودهغې اقسام بيانوي فرمايې: ﴿ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ ٱللَّهُ إِلَّا وَحْيًا ﴾ اونه ښايې لپاره دهيڅ بشرداچي له ده سره الله خبري وكړي مگرپه وحی سره(په خوب كي ياپه الهام سره څكه چي دانبياووعليهم السلام خوبونه حق دي لكه چي ابراهيم عليه السلام ته واقع شوي وه ﴿ إِنِّىٓ أَرَىٰ فِى ٱلْمَنَامِ أَنِّىٓ أَذْبَحُكَ ﴾ (الصافات ۱۰۲) ﴿ أَوْ مِن وَرَآئِ حِجَابٍ ﴾ ياوروسته له پردې څخه (لكه چي له موسی عليه السلام سره يې خبري كړي وې) ﴿ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِىَ بِإِذْنِهِۦ مَا يَشَآءُ ﴾ ياولېږي الله كوم رسول استاذی (له ملائكولكه جبرئيل عليه السلام په وحی راوړلونبيانوته ) په التسهيل كي وايې چي الله جل جلاله په آيت كي دابيان فرمايلی دی چي دده خبري له بندگانوسره په درې ډوله ترسره كېږي يوداچي په الهام يامنام سره ورته

---

([۱]) كبيرتفسير ۲۷ /۱۸۴

([۲]) بيضاوي ۲ /۱۷۶

([۳]) دابن كثيرمختصر ۳ /۲۸۳

وحی وکړي بل داچي دپردې له هاخوا کلام ورواوروي، دریم داچي دپرښتې په وسیله ورته وحی راواستوي اودغه وروستی یې په انبیاوو علیهم السلام پسي ځانګړی دی اودوهمه یې په موسی علیه السلام اومحمدرسول الله پسي خاص دی اولومړی ډول یې دانبیاوو اولیاوولپاره ځانګړی دی (۱)صاوي وایې چي الهام له انبیاوو پرته اولیاوو ته هم کېږي خو داولیاوو له الهام سره کله کله شیطاني اوهام هم ملګري کېږي ځکه چي دوی لکه انبیاء علیهم السلام غوندې معصوم نه دي دانبیاوو علیهم السلام الهام له شیطان څخه محفوظ اوڅرګند شوی دی(۲) ﴿إِنَّهُۥ عَلِيٌّ حَكِيمٌ﴾ بېشکه دغه (الله) ډېرپورته غالب دی (په نازلولو دوحی کي) ښه حکمت والادی (په صنعت خپل کي) یعني الله ډېرپورته لوړدی له صفاتو دمخلوقاتو څخه ښه حکمت والادی پخپل فعل اوصنع کي چي ګرد کارونه یې دحکمت په غوښتنه ترسره کېږي. ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا﴾ اوهمداسي (لکه چي وحی موکړې وه له تاپرته نوروانبیاووته) وحی رالېږلې موږتاته (ای محمده!) روح (قرآن) په امرحکم خپل سره، قرآن ته یې ځکه روح وویل ځکه چي پدې سره دجهل اوناپوهي له مرګه څخه ژوندون پیدا کېږي اومالک بن دیناربه ویل ای دقرآن خلګو قرآن ستاسو په زړونو کي څه کرلي دي ؟ ځکه قرآن دزړونو زرغونونکی پسرلی دی لکه باران چي دځمکي زرغونونکی وي(۳) ﴿مَا كُنتَ تَدْرِى مَا ٱلْكِتَٰبُ وَلَا ٱلْإِيمَٰنُ﴾ (نه وې ته (ای محمده )چي پوهېدې به چي کتاب څه دی (اونه پوهېدې په دې چي څه شی دي شرائع اوایمان) یعني ای محمده! ته دقرآن اووحی ترنزول له مخه دایمان په شرائعو تفصیلاً نه پوهېدې ﴿وَلَٰكِن جَعَلْنَٰهُ نُورًا نَّهْدِى بِهِۦ مَن نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا﴾ ولیکن ګرزولی دی موږدغه (قرآن) داسي یوه رڼا چي سمه لاره ښیوو په هغه سره هغه چاته چي اراده وفرمایو موږ له بندګانو خپلو(چي متقیان وي) ﴿وَإِنَّكَ لَتَهْدِىٓ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ اوبېشکه خامخاښودل کوې ته (خلګوته) په طرف دمستقیمي لارې (چي اسلام دی) ﴿صِرَٰطِ ٱللَّهِ ٱلَّذِى لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ﴾ سمي لارې دهغه الله ته چي خاص ده لره دي هرهغه شیان چي آسمانونو کي دي(له علویاتو )اوهرهغه شیان چي په ځمکي کي دي(له سفلیاتو. سره له آسمانونو اوځمکي خلقًا، ملکًا او عبیدًا) ﴿أَلَآ إِلَى ٱللَّهِ تَصِيرُ ٱلْأُمُورُ﴾ واوره خبردار اوسه! خاص الله ته بېرته ګرزي ټول کارونه (دمخلوقاتو په قیامت کي نوبه په عادلانه حکم سره ددوی ترمینځ فیصله کوي

**بلاغت:**

پدې سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لندیزیې دادی:

(۱) التسهیل لعلوم التنزیل.
(۲) دصاوي حاشیه.
(۳) دقرطبي تفسیر ۱۲/۵۵

۱ - مرسل مجازچي فرمايي: ﴿ لِتُنذِرَ أُمَّ ٱلْقُرَىٰ ﴾ خکه وېرول خوأهل دأم القرى ته دى اوپدې کي داحتباک صنعت هم شته هغه داچي له هريوه څخه هغه حذف کړي چي په بل کي يې ثابت کړي دي تقديريې داچي ترڅوأم القرى له عذابه ووېروي او ووېروي خلک په ورځ دقيامت کي.

۲ - دمبالغې له صيغې سره پرله پسې مؤکدات راوړل لکه ﴿ أَلَآ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ چي هغه د(الا) کلمه اودفصل ضمير (ان) دی.

۳ - دطباق صنعت د ﴿ ٱلْجَنَّةِ .... ٱلسَّعِيرِ ﴾ ترمينځ اود ﴿ يَبْسُطُ .... وَيَقْدِرُ ﴾ اود ﴿ ذُكْرَانًا .... وَإِنَٰثًا ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۴ - سلبي طباق لکه ﴿ يَسْتَعْجِلُ بِهَا ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا ۖ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مُشْفِقُونَ مِنْهَا ﴾.

۵ - استعاره چي فرمايي ﴿ مَن كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ ٱلْـَٔاخِرَةِ ﴾ په آيت شريف کي يې دآخرت عمل دکروندګرله کروندې سره تشبيه کړی ترڅوکرونده وکړي اوميوې دانې يې تولي کړي اودغه تمثيلي استعاره اوله باريکو استعاراتوڅخه يوه ده.

۶ - دمقابلې صنعت لکه. ﴿ وَيَمْحُ ٱللَّهُ ٱلْبَٰطِلَ وَيُحِقُّ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦٓ ﴾.

۷ - عطف دعام پرخاص باندي چي فرمايي: ﴿ يُنَزِّلُ ٱلْغَيْثَ مِنۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوا۟ وَيَنشُرُ رَحْمَتَهُۥ ﴾ باران خاص اورحمت عام دی.

۸ - مرسله مجمله تشبيه پدې آيت کي ﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلْجَوَارِ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ﴾ يعني لکه غرونه په لويوالي اوپلن والي کي.

۹ - دتقسيم صنعت لکه داچي ﴿ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ يَهَبُ لِمَن يَشَآءُ إِنَٰثًا وَيَهَبُ لِمَن يَشَآءُ ٱلذُّكُورَ أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَٰثًا ﴾.

۱۰ - اشتقاقي جناس چي پدې آيت کي دی. ﴿ وَمَآ أَصَٰبَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ ﴾.

۱۱ - دمبالغې صيغې چي پدې آيت کي شته ﴿ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴾ يعني دېرصبرکونکی ، دېر شکر کونکی.

۱۲ - مشاکلت لکه داچي ﴿ وَجَزَٰٓؤُا۟ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ﴾ دوهمي ته هم (سئية )وويل شوه چي له لومړي سره په صورت کي مشابهت لري

۱۳ - دفواصلوتوافق اودغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي اوپه قرآنکريم کي زښته دېر راغي.

دالله جل جلاله په مرسته دالشورى سورت تفسيربشپړشو.

***

# د(الزخرف)سورت مکي دي او نه اتيا آيتونه لري

## دسورت په وړاندي:

دالزخرف سورت مکي دی اوداسلامي عقيدې اساسات دايمان تاداوونه (تهدابونه) چي ايمان په وحدانيت، رسالت اوبعث اوجزادي څېړي لکه چي به همداډول نورومکي سورتونوهم څېړل
سورت دوحی مصدروړاندي کوي اوددغه قرآن رښتنولي بيانوي کوم چي الله پاک په أمي پيغمبرباندي په خورافصيحه ژبه اوڅرګند بيان باندي نازل کړي دي ترڅوددغه عربي نبي لپاره ښکاره معجزه وي
بيادالله په قدرت اووحدانيت باندي دلائل راوړي کوم چي په دغه پراخوکائناتوکي په آسمانونو، ځمکو، غرونو، خوړونو، بحرونواو رودونوکي ترسترګوکېږي اووروسته هغه پرېمانه اوربښت چي له آسمانه را اوري يادوي بيادبېړيويادونه کوي چي داوبوپه سررواني وي اوهغه چارپايان چي الله دبشرلپاره اہل اوتابع کړي ترڅويې له غوښوخوړلواوسپرليوڅخه ګټه واخلي دهغوی يادونه کوي
وروسته سورت دجاهليت دوخت بت پرستي، خرافات اوناولي دودونه بيانوي چي دوی خو پخپله له لونوسره کرکه لرله اونفرت يې ترې کاوومګردالله لپاره يې لوڼې په حماقت اوناپوهي غوره کړي وي دوی به ويل چي ملائکة دالله لوڼي دي نوآيتونه نازل شول چي ددغوباطلوخرافاتواو انحرافاتومخه ونيسي اوخلګ بيرته فطرت ته اولومړنيوقطعي حقائقوته وګرزوي سورت په لنډه توګه دابراهيم خليل الله دعوت اوبلني ته کتنه کوي هغه چي مشرکان ګومان کوي دوی دابراهيم عليه السلام په دين اودهغه له ذوذاته دي نوآيتونه ددوی ددغي دعوې تکذيب کوي اوداخبره په ډاګه کوي چي ابراهيم عليه السلام هغه لومړنی څوک وو چي دبتانوله عبادت کولوڅخه بېزاره اوهغه يې نه منل
له دې په هيسي سورت دهغي ناروااشتباه ترديد کولوته لېږدي کوم چي مشرکانودرسول الله صلی الله عليه وسلم درسالت په هکله لرله دوی داسي وړانديزکاووچي قرآنکريم بايددمال دولت او جاه اوجلال په خاوندنازل شي نه په هغه چاچي لکه محمدصلی الله عليه وسلم يتيم ،فقيراوبېوزله وي نوآيتونه نازل شول داخبره يې سپينه کړه چي مرتبه اومال دانساني کرامت معيارنه دی اونه دسترو منصبونولپاره داستحقاق اووړتيا سبب کېدای شي بلکه دنياپخپله حقيره اوسپکه خواره ده دومره خواره حقيره که الله غوښتي وای ګرده به يې کفاروته وربښلي اومؤمنانوته به يې هيڅ هم نه وه ورکړي.
بياوروسته په سورت کي دموسی عليه السلام اوفرعون کيسه راځي دهغه پخواني حقيقت تاکيدکوي همدغه فرعون دی چي پخپل سلطنت اوځواک باندي په موسی عليه السلام باندي فخر کوي لکه چي قريشي سرداران پخپل جهل کي غوپه دي اوپه رسول الله صلی الله عليه السلام باندي ځان لوړ ګڼي او وروستی پايله اونتېجه به يې لکه دفرعون غرقېدل دمشرکانوهلاکت هم وي.
په پای کي دآخرت اوقيامت دځينوکړاوونو،حالاتواومشکلاتويادونه کوي اودبدمرغه مجرمينو حال بيانوي چي ددوزخ په اورکي به اوري رااوړي.

**تسمیه او نومول یې:**

دغه سورت ته ځکه دالزخرف سورت ویل کیږي چې پدې کې د دنیا دزائلیدونکي او فاني کیدونکي متاع خورا په زړه پوري مثال راغلی دی چې دغه د دنیا فاني کیدونکي نعمت مزخرف ځل او بل کیدونکي دي چې د هر خلګ وربانډي تېروزي خو دالله په نزد دغو ماشي د وزر قیمت هم نلري ځکه یې الله پاک ابرارو، فجارو ټولو ته ورکوي او اخیار اشرار ګرد څني نفع اخلي خو آخرت بیا الله پاک له متقیانو پرته بل چاته نه ورکوي دنیا فاني کیدونکي او آخرت تلپاتي او باقي دی.

***

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ حمٓ ﴿١﴾ وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ ﴿٢﴾ إِنَّا جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٣﴾ وَإِنَّهُ فِي أُمِّ الْكِتَابِ لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ حَكِيمٌ ﴿٤﴾ أَفَنَضْرِبُ عَنكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَن كُنتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِينَ ﴿٥﴾ وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِن نَّبِيٍّ فِي الْأَوَّلِينَ ﴿٦﴾ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن نَّبِيٍّ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٧﴾ فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا وَمَضَىٰ مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨﴾ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ﴿٩﴾ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا وَجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٠﴾ وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ فَأَنشَرْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴿١١﴾ وَالَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ مَا تَرْكَبُونَ ﴿١٢﴾ لِتَسْتَوُوا عَلَىٰ ظُهُورِهِ ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ إِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَتَقُولُوا سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ ﴿١٣﴾ وَإِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ ﴿١٤﴾ وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا ۚ إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ مُّبِينٌ ﴿١٥﴾ أَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ وَأَصْفَاكُم بِالْبَنِينَ ﴿١٦﴾ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿١٧﴾ أَوَمَن يُنَشَّأُ فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ ﴿١٨﴾ وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ إِنَاثًا ۚ أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ ۚ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ وَيُسْأَلُونَ ﴿١٩﴾ وَقَالُوا لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ مَا عَبَدْنَاهُم ۗ مَّا لَهُم بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۖ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٢٠﴾ أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِّن قَبْلِهِ فَهُم بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ ﴿٢١﴾ بَلْ قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِم مُّهْتَدُونَ ﴿٢٢﴾ وَكَذَٰلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِم مُّقْتَدُونَ ﴿٢٣﴾ ۞ قَالَ أَوَلَوْ جِئْتُكُم بِأَهْدَىٰ مِمَّا وَجَدتُّمْ عَلَيْهِ آبَاءَكُمْ ۖ قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُم بِهِ كَافِرُونَ ﴿٢٤﴾ فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٥﴾ ﴾ الزخرف: ۱ ـ ۲۵

**لغتونه:**

(صفحا) اعراض او مخ اړولو ته وایي (بطشا) په قوت نیولو او کسات اخیستلو ته ویل کیږي (مهدا) فراش (انشرنا) مو ر ژوندي کړي نشور هغې احیاء ته وایي چې وروسته له مرګه وي (تستوو) چې تاسي سپاره

شي(مقرنين) طاقت لرونكي(كظيم) له غمه ډک (يخصمون) دروغ وايي (أمة) دين اولاره (مترفوها) مترف په نعمتونوكي ډوب اوهوسا، سوكاله ته ويل كېږي

تفسير:

﴿ حمٓ ﴾ له مقطعاتو تورو څخه دی چي د قرآنكريم په اعجاز تنبيه فرمايي ﴿ وَٱلۡكِتَٰبِ ٱلۡمُبِينِ ﴾ (قسم دی په دغه كتاب روښانه بيانونكي ) يعني زما دي قسم وي په دغه روښانه كتاب چي څرګندونكى دى دحق له باطله څخه اودهدايت له ضلالت څخه همداسي ښكاره كونكى دى مؤمنانوته دګردوهغواحكامو اوشرعي دلائلوچي دوی ورته اړتيالري ﴿ إِنَّا جَعَلۡنَٰهُ قُرۡءَٰنًا عَرَبِيّٗا ﴾ بېشكه موږ ګرزولى دى دغه (كتاب) قرآن په عربي ژبه ، دغه مقسم عليه دى يعني موږ دعربو په لغت نازل كړى دى چي دفصاحت بلاغت په كمال اوبشپړتوب ، محكمواسلوبو اومعجزبيان مشتمل دى ﴿ لَّعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُونَ ﴾ دپاره ددې چي تاسي پرې وپوهېږى (عقل پكي وچلوی) احكام يې وپېژنی اوپدې پوه شي چي ددغه قرآن حكيم اسلوب دبشرله توان څخه وتلى دى. بيضاوي وايي چي الله په قرآنكريم لوره كړې چي قرآن يې عربي ګرزولى اودغه دبلاغت له بدائعو څخه يودى ترڅو قسم اومقسم عليه سره متناسب وي اوپدې تنبيه وركړي چي ترقرآنكريم بل پورته شى نشته چي وربانديقسم وشي اودغه دقرآنكريم په شرافت اوعزت دلالت كوي (١) ﴿ وَإِنَّهُۥ فِيٓ أُمِّ ٱلۡكِتَٰبِ لَدَيۡنَا ﴾ اوبېشكه دغه كتاب(ثابت دى) په اصل دكتاب (لوح محفوظ) كي په نزدزموږ ﴿ لَعَلِيٌّ حَكِيمٌ ﴾ خامخا خاوند دلويي مرتبې ډېر مستحكم دى) دسترشان خاونداودلوړقدر اوبالغ حكمت ښبتن دى. ابن كثيروايي دقرآنكريم شرافت يې په ملاالاعلى كي ولمانځل ترڅو دمځكي خلګ يې تعظيم اوشرافت ومني (معنا دا چي قرآنكريم په لوح محفوظ كي زموږ په نزددستري مرتبې ، عزت اوشرف خاونددى (٢) ﴿ أَفَنَضۡرِبُ عَنكُمُ ٱلذِّكۡرَ صَفۡحًا ﴾ آياپس بندكړو (وګرزوو) له تاسي دغه ذكرپند(قرآن) بندېدل (ګرزېدل) استفهام دانكارلپاره دى يعني آيا موږتاسي ته پند درنكړو اودغسي مولكه چارپايان پرېږدو ؟ ﴿ أَن كُنتُمۡ قَوۡمٗا مُّسۡرِفِينَ ﴾ له دې سببه چي تاسي يې يوقوم له حده تېرېدونكى (په تكذيب سره ، نه ؛ بلكه تاسوته به وربانديپند دركوو ترڅودحق لاري ته راوګرزی ، قتاده وايي چي كه چېري دغه قرآن كله چي پخواني مشركانوونه مانوپورته شوی وای نودوی به خامخاهلاک شوي وو لكن الله پخپل رحمت بار بار ورته اوروول اوترشلو كالونو پوري يې ورته راوبلل (٣) ابن كثيروايي چي دقتاده ويناخورادباريكي معنالرونكي ده هغه الله پاک دخپل هغه لطف اومرحمت له مخي چي په خپلوبندګانويې لري تل ددوی دعوت دخيراوښېګني لورته كوي كه څه هم چي دوی تجاوزګران اومخ اړونكي دي هغوی ته امركوي ترڅوهغه كسان چي په

---

(١) حاشية شيخ زاده ٣ / ٢٨٨

(٢) دابن كثير مختصر ٣ / ٢٨٤

(٣) كبيرتفسير ٢٧ / ١٩٥

تقديركي يې هدايت ليكلى شوى ورباندي ايمان راوړي اوپه هغه چاباندي چي شقاوت يې په برخه وي دليل اوحجت شي(١) ﴿ وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِن نَّبِيٍّ فِى ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ اوڅومره ډېرمولېږلي دي له انبياوڅخه په پخوانيو(خلګو) كي ؟ دغه درسول الله لپاره ډاډينه اوتسليت دى ﴿ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن نَّبِيٍّ إِلَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ اونه به راتودوى ته هيڅ نبي مګروو به هغوى چي په هغه (نبي) پوري به يې مسخرې كولې. صاوي وايې چي پدې كي درسول الله لپاره تسلاده معناداچي ته مه خفه كېږه داچي كوم چلندله تاسره كېږي له پخوانيوانبياوو عليهم السلام سره شوي دى (٢) ﴿ فَأَهْلَكْنَآ أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا ﴾ پس هلاک كړل موږهغه (پخواني خلګ چي) سخت تر(وو) له دوى نه له جهته دقوت (او خواک) يعني دمكې تركفارو لاډېرقوي او سرغړونكي، باغيان وو ﴿ وَمَضَىٰ مَثَلُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ اوتېرشوى دى (څوځايه په قرآنكريم كي ) مثال د ړومبنيو خلګو(چي دوروستنيومكذبينولپاره وعظ اوپندشي. امام فخر رازي وايې چي دمكې كفارودپخوانيومكذبينو لاره پل په پله تعقيب كړه نودوى دي له دې څخه وډېرېږي چي هغه څه ورته ونه رسېږي كوم چي پخوانيوته رسېدلي وودهغوى مثالونه خوددوى په وړاندي دى ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾ اوقسم دى خامخاكه چېري پوښتنه وكړې ته له دغو كفاروچي څوک دى هغه ذات چي پيداكړي يې آسمانونه اوځمكه؟ (په دغه عجيبه اوبديع شكل باندي) ﴿ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ ٱلْعَزِيزُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ نوخامخاوبه وايې دغه كفارخامخاچي پيداكړي دي(تول هغه الله چي) ښه غالب قوي (په انفاذداحكامو ) ښه عليم دى (پخپل مخلوق باندي) قرطبي وايې چي دوى دالله جل جلاله په خلق اوايجاداقراركوي خوبياهم له الله سره بل څوک په عبادت كولو كي شريكوي اودغه ددوى دجهل اوحماقت ښنبه ده (٣) بياالله پاک دوى ته خپل جليل صفات چي په بشپړ قدرت اوحكمت يې دلالت كوي داسي بيانوي چي ﴿ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ مَهْدًا ﴾ الله هغه (ذات ) دى چي تاسي ته يې ځمكه فرش ګرزولې(ترڅوتاسي ورباندي واوسى) ﴿ وَجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا ﴾ اوګرزولي دي تاسي ته په دغې ځمكې كي لياري (چي تاسودسفرونوپه وخت كي ورباندي تګ راتګ كوى ﴿ لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ لپاره ددې چي تاسي سمه لاره ومومى (دحكيم اوخالق ذات قدرت وپېژنى هغه ذات چي دغه عجيبه نظام يې تياركړى دى ﴿ وَٱلَّذِى نَزَّلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ ﴾ اوهغه ذات چي نازلي كړي يې دي (له طرفه) دآسمانه اوبه په اندزه سره (څومره چي كفايت كوي او ورته اړتياوي. بيضاوي وايې معناداچي په اندازه

---

(١) مختصر ٣ /٢٨٥

(٢) صاوي په جلالين ٤ /٤٤٠

(٣) دقرطبي تفسير ١٢ /٢٤

سره چي ګټه ورې وي اوتاوان ونه رسوي (١)﴿ فَأَنشَرْنَا بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا ﴾ پس ژوندی کړی دی موږ په دغواوبو سره کلي مړ(وچه کلکه ځمکه) ﴿ كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴾ په شان ددغه ژوندي کېدلو دځمکي راوبه ايستل شی تاسي (هم بياژوندي له قبرونوڅخه) ﴿ وَٱلَّذِى خَلَقَ ٱلْأَزْوَٰجَ كُلَّهَا ﴾ اوهغه ذات چي پيدا کړي يې دي (اصناف (انواع دمخلوقاتو) ټول ددوی (له حيوانه، نباته اونوروشيانوڅخه. ابن عباس وايې چي ازواج معنااصناف اوانواع لکه خوږ، تريو، سپين، تور، نارينه، ښځينه (٢)﴿ وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْفُلْكِ وَٱلْأَنْعَٰمِ مَا تَرْكَبُونَ ﴾ اوګرزولي يې دي تاسي ته له بېړيو اوله چارپايانوهغه چي تاسي پرې سپرېږی (په سفرونوکي ) ابن کثيروايې معناداچي اهل اوتابع کړي يې دي تاسي ته ترڅوغوښې يې وخوری او ورباندي سپاره شی (٣)﴿ لِتَسْتَوُۥا۟ عَلَىٰ ظُهُورِهِۦ ﴾ لپاره ددې چي سم برابرکښېنی تاسي په شاوو(دهريوه ) دهغه دمرکب که بېړۍ وي اوکه اوښ يانورمراکب) ﴿ ثُمَّ تَذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ رَبِّكُمْ إِذَا ٱسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ ﴾ بيايادکړی تاسي (قلبًا ) نعمت درب خپل کله چي برابرکښېنی (سواره شی) پرهغه ﴿ وَتَقُولُوا۟ سُبْحَٰنَ ٱلَّذِى سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا ﴾ اوووايئ تاسي پاکي ده هغه(لوی ذات) ته چي مسخرکړي يې دي موږ ته دغه (مذکورله مراکبو) ﴿ وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقْرِنِينَ ﴾ اونه وو موږ ده لره په ضبط کي راوستونکي (قادرپه سپرېدلويې که دالله تسخيرنه وای) ﴿ وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ ﴾ اوبېشکه چي موږرب خپل ته خامخا ورتلونکي يو( وروسته له مرګه بيضاوي په حاشيه کي ليکي چي مرادله يادولو دنعمت څخه په زړه تېرول اوتصورکول نه دي بلکه مقصددادی چي ددې يادونه وکړي چي دغه دنعمت حصول دقادرعليم حکيم ذات په تدبيرسره شوي چي دطاعت اوشکر مستوجب دي څکه څوک چي داسوچ وکړي چي انسان پداسي مرکب سپرېږي چي ترده په قوت اوبدن کي خورا ستردی خوله ده سره دده لپاره اهل اوتابع دی هرلوري ته يې چي انسان بيايي بېول کېږي اوپدې کي سوچ وکړي چي درياب اوباد(هوا ) يې هم دانسان لپاره تابع دی سره له دې چي په دواړوکي خوراهيبت او وېره شته نودلته دالله تعالی په معرفت ، کبريا اوعظمت کي مستغرق شي دالله بشپړقدرت اوحکمت ورپه يادشي نودغه استغراق اويادونه يې دې ته راکاږي چي په تعجب سره ووايې : ﴿ سُبْحَٰنَ ٱلَّذِى سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقْرِنِينَ ﴾ (٤)کله چي الله تعالی دمشرکانواعتراف يادونه وکړه چي دوی هم وايې چي دځمکي اوآسمان پيداکونکی رب العلمين دی نو ورپسې يې ددوی سفاهت اوجهالت چي دغيرالله عبادت کوي داسي بيان کړ: ﴿ وَجَعَلُوا۟ لَهُۥ مِنْ

(١) دبيضاوي تفسير ٢ /١٧٧

(٢) دجمل حاشيه په جلالين باندي ۴ /٧٧

(٣) دابن کثيرمختصردصابوني ليکنه.

(۴) دشيخ زاده حاشيه په بيضاوي باندي ٣ /٢٩٧

﴿ عِبَادِهِۦ جُزْءًا ﴾ او گرزوي (مقرروي كفار) الله ته له بندګانو دده يوه برخه (اولاد چي ملائكو ته دالله لوني وايي) ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَكَفُورٌ مُّبِينٌ ﴾ بېشكه چي (كافر) انسان خامخا ښكاره ناشكره دی ( سترمنكراو سرغړونكی دی. بيضاوي وايي : معناداچي كفران يې ظاهره اوښكاره وي ځكه چي الله تعالی ته د اولادنسبت كول دزيات جهل اودالله دعظيم شان د تحقير كولو نښه ده(¹) ﴿ أَمِ ٱتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ وَأَصْفَىٰكُم بِٱلْبَنِينَ ﴾ آيا وايی تاسي چي(الله) نيولي دي له هغه مخلوقه چي پيداكوي لوڼي؟ او غوره كړی يې ياست تاسی په زامنو؟ دغه د دوی له حاله سره تعجب او انكار دی يعني آيا الله دخان لپاره لوڼي اوتاسو ته يې زامن غوره كړي دي؟ ابن كثير وايي چي دغه پر دوی باندي دانكار وروستی سرحد دی اوبشپړانكار ورپسي الله داسي بيانوي(²) ﴿ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا ظَلَّ وَجْهُهُۥ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴾ حال دا هركله چي زېری وركړی شي يو ددوی ته په (زېږېدو دهغه) سره چي گرزولی يې دی رحمان ته مثل (چي دلوڼو نسبت يې ورته كړی نو ) وګرزي مخ دده تك تور حال داچي دی به له غمه ډك وي. امام فخررازي وايي مقصد له آيت شريف څخه ددوی دعقلونو سخافت دی چي هغه څېزچي له نقص څخه دغي مرتبې ته راتيټ وي نوعاقل سړی به يې څرنګه دالله جل جلاله لپاره اثبات كړي اودځينو عربو څخه روايت شوی چي ديوه سړي مېرمني لوروزېږوله نوخاوند يې هغه كور پرېښود چېري چي دده مېرمن اوسېده (³) ﴿ أَوَمَن يُنَشَّؤُا۟ فِى ٱلْحِلْيَةِ ﴾ آيا (دوی الله ته هغه څوك مقرروي چي) لويولی شي په ګېڼوكي (چي ښځينه دي ﴿ وَهُوَ فِى ٱلْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ ﴾ حال داچي هغه په وخت دجګړو كي (رأيه )نشي ښكاره كولای) يعني هغه داسي څوك دي چي ددعوئ داثبات په وخت كي خپل مطلب نشي بيانولی (چي ضعيف الرأی دی آيادغه دالله له عظيم جناب سره نسبت كول مناسب دی؟ په التسهيل كي وايې چي مقصد له دې تكو څخه په هغو كسانو باندي چي ويل به يې ملائكي دالله لوڼي دي رد كول دي لكه چي فرمايلي يې دي آيا تاسو الله ته دهغه چانسبت كوی چي هغوی په سينګار او پسول كي لويولی شي؟ دغه خودنقص صفت دی ورپسي يې يو بل نقص داسي بيانوي چي ﴿ وَهُوَ فِى ٱلْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ ﴾ يعني مېرمن كله چي له چاسره دعوی لري نشي كولای په ښكاره توګه خپل دليل وړاندي كړي ځكه چي ناقصات العقل دي ډېرخله ښځمني خپله خبره نشي سره بېلولای نو څرنګه به الله ته دداسي ناقص مخلوق نسبت سم وي؟ ابن كثير وايي چي مېرمن په صورت اومعنا دواړو كي ناقصه ده دصورت اوظاهر نقص يې دګېڼې اوسينګار په كولو بشپړوي اوپسول اوګېڼه اغوندي اوهرچي معنوي نقص يې دی هغه داچي عاجزه ضعيفه ده بری نشي موندلای لكه چي ځيني عربو پر هغه مهال كله چي به ورته دلورزېږی وركړی

---

(¹) دبيضاوي تفسير ٢ /١٧٧

(²) دابن كثير مختصر ٣ /٢٨٦

(³) التسهيل ٤ /٣٢

شو داسي ويل: دغه غښتلى اولاده دى زوريې په ژړا او ګټه يې په غلاكي ده(۱) ﴿ وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ إِنَاثًا ﴾ او ګرزوي (كفار) پرښتې هغه چې دوى عباد الرحمن دالله بندګان دي ښځې (لوڼي دالله) يوبل كفرچې ددوى دغه شنيع وينا ده هغه داچې دعربو كفاروبه عقيده درلوده چې پرښتې اكمل العباداوپه الله ګراني دي هغوى ښځينه دي دوى دغه حكم كاوو ﴿ أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ ﴾ آيا حاضرو و (دغه كفارپه وخت د) پيداكېدلو ددغو پرښتوكي(چې ښځې لوڼه پيداشوي دي؟) (دغه ددوى دتجهيل بيان اوپردوى باندي تهكم دى) ﴿ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ وَيُسْأَلُونَ ﴾ ژردى چې وبه ليكلى شي شاهدي ددوى اوپوښتنه به (هم) ترې وكړى شي (په آخرت كي) يعني ژردى چې موږبه پرښتوته ددوى دروغجن شهادت ددوى په اعمالناموكي دليكني امرصادر كړواودوى به له دې څخه په ورځ دقيامت كي وپوښتلى شي دغه ددوى لپاره تهديداواخطاردى مفسرين كرام وايې چې الله تعالى دعربوله كفارو څخه درې ناروااقوال راوړل يوداچې دوى الله ته داولادنسبت وكړ دوهم داچې لوڼې يې ورته ثابته كړې اودريم داچې معززو پرښتوته يې دښځينه نسبت بې له كومه علمي سنداوبرهانه وكړنوقرآنكريم ددوى درې سره اقوال تكذيب كړل بيادوى يوبل بهتان اوضلالت هم ښكاره كړچې دوى دغه عمل دالله جل جلاله په خوښه اورضاباندي كوي ﴿ وَقَالُوا لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ مَا عَبَدْنَاهُم ﴾ اووايې دغه (مشركان) كه رحمان اراده فرمايلي واى نوعبادت به مونه ووكړى ددغو (باطلومعبودانو) دوى به دغه داستهزاء اوملنډوپه توګه ويل يعني كه الله نه غوښتلاى نوموږبه ددغو ملائكواوبتانوعبادت نه كاووځرنګه چې دغه دالله په مشيت باندي دي نوهغه له موږڅخه راضي دى. قرطبي وايې چې دغه يوه حق كلمه ده چې باطل ورباندي اراده شوى دې هرشى دالله په اراده ترسره كېږي خومشيت له رضاڅخه بېل دى اوپه مشيت باندي دليل نه نيول كېږي څكه كه چېرې دوى دبتانو پرځاى دالله عبادت كولاى نوموږبه اروموروپوهېدلوچې الله ورڅخه دغه غواړي (۲) نوالله ددوى تكذيب داسي فرمايي: ﴿ مَّا لَهُم بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ﴾ (نشته دوى ته په دغي (خپلي وينا ) هيڅ قدرعلم او پوهه) يعني دوى ته پدغه ويناكوم برهان او حجت نشته دى ﴿ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴾ ندى دوى مګر دروغ وايې (خوشي چټي بېكاره) اټكلونه چلوي څكه چې الله پدې كفر راضي نه دى) ﴿ أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِّن قَبْلِهِ فَهُم بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ ﴾ (آياوركړى مودى دوى ته كوم كتاب پخواله دغه (قرآنه) پس دوى په هغه كتاب منګولې خښونكي (دليل نيونكي دي) دغه پردوى باندي يوبل رددى يعني آيا موږپردغو مشركانوپخواله دې قرآنه كوم كتاب نازل كړى دى چې دوى دهغه كتاب په توجيهاتوعمل كونكي دي؟ امام فخر رازي وايې: معناداچې آيادوى دغه باطل په كوم بل كتاب كي چې له قرآنه پخوانازل شوي دي موندلى دى چې دوى ورباندي دليل

---

(۱) دابن كثيرمختصر ۳ / ۲۸۷

(۲) دقرطبي تفسير ۱۲ / ۷۳

ونيسي(١)﴿ بَلْ قَالُوٓا۟ إِنَّا وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا عَلَىٰٓ أُمَّةٍ ﴾ بلكه وايي دغه مشركان بېشكه موږ موندلي مودي پلرونه خپل پريوې لاري (دين) باندي؛ (بل) داضراب لپاره دی چي له يوه كلام څخه بل ته لېږدي يعني دوی كوم عقلي اونقلي دليل په خپل زعم تېرولای نشي بلكه دوی اعتراف كوي چي دوی پرته دخپلو پلرونو له رانده تقليده بل دليل او حجت نلري. ابو السعود وايي (أمة) دين اولاري ته وايي څكه يې أمة بولي چي قصد كاووه شي (٢)﴿ وَإِنَّا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم مُّهْتَدُونَ ﴾ او بېشكه موږ په قدمونو (پلونو) ددوی لاره موندونكي تلونكي يو ﴿ وَكَذَٰلِكَ مَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِى قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ ﴾ (اوهمداسي (ستاپه شان) نه وولېږلي موږ پخواله تانه په هيڅ قريه كلي كي كوم وېرونكی (له عذابه) يعني لكه چي دغه كفار دخپلو پلرونواواجدادو بې له كومه دليله پلوي اودپلونوپيروي او اقتداء كوي همداسي دپخوانيوأمتونو مكذبينوهم كول يعني پر هيڅ امت كي مي ترتادمخه كوم پيغمبر ندی استولی خو ﴿ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَآ إِنَّا وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا عَلَىٰٓ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم مُّقْتَدُونَ ﴾ (مگروبه ويل هوسا اونعمت لرونكو (خلگو دهغو كليو) بېشكه موږ چي يو موندلي مودي پلرونه خپل پريوې لاري اوبېشكه موږ په قدمونو ددوی اقتداء كونكي تلونكي يو) يعني هغو كسانوچي په سوكالي او آرام ژوندبه بسياوو، شهوتونو اونعمتونوبه دحق په لاركي د كړاوونو څخه منع كول نوبه دوی ويل چي زموږ پلرونه په كومه لاره تللي موږهم په هغې تلونكي يو. بيضاوي وايي چي په آيت شريف درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره تسليت اوډاډينه ده اوددې تنبيه ده چي په داسي چاروكي تقليدكول پخواني گمراهي ده ددوی داسلافوهم كوم باوري سندنه وو چي دغسي يې كول اوداچي سوكاله او هوساخلگ يې په خانگړي توگه يادكړل څكه هغوی پخپل عيش اوعشرت كي داسي ډوب وي چي هغه عيش اوعشرت يې دغه رانده تقليدته اړباسي (٣) اودلته يې (مقتدون) راووړ مخكښبي يې (مهتدون) فرمايلي وودغه تفنن دی ددواړومعنايوشی دی ﴿ قَٰلَ أَوَلَوْ جِئْتُكُم بِأَهْدَىٰ مِمَّا وَجَدتُّمْ عَلَيْهِ ءَابَآءَكُمْ ﴾ وبه ويل (نبي) دوی لره (آيادخپلو پلرونو متابعت كوی؟) اگركه راتگ كړي دي ماتاسي ته په ښه لاره ښوونكي له هغه څه چي موندلي دي تاسي پرهغه شي باندي پلرونه ستاسي ﴿ قَالُوٓا۟ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴾ (وبه ويل دوی بېشكه موږچي يوپه هغه (دين) چي تاسي په هغه سره لېږلی شوي ياست كافران يو) يعني موږ په توحيد، ، بعث اونشورايمان نه لرو ﴿ فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُكَذِّبِينَ ﴾ پس له دوی موانتقام واخيست پس وگوره څرنگه وه آخره خاتمه ددروغجن گڼونكيو؟!

***

(١) كبيرتفسير ٢٧/ ٢٠٦

(٢) دابوالسعودتفسير ٥/ ٤٢

(٣) دبيضاوي تفسير ٢/ ١٧٨

الله تعالی فرمايي: ﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦٓ إِنَّنِى بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُونَ ﴿٢٦﴾ إِلَّا ٱلَّذِى فَطَرَنِى فَإِنَّهُۥ سَيَهْدِينِ ﴿٢٧﴾ وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِى عَقِبِهِۦ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢٨﴾ بَلْ مَتَّعْتُ هَٰٓؤُلَآءِ وَءَابَآءَهُمْ حَتَّىٰ جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ وَرَسُولٌ مُّبِينٌ ﴿٢٩﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ قَالُوا۟ هَٰذَا سِحْرٌ وَإِنَّا بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿٣٠﴾ وَقَالُوا۟ لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ ٱلْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ ﴿٣١﴾ أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ ۚ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۚ وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَٰتٍ لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُم بَعْضًا سُخْرِيًّا ۗ وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿٣٢﴾ وَلَوْلَآ أَن يَكُونَ ٱلنَّاسُ أُمَّةً وَٰحِدَةً لَّجَعَلْنَا لِمَن يَكْفُرُ بِٱلرَّحْمَٰنِ لِبُيُوتِهِمْ سُقُفًا مِّن فِضَّةٍ وَمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُونَ ﴿٣٣﴾ وَلِبُيُوتِهِمْ أَبْوَٰبًا وَسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔونَ ﴿٣٤﴾ وَزُخْرُفًا ۚ وَإِن كُلُّ ذَٰلِكَ لَمَّا مَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۚ وَٱلْءَاخِرَةُ عِندَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٣٥﴾ وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ ٱلرَّحْمَٰنِ نُقَيِّضْ لَهُۥ شَيْطَٰنًا فَهُوَ لَهُۥ قَرِينٌ ﴿٣٦﴾ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴿٣٧﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَنَا قَالَ يَٰلَيْتَ بَيْنِى وَبَيْنَكَ بُعْدَ ٱلْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ ٱلْقَرِينُ ﴿٣٨﴾ وَلَن يَنفَعَكُمُ ٱلْيَوْمَ إِذ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِى ٱلْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ﴿٣٩﴾ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ ٱلصُّمَّ أَوْ تَهْدِى ٱلْعُمْىَ وَمَن كَانَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٤٠﴾ فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ فَإِنَّا مِنْهُم مُّنتَقِمُونَ ﴿٤١﴾ أَوْ نُرِيَنَّكَ ٱلَّذِى وَعَدْنَٰهُمْ فَإِنَّا عَلَيْهِم مُّقْتَدِرُونَ ﴿٤٢﴾ فَٱسْتَمْسِكْ بِٱلَّذِىٓ أُوحِىَ إِلَيْكَ ۖ إِنَّكَ عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٤٣﴾ وَإِنَّهُۥ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ ۖ وَسَوْفَ تُسْـَٔلُونَ ﴿٤٤﴾ وَسْـَٔلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رُّسُلِنَآ أَجَعَلْنَا مِن دُونِ ٱلرَّحْمَٰنِ ءَالِهَةً يُعْبَدُونَ ﴿٤٥﴾ ﴾ الزخرف: ٢٦ ـ ٤٥

**مناسبت:**

كله چي الله تعالی دمشركانودهغه رانده تقليديادونه وكره چي هغوی به دخپلوپلرونواو اجدادو كاوودلته يې دحنفاوو دامام حضرت ابراهيم خليل الله بيان وفرمايوهغه چي عرب ورباندي وياړي اوځانونه هغه ته منسوبوي هوكي ابراهيم عليه السلام خوله خپله قومه اوتبره بېزاري اعلان كړه اودبتانوعبادت كول يې وغندل ددوی اودهغه ترمينځ به توپيردلته څرګندشي اودضلالت اوهدايت ترمينځ مقايسه همداسي دصواب اوسم عقل اودهوا اوهوس دمنطق به يوله بله پرتله وشي.

**لغتونه:**

(براء) له برئ څخه اخيستل شوی اوبېزاري ته وايي (عقبه) نسل اوذوذات. ابن شهاب وايي (عقب) زوی اولمسي ته ويل كېږي (سخريا) تابع په كارګمارل شوی (معارج) دمعراج جمع اوزينې ته وايي هغه چي انسان ورباندي لوړخېژي (يظهرون) پورته كېږي خېژي(زخرف) له سرو اوسپينوزرو څخه ګېنه اوپسول (يعش) چي مخ واړوي له (عش البصر) څخه اخيستل شوی كله چي ستركي كمزوري شي خليل وايي چي (عش البصر) معناداچي په ضعيف نظر كتل كوي

تفسير:

﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦٓ إِنَّنِى بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُونَ ﴾ او یادکړه هغه وخت (ای محمده!) کله چي وویل ابراهیم خپل پلار (او مشرک) قوم خپل ته چي بېشکه زه بېزاره (جلا) یم له هغو (بتانو) چي تاسي یې عبادت کوی (پرته له الله) ﴿ إِلَّا ٱلَّذِى فَطَرَنِى فَإِنَّهُۥ سَيَهْدِينِ ﴾ (مگر هغه الله چي زه یې پیداکړی یم پس بېشکه چي هغه الله به ثابت لري ما په هدایت (او حق دین خپل) باندي) یعني هغه ذات چي زه یې له عدمه څخه وجود پیداکړی یم هغه به مي حق دین او دنېکمرغي لاري ته لاربنوونه کوي ﴿ وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِى عَقِبِهِۦ ﴾ او گرځولي وه (ابراهیم دغه کلمه (د توحید) تلپاتي په اولاد خپل کي (تل به په دوی کي موحدین وي) ﴿ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ لپاره ددې چي دوی بیرته راوگرزوي (له شرکه ایمان ته) مجاهد وایي ﴿ وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِى عَقِبِهِۦ ﴾ معنادا چي (لااله الاالله) به ترقیامته پوري دده په اولاد کي یو څوک وایي [1] ﴿ بَلْ مَتَّعْتُ هَٰٓؤُلَآءِ وَءَابَآءَهُمْ ﴾ (دوی همغسي ونکړل) بلکه نفع ورکړي ده ما دغو (دمکې خلگو) او پلرونو ددوی ته (چي دوی دابراهیم علیه السلام نسل وو په عمر او نعمت موونا زول خودوی په نعمتونو او شهواني غوښتنو کي له توحید څخه محروم او غافل شول ﴿ حَتَّىٰ جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ وَرَسُولٌ مُّبِينٌ ﴾ (ترهغه پوري چي راغی دوی ته حق (دین قرآن) او رسول (محمد) ښکاره بیانونکی (د شرعي احکامو) یعني ترڅو چي دوی ته قرآن راغی او هغه استازی چي رسالت یې څرگند او په معجزاتو باندي تائید شوی وو مبعوث شو امام فخر رازي وایي چي دآیت شریف نظم او پېیلتوب دا چي کله دوی تقلید ته مخه کړه او دلیل ته یې شا کړه پکي سوچ یې نه کاوو نو دوی په اوږد ژوند او مهلت تېروتل او دا چي الله دوی ته نعمتونه ورکړي ور باندي غره شول او له حق څخه یې څنگ او اعراض وکړ [2] ﴿ وَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ قَالُوا۟ هَٰذَا سِحْرٌ ﴾ (او څه وخت چي راغی دوی ته حق (دین قرآن) وویل (کفارو) دا سحر (کوډي) دي) یعني کله چي دوی ته قرآن کریم راغی ترڅو یې دغفلت له خوبه راویښ کړي اود توحید لوري ته یې لاربنوونه وکړي نو په دې وخت کي دوی لانوره سرغړونه او گمراهي زیاته کړه ویې ویل چي دا کوډي دي ﴿ وَإِنَّا بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴾ او بېشکه موږ پر دغه قرآن کافران یو (نه یې منو چي دغه دالله کلام دی، ابوالسعود وایي چي قرآن یې کوډي ونوماوو ور باندي کافران شول په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي یې ملنډي ووهلې نو دوی په ړومبني کفر باندي دحق معانده او استهزاء ورزیاته کړه [3] ﴿ وَقَالُوا۟ لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ ٱلْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ ﴾ او وویل (کفارو) ولي نه نازلاوه شي دا قرآن په یوه سړي له دغو دوو قریو څخه (چي مکه او طائف دي چي دغه سړي هم) دېرلوی دي (لکه ولید په مکه کي او عروة په طائف کي) مفسرین

---

(1) دابن کثیر مختصر ۳ / ۲۸۸

(2) کبیر تفسیر ۲۷ / ۲۰۸

(3) دابوالسعود تفسیر ۵ / ۴۳

كرام وايي چي دمشركانو قصدله لوى سړي څخه په مكه كي (وليدبن مغيرة) اوپه طائف كي (عروة بن مسعود ثقفي) وو دوى دغه مستبعد گڼله چي قرآنكريم دي په يويتيم ، فقير اوبېوزله محمد صلى الله عليه وسلم نازل شي اوداسي وړانديزيې كاووچي دادي په يوغټ، مشردمال اوشتوپه خاوندنازل شي په دې گمان چي غټ اومشرهغه دى چي مال دولت اوجاه ، عظمت ولري) دغه په ټولوخايونو اووختونوكي دزماني دجهالومنطق دى مگردحقيقي عظمت اولوړتيا معياردالله اوهوښيارانوپه نزددنفس عظمت دى دروح لوړوالى اواوچت والى دى اوتر رسول الله (محمدصلى الله عليه وسلم) نوڅوك دستراوعظيم ذات اوپاكيزه اوچتي روح خاوندكېداى شي؟ ځكه نوالله تعالى ددوى ترديدپه دې وينافرمايې ﴿ أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ ﴾ آيادوى وېشي رحمت (نبوت) درب ستا (چي يوچاته نبوت وركوي لكه چي دوى يې وړانديزكوي چي فلانى غټ اوفلانى بداى ته دي وركړل شي؟ ﴿ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ﴾ (نه ده داسي بلكه پخپله ) موږ وېشلى قسمت كړى مودى په مينځ ددوى كي معېشت ددوى په دغه دنيوي ژوندون كي ) يعني موږ پخپل حكمت سره دغه بډاى كړى اودابل موفقيراوبېوزله كړى ددوى دمالونواوارزاقوترمينځ مو توپير پيداكړى كله چي دمعېشت وېش (چي دېرحقيراوناڅيزدى) موږپخپل لاس كي اخيستى نود نبوت د وركولوچاري(چي خورادعظمت اوسترتوب چاري دي) څرنگه به يې ددوى له خواهشاتواو غوښتنو سره سمي عياركړو؟! په التسهيل كي وايې لكه څرنگه چي مودمعېشت دنيوي اسباب وېشلي همداسي ديني مواهب وېشوكله چي خواري اوحقيري وندي خوشي اوچتي نه پرېږدو نوستري اود شرافت نه ډكي برخي به څرنگه خوشي اوچتي پرېږدو(۱)﴿ وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَٰتٍ ﴾ او پورته كړي مودي ځيني ددوى دپاسه دځينونورو په مرتبوكي (يعني په رزق روزي كي ځيني ترځينو لوړوي دغه غني دى دغه فقيراودغه هم متوسط الحال دى ﴿ لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُم بَعْضًا سُخْرِيًّا ﴾ چي ونيسي ځيني د دوى (چي غټان غنيان دي) ځيني نور (چي فقيران بيوزلان دي) تابعان كاركونكي (ترڅوډژوندانه چاري سمبالښت ومومي. صاوي وايې داچي الله خلگ په رزق روزي كي سره متفاوت پيداكړي ترڅو ځيني له ځينونورو څخه گټه واخلي كه ټول په ټولو حالاتوكي سره يودول واى نوهيچابه دبل چا خدمت (چوپړ ) نه كاوو نوبه دعالم نظام درهم اوبرهم شوى واى(۲)ابوحيان وايې دالله تعالى جل جلاله دا كلام چي ﴿ سُخْرِيًّا ﴾ دسين په ضمه سره له تسخيرڅخه اخيستل شوى اواستخدام ته وايې له سخريه څخه نه دى چي دملنډوپه معنا راخي اوحكمت پكي دادى چي ځيني دي ځينو نوروته اړوي اوخپلو منافعوته دي پكي رسېږي كه هرچاخپل ټول كارونه پخپله كولاى طاقت به يې نه درلود اوهلاك شوي به وو او پدي ويناكي ﴿ نَحْنُ قَسَمْنَا ﴾ دلته ددې ښوونه شوي چي خلگ دي په دنيا پسي منډي نه وهي په الله جل جلاله دي توكل كوي وېش الله فرمايلى دى قتاده وايې چي ته به يوضعيف ناتوانه بې خولې اوژبي سړى وينې چي پراخه روزي الله وربانديلورولي

---

(۱) التسهيل ۴/ ۲۸

(۲) دصاوي حاشيه ۴ / ۴۸

وي اويو د پردكار او هنرخاوند چي ژبغراند اوژبه وروي روزي به يې د بره تنګه اوژوند به يې سخت تېرېږي
امام شافعي رحمه الله وايې: ومن الدليل على القضاء وكونه * بؤس اللبيب وطيب عيش الاحمق .
يعني په الهي قضا باندي دغه دليل دى چي هوښياران فقيران او احمقان بډايان وي ﴿ وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴾ او رحمت درب ستا (جنت) ډېرغوره دى له هغو (مالونو) چي دوى يې په دنيا كي ټولوي ،بيا الله تعالى د دنيا د حقارت او سپک قدر داسي يادونه كوي چي: ﴿ وَلَوْلَا أَن يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً لَّجَعَلْنَا لِمَن يَكْفُرُ بِالرَّحْمَٰنِ لِبُيُوتِهِمْ سُقُفًا مِّن فِضَّةٍ ﴾ او كه نه وى دغه (خطره) چي دا خلګ يوه ډله (متفق په كفر) شي نو خامخا ګرزولي به مو وو هغه چالره چي په رحمان كافركېږي لپاره د كوټو ددوى چتونه (بامونه) له سپينوزرو (لوړ مزخرف قصرونه او ماڼۍ به مو وركړي وې) ﴿ وَمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُونَ ﴾ او زينې (به موهم له سپينو زرو ورجوړولې څو) په هغوسره به دوى ختلو ﴿ وَلِبُيُوتِهِمْ أَبْوَابًا وَسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔونَ ﴾ او د پاره د كوټو ددوى (د سپينوزرو) دروازې به وي او تختونه (به وو د سپينوزرو) چي پر هغو به دوى تكيې وهلي وي ﴿ وَزُخْرُفًا ﴾ او (له سروزرو او سپينو (به يې بامونه، دروازې او تختونه وو[1]) دغه دابن عباس رضى الله عنه وينا ده او ځيني مفسرين د (زخرفا) معنا نورد زينت شيان لكه پردې ، بالښتونه او نقوش اخلي ﴿ وَإِن كُلُّ ذَٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ﴾ او نه دي دا ټول (مذكوره شيان) مګرمتاع نفع د دغه ژوندون د دنيا (فاني دى چي مور كفاروته وركړى دى ﴿ وَالْآخِرَةُ عِندَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِينَ ﴾ او (متاع نفع د) آخرت (جنت) په نزد درب ستا لپاره د متقيانو دى) يعني جنت او هغه ګردنعمتونه او لذتونه چي بيان كول ورڅخه ممكن نه دي دغه په متقيانو پسي خانګړي دي هيڅوک ورسره پكي ګډون نلري . مفسرين كرام وايې چي آيتونه د دنياوي ژوندانه د حقارت څرګندولو لپاره راغلي دي او دغه يې د سپكتيا او خواري لويه نښه ده چي كه چېري د فتنې خطره او وېره نه واى نو موږ به كفار ورباندي مختص كړي وو د هغوى كوټې دروازې ، زينې او چتونه (بامونه) به د سرو او سپينوزرو وو او كفاروته چي دغه نعمتونه په دنيا كي وركول شوي څكه دوى د اخروي ژوندانه څخه برخه نلري ) الله جل جلاله پخپلو بندګانو مهربان دى څكه يې ځيني كفار بډايان او ځيني خواران كړي او ځيني مؤمنان يې بډايان ، ځيني بېوزلان كړي دي . په حديث شريف كي راځي كه چېري دنيا د الله په نزد د غوماشي دوزر تول او ارزښت لرلاى نو كافرته به يې د اوبو يو غوړپ قدري هم نه وو ورڅښلى ([2]) زمخشري وايې كه څوک د اپوښتنه كوي چي كله الله تعالى دنيا كافرانوته د دې لپاره زښته پرېمانه ورنكړه چي بيا به مسلمانان ټول كافران شي نو څو مسلمانانو ته دي وركړي واى چي پخپل دين يې منګولي لګولي واى زه وايم چي پدې كي د فساد وېره ده څكه بيا به خلګ د دنيا لپاره په اسلام كي لكه منافقين داخلېدل نو دالله

---

([1]) القرطبي ۱۲/ ۸۷
([2]) ترمذي او وايې چي حسن صحيح دى.

حکمت پدې کي نغښتی دی چي دوې دلي بې وګرزولې يوه دله اغنياء بله فقرآء اوفقيرې په غنابانديزيات کړ([1]) ﴿ وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ ﴾ اوهرڅوک چي اعراض کوي (سترګي پټوي ) له ذکر(دقرآن اوعبادت) درحمان څخه ﴿ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ ﴾ مسلط به کړو موږ پرهغه باندي يو شيطان پس هغه به له ده سره (دائمي) ملګری وي (چي ګناهونو ته يې لمسوي) اوله سمي لاري يې کږوي) لکه چي الله فرمايې: ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴾ (مريم:۸۳) ﴿ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ ﴾ اوبېشکه دغه (شيطانان) خامخا اړوي دغه (کفارخپل ملګري ګمراهان) له لاري (دحق) څخه ﴿ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴾ اوګومان کوي دغه (سترګي پټونکي کفارله حقه) داسي چي بېشکه دوی دسمي لاري موندونکي دي ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَنَا ﴾ ترهغه پوري چي موږته راشي (دغه کافرسره له خپله شيطان انديواله چي په ځنځيرانوبه تړلي وي) ﴿ قَالَ يَا لَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ ﴾ نوبه وايې دغه (اعراض کونکی خپل ملګري ته) کاشکي چي وای په مينځ زمااومينځ ستاکي ليري والی له مشرقه ترمغربه پس بدملګری يې (ته زماڅکه چي زه دي بدمرغه کړم باطل دی راته ښايسته کړ) طبري وايې چي دغه دتغليب له بابه دی لکه چي وايې قمران، عمران، ابوان نودلته مشرق په مغرب غلبه مونده لي. ابوالسعيدالخدري وايې کله چي کافرله خپل انديوال سره يوځای راپاڅول شي نوبه له هغه څخه نه بېلېږي ترڅو دوزخ ته ولوېږي ﴿ وَلَن يَنفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ﴾ (اوله سره به څه فائده ونه رسوي تاسي ته نن ورځ (له دې جهته) چي ظلم کړی دی تاسي (په شرک سره) داچي بېشکه تاسي (سره له جېلوملګرو) په عذاب کي سره شريکان يې) يعني تاسوته به دعذاب شرکت اوګډون څه فائده ونه رسوي څکه دهرچاپاره خپله برخه اوونده دی په التسهيل کي وايې معناداچي په عذاب کي ګډون به دوی ته فائده مند نه وي اونه به هغه راحت مومي لکه چي په دنياکي يوڅوک دمصيبت په وخت کي دبل چاپه ګډون راحت پيداکوي څکه مصيبت اوبلاچي کله عامه شي تخفيف پيداکوي نوالله وفرمايل چي دوی ته دعذاب ګډون کومه ګټه نلري ﴿ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَن كَانَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ (آياپس ته به (ای محمده !) اورول وکړې کڼوته ياسمه لاره به وښيې ړندوته اوهغه چاته چي په ښکاره ګمراهي کي وي)؟ يعني ای محمده آياته کولای شې چي دغه کفارچي لکه کاڼه اوړانده داسي دي واورې اوسمه لاره وروښيې ؟ بلکه نشې کولای نوکه دوی کافران پاتي شي ته خوامه بدوه مفسرين کرا م وايې په آيت شريف کي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره تسليت اوډاډينه ده څکه هغه صلی الله عليه وسلم به ددوی ايمان ته په رابللوکي خورازيات زيار اوکوښښ کاوو خودوی به له دې سره سره له حق څخه سترګي پټولې طغيان اوضلالت به يې زياتاوو ﴿ فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ فَإِنَّا مِنْهُم مُّنتَقِمُونَ ﴾ پس که بېول وکړو موږ خامخاپه تاسره (پخواله تعذيب دمنکرانو ) پس بېشکه

---

([1]) دکشاف تفسير ۱۹۷/۴

موږله دوی نه انتقام اخیستونکي یو( وروسته ستاله وفاته) ﴿ أَوْ نُرِيَنَّكَ الَّذِي وَعَدْنَاهُمْ فَإِنَّا عَلَيْهِم مُّقْتَدِرُونَ ﴾ یابه وښیوتاته (په ژوندستاکي) هغه (عذاب) چي له دوی سره یې وعده کووپس بېشکه موږپه (عذاب د) دوی قادریو(دوی زموږ دواک په قبضه کي دي له موږڅخه خلاصېدلای نشي . ابن عباس وايي الله تعالی جل جلاله دمشرکانوعذاب دبدرپه ورځ رسول الله ته وروليد ، ابن کثیروایي معناداچي خامخابه موږدوی ته عذاب ورکوو یا ستاپه ژوندا ویاستاله وفاته وروسته اوالله جل جلاله رسول الله ته ترهغوژوندورکړترڅوبې ددښمنانو په عذاب سترګي یخي شوې(۱)﴿ فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِي أُوحِيَ إِلَيْكَ ﴾ پس منګولي ښخي کړه (ای محمده!) په هغه (قرآن) چي تاته وحی کړی شوی دی ﴿ إِنَّكَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ بېشکه ته پرسمي لاري روان یې (هغه چي جنات النعیم ته رسېږي) ﴿ وَإِنَّهُ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ تُسْأَلُونَ ﴾ اودغه (قرآن) ذکرپند (عظیم شرف) دی تاته (ای محمده!) اوقوم ستاته اوژردی چي پوښتنه به وکړی شي له تاسي (ددغه نعمت په قیامت کي) په التسهیل کي وايي چي دلته (ذکر) دشرف په معنادی اودنبي علیه السلام قوم قریش اوګردعرب دي څکه دوی په اسلام باندي ددنیا اوآخرت شرف ترلاسه کړاودغه بس دی چي دوی ختیز اولویدیځ فتح کړل اوخلافت پاچهي ته ورسېدل(۲)اودغه قرآن دهرهغه چالپاره چي ایمان بې راوړی اومتابعت يې کړی شرافت دی دغه آیت شریف دهغه آیت په څېردی چي الله فرمايي: ﴿ لَقَدْ أَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ (الانبياء ۱۰) ﴿ وَاسْأَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رُّسُلِنَا ﴾ اوپوښتنه وکړه (ای محمده!) له هغه چانه چي لېږلی مودی پخواله تاله رسولانوزموږ(دغه په فرضي توګه ویل شوي اوپه کلام کي محذوف شته هغه داچي که بالفرض ته دتوحیدپه هکله شکمن یې نودپخوانیوپیغمبرانوڅخه پدې هکله وپوښته (په شپه دمعراج یاله علماوواوکتابونوڅخه یې)﴿ أَجَعَلْنَا مِن دُونِ الرَّحْمَٰنِ آلِهَةً يُعْبَدُونَ ﴾ (آیامقررکړي وو موږ بې له رحمانه نورمعبودان چي عبادت به یې کاوو ؟)یعني آیاکوم پیغمبرهم دغیرالله دعبادت لپاره دعوت چلولی دی؟آیت شریف لکه دالله جل جلاله داویناغوندي دی چي ﴿ فَإِن كُنتَ فِي شَكٍّ مِّمَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ فَاسْأَلِ الَّذِينَ يَقْرَءُونَ الْكِتَابَ مِن قَبْلِكَ ﴾ يونس: ۹۴ ابوالسعودوايي چي له آیت شریف څخه مراد،ددي استشهاددی چي انبیاووعلیهم السلام په توحیدباندي اجماع لري اوپه دې تنبیه فرمایل دي چي دغه کوم نوی کاراوبدعت نه دی چي ورسره دښمني وشي اويايې څوک تکذیب وکړي(۳)ابوحیان وايي ښکاري چي خطاب دی داورېدونکي لپاره وي اودلته مجاز راغلی چي دانبیاووادیان وګورئ آیاپه کوم یوه دین کي هم دبتانو عبادت کول راغلي دي؟ اودغه دشاعرانو دهغو ویناووپه څېرده چي دوی له

(۱) دابن کثیرمختصر ۳/ ۲۹۰
(۲) التسهیل لعلوم التنزیل ۴/ ۲۹
(۳) دابوالسعودتفسیر ۵/ ۴۵

ورانو كليواو باندې وسره خبري كوې اووايي چي: له څمكي وپوښته ، رودونه اونهرونه دي چاكيندلي وني چادرباندي كښېنولي ، مېوې يې چاتولي كړي دي ؟ كه هغه په خوله خواب ورنكړي خودحال په ژبه پنداوعبرت بيانوی اودغه ټول دمجازپه صنعت كي راغلي دي.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَقَالَ إِنِّي رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ (٤٦) فَلَمَّا جَاءَهُم بِآيَاتِنَا إِذَا هُم مِّنْهَا يَضْحَكُونَ (٤٧) وَمَا نُرِيهِم مِّنْ آيَةٍ إِلَّا هِيَ أَكْبَرُ مِنْ أُخْتِهَا وَأَخَذْنَاهُم بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ (٤٨) وَقَالُوا يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ (٤٩) فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ (٥٠) وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِ قَالَ يَا قَوْمِ أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ تَجْرِي مِن تَحْتِي أَفَلَا تُبْصِرُونَ (٥١) أَمْ أَنَا خَيْرٌ مِّنْ هَٰذَا الَّذِي هُوَ مَهِينٌ وَلَا يَكَادُ يُبِينُ (٥٢) فَلَوْلَا أُلْقِيَ عَلَيْهِ أَسْوِرَةٌ مِّن ذَهَبٍ أَوْ جَاءَ مَعَهُ الْمَلَائِكَةُ مُقْتَرِنِينَ (٥٣) فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهُ فَأَطَاعُوهُ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَاسِقِينَ (٥٤) فَلَمَّا آسَفُونَا انتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ (٥٥) فَجَعَلْنَاهُمْ سَلَفًا وَمَثَلًا لِّلْآخِرِينَ (٥٦) ۞ وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ (٥٧) وَقَالُوا أَآلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ (٥٨) إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنَاهُ مَثَلًا لِّبَنِي إِسْرَائِيلَ (٥٩) وَلَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنَا مِنكُم مَّلَائِكَةً فِي الْأَرْضِ يَخْلُفُونَ (٦٠) وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ (٦١) وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطَانُ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ (٦٢) وَلَمَّا جَاءَ عِيسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُم بِالْحِكْمَةِ وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ الَّذِي تَخْتَلِفُونَ فِيهِ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ (٦٣) إِنَّ اللَّهَ هُوَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ (٦٤) ﴾ الزخرف: ٤٦ - ٦٤

**مناسبت:**

كله چي قريشو رسول الله ﷺ ته دنبوت په هكله پېغور وركاوو چي دغه فقيربې وسه اوبې جاه او جلاله دی قرآن خوبه په يوبډای اودسترجاه اوجلال په خاوندرانازلېدو نو الله ﷻ دلته دحضرت موسی عليه السلام اودفرعون دكيسي يادونه وكړه ترڅودي ته اشاره وكړي چي دعناداوطغيان منطق هروخت يودول وي فرعون پخوالا پخپل مال اوسلطنت باندي دحق له بلني سرغړولی اودادليل يې وايوچي هغه ترموسی دزيات مال اوجاه څښتن دی نوآيتونه دغه بی دليل اوبرهانه نيمه خوا بهانه ترديدوي.

**لغتونه:** (ينكثون) له (نكث) څخه اخيستل شوی اوعهدماتولوته وايي (مهين) سپک اوحقيرخوارته وايي (آسفونا) موږ يې په غصه كړو. (سلفا) پېشوا مقتداء (يصدون) دصادپه زېرسره چيغي وهي اوپه ضمه سره يعني خلګ له ايمانه اړوي(١) اوفراء وايې چي دواړه برابردي (تمترون) امتراء شک كولوته وايي.

(١) صحاح، لسان العرب والقاموس المحيط

دنزول سبب:
له مجاهد ځخه روايت شوی وايې چې قريشو به ويل محمد غواړي موږ ده ده داسي عبادت وکړو لکه چې نصاراوو دعيسى بن مريم کاوو نوالله دا آيت نازل کړ: ﴿وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ﴾.

تفسير:

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ﴾ (او خامخا په تحقيق لېږلی موږ موسى سره له (نهو) دلائلو (دقدرت) زموږ فرعون ته او مشرانو دده غه (فرعون) ته) يعني قسم دی چې په تحقيق سره موږ موسى عليه السلام سره دده دنبوت دتصديق دمعجزاتو فرعون ته او دهغه قوم (اقباطو) ته لېږلی وو ﴿فَقَالَ إِنِّي رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ پس وويل موسى بېشکه زه چې يم رسول درب العلمين يم (رالېږلی يې يم چې تاسو او ستا قوم يوازي دالله عبادت ته وبولم) ﴿فَلَمَّا جَاءَهُم بِآيَاتِنَا إِذَا هُم مِّنْهَا يَضْحَكُونَ﴾ پس کله چې راغی موسى دوی ته سره له دلائلو (دقدرت) زموږ ناڅاپه دوی په دغو دلائلو (دقدرت زموږ) به يې خندل (ملنډي به يې وربانّدي وهلې. قرطبي وايې څکه به يې ورباندي خندل چې خپل پلويان وغولوي چې گني دغه کوډي دي او دوی يې مخه نيولای شي الله فرمايي: ﴿وَمَا نُرِيهِم مِّنْ آيَةٍ إِلَّا هِيَ أَكْبَرُ مِنْ أُخْتِهَا﴾ او نه موښوده دوی ته (هيڅ) دليل) له دلائلو (عذاب) مگر چې هغه لوی وو له خوره ددوې (يعني له پخواني عذابه لکه طوفان، ملخان، سپږي يو به يې تربل ستر او ځرگندوو. صاوي وايې معنا دا چې هغه وروستی به ترلومړني په اعجازکي اوچت اولوړ وو چې کتونکي به داسي انگېرله چې دغه ترلومړني غټ دی [1]) ﴿وَأَخَذْنَاهُم بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ او ونيولي وو موږ دوی په عذاب سره دپاره ددې چې دوی راوگرزي (له کفره خپله) ﴿وَقَالُوا يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ﴾ او وويل (قبطيانو موسى ته) ای کوډگره وبوله زموږ لپاره رب خپل (چې دغه بلا او عذاب راڅخه پورته کړي) دا به يې هغه وخت ويل کله چې به يې عذاب په سترگو وليد) ﴿بِمَا عَهِدَ عِندَكَ﴾ په سبب دهغې وعدې (دالله) چې له تاڅخه ده (چې ستا دعا به قبلوي) ﴿إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ﴾ بېشکه چې موږ خامخا لاره موندونکي يو (که چېرې ستا په دعا عذاب راڅخه پورته کړی شي. مفسرين کرام وايې ددوی دغه وينا چې وايې ﴿يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ﴾ دسپکاوي لپاره نه ده بلکه ددوی په گمان دغه درناوی او تعظيم دی ځکه سحر ددوی دزمانې علم او هنر وو او بد نه گڼل کېدو نو دوی په دغه نامه دتعظيم لپاره ورته غږ کړ ابن عباس ﷺ وايې معنا دا چې ای عالم او پوهيالی ذاته! ساحر په دوی کي دغتې مرتبې او مقام خاوندوو دوی به يې تعظيم کاوو ﴿فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ﴾ پس کله چې ليرې موکړ له دوی نه عذاب (په دعا د موسى ﷺ سره) ناڅاپه ماته کړه

---

(1) دصاوي حاشيه په جلالين باندي ۴/۵۷

دوی (هغه خپله کړې وعده او کفراو عصیان ته بې ملاوتړله ) ﴿ وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِۦ ﴾ اوغږوکړ فرعون (په افتخارسره) پخپل قوم کي (کله چي دموسی ﷺ معجزاتي يې وليدې اوپه دې وويرېدوچي دوی به مسلمانان شي ) ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ ٱلْأَنْهَٰرُ تَجْرِي مِن تَحْتِيٓ ﴾ ای زماقومه آیانشته مالره ملک سلطنت دمصر اودغه ویالې چي بهېږي (اواصلي منبع يې نيل دی) لاندي تر(ماڼی) زما؟ قرطبي وايې چي ستري ويالې يې ځلوروې چي يوه يې (نهرالملک)بله يې (نهرطولون) بل (نهردمياط) اوځلورم يې (نهرتيس) ووچي ګردي له نيل څخه راجلاشوي وې قتاده وايې معناداچي دباغونوويالې يې دفرعون ترماڼی لاندي رواني وی(۱) ﴿ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴾ آياپس تاسي دغه نه وينئ؟ (چي زماځومره لويې اوجاه او جلال دی او موسی ځومره بېوزله خوارکوتی اوبې نوم اونښانه دی؟ ﴿ أَمْ أَنَا۠ خَيْرٌ مِّنْ هَٰذَا ٱلَّذِي هُوَ مَهِينٌ ﴾ بلکه زه بهتريم له دغه سړي (موسی) چي هغه سپک (اوحقير) دی (هيڅ جاه اوسلطان يې نشته (مقصديې په دې ويناسره موسی ﷺ وو ﴿ وَلَا يَكَادُ يُبِينُ ﴾ اونه دی نژدې (دې ته چي) صاف بيان (دمطلب ) وکړي (نودرسالت لپاره به څرنګه دی مناسب وي؟ ابوالسعودوايې چي فرعون دغه په موسی ﷺ افترآء کوله اودهغه تنقيص يې دخلګوپه وړاندي څرګنداوو څکه چي پخوادهغه په ژبه کي لکنت ووخوالله هغه ترې بېولی ووځکه چي دعايې وکړه ﴿ وَٱحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي يَفْقَهُوا۟ قَوْلِي ﴾ طه: ۲۷ - ۲۸(۲) ﴿ فَلَوْلَآ أُلْقِيَ عَلَيْهِ أَسْوِرَةٌ مِّن ذَهَبٍ ﴾ ولي نه غورځول کېږي په ده باندي وبني له له سروزرو( چي دده کرامت اوعزت وښيي اوپه نبوت يې دلالت وکړي !! مجاهدوايې کله چي به دوی يوتن رئيس ټاکل نوبه يې دوه وبني دسروزرو ورپه لاس کړل اودسروزروطوق (وسام )به يې درياست دڅرګندولولپاره ورپه غاړه کړ(۳) ﴿ أَوْ جَآءَ مَعَهُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِينَ ﴾ ياولي نه دي راغلي له ده سره پرښتې پيوسته چي دده خدمت اوساتنه کوي اودده په رښتنولي تصديق وي ابوحيان وايې چي فرعون ځان په عزت اوپاچهي وستايو اوموسی ﷺ يې له خانه سره پرتله کړچي دهغه بېوزلي اوبېکسي يې څرګنده کړه اوبيايې دااعتراض وکړچي که چېري په رښتياپيغمبروی نو ولي يې پروردګاروبني نه دي ورباندي لوړولي اوپرښتې يې مرستندوی ولي نه دي ورسره رااستولي ؟!!(۴) ﴿ فَٱسْتَخَفَّ قَوْمَهُۥ فَأَطَاعُوهُ ﴾ پس سپک بې عقل وموند(فرعون) خپل قوم پس اطاعت يې وکړ دهغه (فرعون په ګمراهي دده کي) ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمًا فَٰسِقِينَ ﴾ بېشکه چي دوی وويوقوم فاسقان (نودفاسق فرمان يې ومانو) ﴿ فَلَمَّآ ءَاسَفُونَا ٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ ﴾ پس کله چي خفه يې کړو (په غضب يې کړو دوی موږ)نو انتقام

---

(۱) البحرالمحيط ۸/ ۲۲

(۲) دابوالسعودتفسير ۵/ ۴۲

(۳) دقرطبي تفسير ۱۲/ ۱۰۰

(۴) البحرالمحيط ۸/ ۲۲

واخيست موږ له دوی نه)په سخترين عذاب باندی ﴿ فَأَغۡرَقۡنَٰهُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴾ پس غرق ډوب موکړل دوی ټول (په بحيره قلزم کي چي هيڅ يو موژوندی پرې نښود مفسرين کرام وايي فرعون پخپل عظمت اوسلطان باندي غره شوچي وياليې يې ترمانې لاندي رواني دي نو الله په همغه څيزباندي چې ده وړباندي وياړ کاوو هلاک کړهغه داچي دبحرپه اوبويې غرق کړاوپدې کي دااشاره هم شته چي څوک په يوڅيزباندي غره وي په هغه به يې دالله له لوري هلاکت مقرروي ﴿ فَجَعَلۡنَٰهُمۡ سَلَفٗا وَمَثَلٗا لِّلۡأٓخِرِينَ ﴾ پس وموګرزول دوی پېشوايان (لپاره دعبرت اخيستلو) اومثال لپاره دوروستنيو (کفارو په استحقاق دعذاب کي ترڅود دوی له برخه ليک څخه پندواخلي اودوی ته داسي هلاکت او عذاب ونه رسېږي. مجاهدوايي معنا دا چې پېشوايان لپاره دقريشي کفاروچي دوزخ ته به يې بيايي اوعبرت لپاره دوروسته راتلونکودي (۱)﴿ وَلَمَّا ضُرِبَ ٱبۡنُ مَرۡيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوۡمُكَ مِنۡهُ يَصِدُّونَ ﴾ اوکله چي وګرځاووشوزوی دمريمې مثل( پس) ناڅاپه قوم ستاپرهغه (مثال) شورماشورد خوشحالتيا کوي) يعني کله چي به په قرآنکريم کي دعيسی ؑ مثال يادشواودهغومعبودانو يادونه به وشوه چي پرته له الله يې مشرکان بولي نوقريشي مشرکانوبه چيغي اوناري سورې پيل کړې مفسرين کرام وايي کله چي رسول الله ﷺ داآيت شريف تلاوت کړچي ﴿ إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ (الانبياء۹۸) نو(ابن الزبعری) وويل چي آيادغه يوازي زموږلپاره دی اوکه دګردوأمتونو لپاره؟نو رسول الله ﷺوفرمايل دغه ستاسواوستاسودخدايانو(معبودانو ) اوګردو أمتونو لپاره دی نو ويې ويل چي زمادي په رب دکعبې قسم وي درڅخه ومي ګټله! آيانصاری دمسيح عبادت نه کوي؟ اوآيا يهوددعزيرعبادت نه کوي ؟اوآيافلانی قبيله دپرښتوعبادت نه کوي که دغه ټول کسان په اورکي وي بيانوموږهم راضي يوچې زموږمعبودان دي هم په اورکي وي رسول الله ﷺ دوحی دراتلوپه انتظارچُپ پاتي شونودوی داسي وانګېرله چي په دليل کي بريالي شول مشرکانوخندل شورماشور يې جوړکړاوناري يې لوړي شوې (۲)نوالله ﷻ داآيت نازل کړچي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ سَبَقَتۡ لَهُم مِّنَّا ٱلۡحُسۡنَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ عَنۡهَا مُبۡعَدُونَ ﴾ (الانبياء۱۰۱ )قرطبي وايي که (ابن الزبعری) سوچ کړی وای بيابه يې اعتراض نه کاووځکه چي الله تعالی فرمايلي دي ﴿ إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ ﴾ داسي يې نه دي ويلي چي (ومن تعبدون) بلکه الله بتان ښودلي دي او داهغه څه دي چي عقول نلري. حضرت مسيح ؑ اوپرښتې يې مرادنه دي که څه هم چي هغوی هم معبودان وو(۳)﴿ وَقَالُوٓاْ ءَأَٰلِهَتُنَا خَيۡرٌ أَمۡ هُوَۚ ﴾ اووايي دغه (کفار) آيازموږمعبودان غوره دي اوکه هغه غوره دي ؟ (هرکله چي عيسی په دوزخ کي شونو زموږبتان دي هم (ورسره ) په دوزخ کي وي ﴿ مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلَۢاۚ ﴾ نه دی ترلی دوی دغه مثال تالره مګرمحض لپاره

---

(۱) دقرطبي تفسير۱۲/ ۱۰۲

(۲) دقرطبي تفسير۱۲/ ۱۰۲

(۳) نفس المرجع.

دمجادلې خصومت جګړې (د مکابرې لپاره نه دحق دغوښتلو لپاره) ﴿ بَلۡ هُمۡ قَوۡمٌ خَصِمُونَ ﴾ بلکه دوی يوقوم جګړه کونکی دی چې دباطل په هکله سپين سترګي اولجاجت کوي) په التسهيل کې وايې معناداچې دوی دغه مثال ستا لپاره يوازې دمجادلې په توګه راوړې هغه داچې څوک په مناظره کې خپل مقابل لوری مغلوبول غواړي څکه هغه په حقه وي اوکه په باطله ؟ ابن الزبعری اوده ملګروسيالانوته خودانبه معلومه وه چې دالله پدې وينا کې چې ﴿ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ دی عيسی ﷺ نه راځي خودوی مغالطه کوله څکه الله دوی په شديد خصومت سره وستايل چې ﴿ قَوۡمٌ خَصِمُونَ ﴾ (١) بيي وبلل ﴿ إِنۡ هُوَ إِلَّا عَبۡدٌ أَنۡعَمۡنَا عَلَيۡهِ ﴾ ندی دغه (عيسی) مګريوبنده دی چې موږ نعمت پرې کړی وو(نبوت مو ورکړی اوپه رسالت مو نازولی وو هغه اله نه دی اونه يې زوی دی لکه چې نصاراګمان کوي) ﴿ وَجَعَلۡنَٰهُ مَثَلٗا لِّبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴾ اوګرزولی موووده يومثل (نښه دعبرت) لپاره دبني اسرائيلو(چې دالله ﷻ په قدرت باندې ورباندې دليل ونيسي چې الله پاک هغه بې له پلاره پيداکړی وو. امام رازي وايې معناداچې هغه مويوعجيب عبرت ګرزولی وولکه متل داسې به يادېدولکه چې آدم موبې مور اوپلاره پيداکړی همداسې موعيسی ﷺ بې پلاره پيدا کړی وو(٢) ﴿ وَلَوۡ نَشَآءُ لَجَعَلۡنَا مِنكُم مَّلَٰٓئِكَةٗ فِي ٱلۡأَرۡضِ يَخۡلُفُونَ ﴾ اوکه اراده فرمايلې وای موږ نوخامخاګرزولې به مووې دتاسې پرځای پرښتې په ځمکې کې چې خليفګان شوي به وو. مجاهد وايې معناداچې ستاسې پرځای به هغوی دځمکې تعمير او ودانول کول (٣) ﴿ وَإِنَّهُۥ لَعِلۡمٞ لِّلسَّاعَةِ ﴾ او بېشکه دغه (عيسی) خامخاعلامه نښه ده دپاره دقيامت څکه چې هغه به نژدې قيامت ته له آسمانه را کوزېږي. ابن عباس اوقتاده وايي چې حضرت عيسی ﷺ دقيامت له علائموڅخه دی څکه چې لږ دمخه ترقيامت به له آسمانه راښکته کېږي ﴿ فَلَا تَمۡتَرُنَّ بِهَا ﴾ پس شک مه کوئ تاسې په (راتلود) قيامت کې (هغه خامخاراتلونکی دی په حديث شريف کې راځي چې: نژدې دی تاسوته دی عيسی بن مريم عادل قضاوت کونکی راشي(٤). ﴿ وَٱتَّبِعُونِۚ هَٰذَا صِرَٰطٞ مُّسۡتَقِيمٞ ﴾ (اوتاسې متابعت وکړئ زما(په دين کې) دغه لاره سمه برابره ده(چې هيڅوک نه پرې ګمراه کېږي) يعني ای محمده دوی ته ووايه چې زمادهدايت اوشريعت متابعت وکړئ دغه دين چې زه تاسو ورته رابولم سمه سيخه لاره ده ﴿ وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُۖ إِنَّهُۥ لَكُمۡ عَدُوّٞ مُّبِينٞ ﴾ اونه دې اړوي تاسې له دغې لارې) بېشکه چې دغه (شيطان) تاسې ته ښکاره دښمن دی (چې ستاسې پلاربې لاله جنته څخه بربنډ راويوست اودنور جامې بې ترې وکښلې ﴿ وَلَمَّا جَآءَ عِيسَىٰ بِٱلۡبَيِّنَٰتِ قَالَ قَدۡ جِئۡتُكُم بِٱلۡحِكۡمَةِ ﴾ اوکله چې راغی

---

(١) التسهيل لعلوم التنزيل ٤/ ٣٢

(٢) کبيرتفسير ٢٧/ ٢٢٢

(٣) القرطبي ١٢/ ١٠٥

(٤) رواه البخاري.

عیسی په ښکاره دلائلو سره وویل: عیسی چې په تحقیق راغلی یم زه تاسې ته په حکمت (معجزاتو او نبوت شریعت سره څرنګه چې یې الهي حکمت غوښتنه او تقاضا کوي) ﴿ وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ ٱلَّذِى تَخْتَلِفُونَ فِيهِ ﴾ او لپاره ددې چې بیان کړم تاسې ته ځینې له هغو احکامو چې وی تاسې چې اختلاف به مو کاوو په هغوکې (له دیني چارو څخه) ابن جزي وایې داچې ویې فرمایل ﴿ بَعْضَ ٱلَّذِى ﴾ تو ل یې ونه ویل ځکه چې انبیاء علیهم السلام خو دیني چارې ښیي دنیوي نه ښیي([1]) او طبري وایې([2]) معنا داچې (دیني امور، نه دنیوي) ﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ پس ووېرېږئ له (عذابه د) الله او زما اطاعت وکړئ یعني د الله د اوامرو امتثال او له نواهیو څخه اجتناب وکړئ او زه چې کوم شرعي تکالیف در ته ښیم په هغو کې مې اطاعت وکړئ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ رَبِّى وَرَبُّكُمْ فَٱعْبُدُوهُ ﴾ بېشکه الله هم هغه دی چې رب زما او رب ستاسو دی پس عبادت کوئ یوازي دده (الله او حکم یې منئ) ابن کثیر وایې معنا داچې زه او تاسې د الله بندګان یو هغه ته محتاج او یوازې دهغه عبادت کونکي یو ﴿ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾ دغه لاره سمه برابره (د توحید او شریعت ده کومه چې جنات النعیم ته رسېدونکې ده).

الله تعالی فرمايي:

﴿ فَٱخْتَلَفَ ٱلْأَحْزَابُ مِنۢ بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴿٦٥﴾ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا ٱلسَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٦﴾ ٱلْأَخِلَّآءُ يَوْمَئِذٍۭ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا ٱلْمُتَّقِينَ ﴿٦٧﴾ يَٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ ٱلْيَوْمَ وَلَآ أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٦٨﴾ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُوا۟ مُسْلِمِينَ ﴿٦٩﴾ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْجَنَّةَ أَنتُمْ وَأَزْوَٰجُكُمْ تُحْبَرُونَ ﴿٧٠﴾ يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ ۖ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ ٱلْأَنفُسُ وَتَلَذُّ ٱلْأَعْيُنُ ۖ وَأَنتُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٧١﴾ وَتِلْكَ ٱلْجَنَّةُ ٱلَّتِىٓ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٧٢﴾ لَكُمْ فِيهَا فَٰكِهَةٌ كَثِيرَةٌ مِّنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٧٣﴾ إِنَّ ٱلْمُجْرِمِينَ فِى عَذَابِ جَهَنَّمَ خَٰلِدُونَ ﴿٧٤﴾ لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٥﴾ وَمَا ظَلَمْنَٰهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا۟ هُمُ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٧٦﴾ وَنَادَوْا۟ يَٰمَٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ۖ قَالَ إِنَّكُم مَّٰكِثُونَ ﴿٧٧﴾ لَقَدْ جِئْنَٰكُم بِٱلْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كَٰرِهُونَ ﴿٧٨﴾ أَمْ أَبْرَمُوٓا۟ أَمْرًا فَإِنَّا مُبْرِمُونَ ﴿٧٩﴾ أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَىٰهُم ۚ بَلَىٰ وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ ﴿٨٠﴾ قُلْ إِن كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْعَٰبِدِينَ ﴿٨١﴾ سُبْحَٰنَ رَبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ رَبِّ ٱلْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٨٢﴾ فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا۟ وَيَلْعَبُوا۟ حَتَّىٰ يُلَٰقُوا۟ يَوْمَهُمُ ٱلَّذِى يُوعَدُونَ ﴿٨٣﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى فِى ٱلسَّمَآءِ إِلَٰهٌ وَفِى ٱلْأَرْضِ إِلَٰهٌ ۚ وَهُوَ ٱلْحَكِيمُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٨٤﴾ وَتَبَارَكَ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَعِندَهُۥ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٨٥﴾ وَلَا يَمْلِكُ ٱلَّذِينَ

---

([1]) التسهيل ۴/ ۳۲

([2]) مختصر ابن کثیر ۳/ ۲۹۵

يَدْعُونَ مِن دُونِهِ ٱلشَّفَٰعَةَ إِلَّا مَن شَهِدَ بِٱلْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٨٦﴾ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٨٧﴾ وَقِيلِهِۦ يَٰرَبِّ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾ فَٱصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلَٰمٌ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٨٩﴾ ﴾ الزخرف: ٦٥ ـ ٨٩

**مناسبت:**

کله چي الله ﷻ دعيسى ﷺ يادونه وکړه اودعوت بلنه يې وښوده ورپسې يې داهل کتابوضلالت ذکرکړچي څرنګه يې په هکله ډلګۍ ډلګۍ شول اواختلاف يې خپل کړځينوبه ويل چي هغه اله دی ځينوبه ويل چي هغه دالله زوی دی ځينوبه ويل چي هغه ددريودريم دی بياالله دقيامت کړاوونه اوحالات بيانوي اودسورت پای دحق معبودچي واحدأحد جل وعلاذات دی په صفاتوپای ته رسېږي

**لغتونه:**

(الأخلاء) دخليل جمع اوګران دوست ته وايي (تحبرون) خوشحاله کېږئ( اکواب) دکوب جمع هغه پيالې ته وايي چي لاستی نه لري (مبلسون) له رحمته څخه ناهيلي اوله ډېري ناأميدي غمجن ته وايي (أبرموا) محکم کړی دی (ابرام) احکام ته وايي (يؤفکون) اړول کاووشي.

**دنزول سبب:**

مقاتل وايي مشرکانوپه دارالندوه کي درسول الله ﷺ دقتل توطئې جوړي کړې آن تردې چي داخبره يې دابوجهل په وړانديزسره غوته کړه چي له هري قبيلې څخه به يوتن درسول الله دوژلولپاره ګډون کوي څوچي دهغه دوژلو په توريوه قبيله متهم نشي(1) (اوبني عبد المطلب بياديت اخيستلوته چمتوشي).

**تفسير:**

﴿ فَٱخْتَلَفَ ٱلْأَحْزَابُ مِنۢ بَيْنِهِمْ ﴾ پس مختلف شول سره دغه قومونه (دنصاراوو) پخپل مينځ کي (په شان دعيسى ﷺ کي . ابن کثيروايي چي ډلي ډلي شول ځيني هغه ووچي ويل به يې هغه دالله بنده اوپيغمبردی اودغه حق پرستان ووځينوداسي ادعاء لرله چي هغه دالله زوی اوځينو پخپله الله بالو (تعالى الله عن قولهم علواً کبيرا) ﴿ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴾ پس افسوس هلاک خرابي ده دپاره دهغوکسانوچي ظلم يې کړی دی(په باب دعيسى کي) له عذابه دورځي دردونکي(چي دقيامت ورځ ده) ﴿ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا ٱلسَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً ﴾ آيامنتظردي دغه (مشرکان مکذبان يعني نه دي) مګرقيامت ته چي رابه شي دوی ته يوناځاپه ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ اودوی به نه پوهېږي (په دنيوي چاروکي به غافل اواخته وي هله به پښېماني کوي چي پښېماني ورته کومه ګټه نلري بياالله جل جلاله دقيامت احوال داسي يادوي: ﴿ ٱلْأَخِلَّآءُ يَوْمَئِذٍۭ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا ٱلْمُتَّقِينَ ﴾ ياران دوستان په دنياکي په دغه ورځ (دقيامت کي) ځيني ددوی له ځينو نورو سره به دښمنان وي مګر(پاتي به وي) دوستي دمتقيانوهغه چي محبت يې لِلّه وي ابن کثيروايي هرمحبت او صداقت چي لغيرالله وي

(1) دابن کثيرمختصر ٣ /٢٩٥

دقيامت په ورځ به په دښمني بدلېږي مګرهغه چي خاص دالله لپاره وي هغه به تل ترتله وي(١) ابن عباس وايي چي هره يارانه به په قيامت کي په دښمني بدلېږي پرته له متقيانو او ددوی دخوشحالولو اوتعظيم لپاره الله فرمايي: ﴿ يَٰعِبَادِ ﴾ ای (زما(مؤمنو) بندګانو (هغه چي د رب العلمين لپاره موعبادت ترسره کړی دی ﴿ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ ٱلْيَوْمَ وَلَآ أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴾ نشته هيڅ ويره پرتاسي نن (پرسخته ورځ) اونه به تاسي غمجن کېږی (په هغه څه چي په دنياکي درڅخه پاتي شوي دي) بيايې تفسيرهسي فرمايي ﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُوا۟ مُسْلِمِينَ ﴾ هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی په آيتونوزموږ او وودوی مسلمانان(په دنياکي) يعني هغوی چي دقرآنکريم تصديق يې کړی وو اودالله حکمونوته يې غاړه ايښي وه دالله طاعت يې کاوو ﴿ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْجَنَّةَ أَنتُمْ وَأَزْوَٰجُكُمْ تُحْبَرُونَ ﴾ ننوزئ (ای زمامؤمنانوبندګانو) جنت ته تاسي او (مؤمناني)ښځي ستاسي چي خوشحال به کړل شی (په نعمتونو دجنتونوباندي اودخوبنی ښي ښاني به ستاسي په مخونو څرګندي شي) ﴿ يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ ﴾ (ګرزول کېږي به (دغلمانوله خوا) پردغو جنتيانو کاسې ګلاسونه دسروزرو (اوطلائي) صراحې ګاني) يعني جنتيانوته په زرينوکاسوکي خوراکونه راوړل کېږي او(زريني) پيالې به دشرابوورته ډکي وړاندي کېږي . مفسرين کرام وايي چي دجنتيانودخوړلو کاسې اودڅښلولوښي به ګرددسرو اوسپينو زرو وي لکه چي الله تعالی فرمايي: ﴿ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِـَٔانِيَةٍ مِّن فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا۠ ﴾ الإنسان: ۱۵ په حديث شريف کي راځي: تاسي دوربښموجامې مه اغوندئ او دسروسپينوزروپه کاسواولوښوکي خوراک مه کوئ اوپه زرينوګلاسونوکي څښاک مکوئ ځکه دغه ددوی (کفارو) لپاره په دنياکي اوستاسي لپاره په آخرت کي دي(٢) ﴿ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ ٱلْأَنفُسُ وَتَلَذُّ ٱلْأَعْيُنُ ﴾ اووي به (دوی ته) په دغه (جنت) کي هغه څيزونه چي خواهش کوي دهغونفسونه (ددوی) اوچي پرې خونداخلي سترګي (ددوی چي قسماقسم لذائذاومشتهيات اودول ډول ښايسته مناظربه وي ﴿ وَأَنتُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ اوتاسي به په دغه جنت کي تل همېشه اوسېدونکي ياست (هيڅکله به څني نه وزی . ابوالسعودوايي چي دغه دنعمتونو بشپړاوی اودخوشحالي اکمال دی ځکه هرفاني نعمت ددې موجب وي چي دزوال ويره يې و ي(٣)کله چي يې دجنت يادونه وکړه چي هغه دخوښي ځای دی نوبيايې دهغه نعمتونه وستايل لومړی يې د خوړلو اوبيا څښلولوښي وښودل ورپسې يې يوبشپړ بيان هسي زيات کړچي ﴿ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ ٱلْأَنفُسُ وَتَلَذُّ ٱلْأَعْيُنُ ﴾ خودنعمت پشپړوالی يې په خلوداوبقاسره بيان کړاودنعمتونو حصريې هسي وفرمايوچي ګردشيان ياخودزړونوغوښتونکي (مشتهاة)وي اويا په سترګوباندي ښه لګېدونکي زړه راښکونکي

(١) نفس المرجع السابق.

(٢) متفق عليه .

(٣) دابوالسعودتفسير ۵ / ۴۹

﴿ وَتِلۡكَ ٱلۡجَنَّةُ ٱلَّتِيٓ أُورِثۡتُمُوهَا بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴾ اودغه جنت دى هغه چي په ميراث دركړل شوى دى هغه تاسوته په سبب دهغو(نېكوعملونو) چي تاسي به په دنياكي كول ابن كثيروايي معناداچي ستاسي نېک اعمال دالله درحمت سبب شول چي تاسي ته جنت دركول شوځكه پخپل عمل هيڅوک هم جنت ته نه داخلېږي بلكه دالله په فضل اومرحمت سره جنت ترلاسه كېږي هوكي ددرجاتواومرتبوتفاوت دنېكواعمالوپه سبب شونى دى (۲) په حديث شريف كي راغلي چي هريوستاسوته يوكورپه جنت كي دى اويل كورپه دوزخ كي كافردمؤمن هغه كورچي په دوزخ كي يې شته ترلاسه كوي اومؤمن بيادكافرهغه دجنت كورپه ميراث اخلي اودغه الله تعالى داوينادي چي فرمايي ﴿ وَتِلۡكَ ٱلۡجَنَّةُ ٱلَّتِيٓ أُورِثۡتُمُوهَا بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴾ (۳) ﴿ لَكُمۡ فِيهَا فَٰكِهَةٞ كَثِيرَةٞ مِّنۡهَا تَأۡكُلُونَ ﴾ (شته تاسي ته په دغه (جنت) كي (ښې غوره) مېوې ډېري چي له هغوڅخه به يې خورى تاسي) يعني پرته دخوراک اوڅښاک له توكوډول ډول مېوې دفاكهې په توګه شته . مفسرين كرام وايي چي جنتيان به ځيني مېوې دجنت خوري اونوري به تل ترتله په ونوباندي خوړندي وي چي هيڅكله به هم كومه ونه بې مېوې نه ترسترګو كېږي ځكه كه دكومي ونې مېوه وخوړل شي سمدستي به يې ځا , نوره مېوه ډكوي په حديث شريف كي راغلي چي هيڅوک په جنت كي كومه مېوه نه غوځوي خو پرځاى يې سمدلاسه نوره مېوه رازرغونه شي (۴) كله چي الله دنېكمرغه خلكوحال بيان كړ ورپسې يې دبدمرغانو اواشرارو فجارو بيان هسي وفرمايو ﴿ إِنَّ ٱلۡمُجۡرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَٰلِدُونَ ﴾ ببشكه چي مجرمان (كافران) به په عذاب ددوزخ همېشه پاتي كېدونكي وي. صاوي وايي چي مرادله مجرمينو څخه كافران دي ځكه چي دمؤمنانوپه مقابله كي ذكرشوي دي ﴿ لَا يُفَتَّرُ عَنۡهُمۡ ﴾ نه به سپكاوو شي له دوى څخه (عذاب) يوه شېبه هم) ﴿ وَهُمۡ فِيهِ مُبۡلِسُونَ ﴾ او دوى به په دغه عذاب كي نااميده (ناهيلي) وي (له هره خيره) ﴿ وَمَا ظَلَمۡنَٰهُمۡ وَلَٰكِن كَانُواْ هُمُ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوموږپردوى ظلم ندى كړى وليكن دوى ووهمدوى ظالمان (چي ځانونه يې دتل ترتله عذاب مستحق كړل) ﴿ وَنَادَوۡاْ يَٰمَٰلِكُ لِيَقۡضِ عَلَيۡنَا رَبُّكَۖ ﴾ اوغږبه وكړي (دوزخيان) چي اى مالكه (خازنه ددوزخ) حكم دي وكړي پرموږرب ستا(چي مړه شواوله دغه عذابه خلاص شو) . ابن عباس وايي چي دوى ته به وروسته له يوزركالوځواب وركول شي (۵) ﴿ قَالَ إِنَّكُم مَّٰكِثُونَ ﴾ وبه وايي (مالک بسيا وروسته له زروكالوددوى په ځواب كي) چي ببشكه تاسي (ژوندي) پاتي كېدونكي يى(په دوزخ كي چي په هيڅ توګه تري خلاصېدلاى نشى ﴿ لَقَدۡ جِئۡنَٰكُم بِٱلۡحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَكُمۡ لِلۡحَقِّ كَٰرِهُونَ ﴾ خامخاپه تحقيق راغلي وو موږتاسي ته (دانبياوو په وسيله ) په حق سره وليكن زياتره ستاسي حق لره بد ګڼونكي يى؛

(۱) حاشيه شيخ زاده على البيضاوي ۳ / ۳۰۴

(۲) دابن كثير مختصر ۳ / ۲۹۶

(۳) أخرجه ابن ابي حاتم .

(۴) دابو السعود تفسير ۵ / ۴۹

(۵) دابن كثير مختصر

دغه خطاب دتقریع اوتوبیخ دی یعني ای کفارومورډتاسي ته په څرګند برهان سره راغلي وولیکن تاسودالله له دین څخه کرکه اونفرت کاوو ځکه چي ستاسوله خواهشاتواوشهوتونوسره په ټکرکي وو. امام رازي وايي دغه لکه دپخواني مذکور علت ګڼوندي دی اومقصدددوی نفرت له قرآنکریم او محمدصلی الله علیه وسلم سره ښيي او داچي له حق دین سره يې سخت بغض کاوو([1]) ﴿ أَمْ أَبْرَمُوٓا۟ أَمْرًا فَإِنَّا مُبْرِمُونَ ﴾ بلکه محکم کړی دی (کفارودانبیاووپه خلاف) یوکار پس بېشکه موږهم محکم کونکي یو (دخپل تدبیرچي دانبیاوو مرسته کوو) دلته کلام له قریشي کفاروڅخه بیانېږي یعني دغه مشرکان دمحمد ﷺ په هکله چي کومه توطئه محکموي نوموږ خپل امر دده په نصرت اوحمایت کي محکموو اوکفار هلاکوو. مقاتل وايي چي دغه آیت ددوی دهغي توطئې په هکله کومه چي مشرکانوپه دارالندوة کي سره غوټه کړه نازل شوی دی([2]) ﴿ أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَىٰهُم ﴾ (آیاګمان کونکي دي (کفار) چي بېشکه موږ نه اورو پټي خبري ددوی اوپټي مشورې ددوی (نه ده داسي) یعني آیادوی داګمان کوي چي ددوی په پټو رازونو اویاهغه پټ دزړه په خوالوزموږاورېدل نشته ؟ په التسهیل کي وايي چي (سر) هغه څه پټ رازته وايي چي سړي يې له خپله ځانه سره اویابل چاته پټ ووايي او(نجوی) بیاهغه وي چي پخپل مینځ کي ورباندي خبري وکړی شي ([3]) ﴿ بَلَىٰ وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ ﴾ بلکه اورو يې اوزموږ رسولان(چي حفظه ملائکي دي) له دوی سره دي چي لیکي(ټول اعمال ددوی) روایت کېږي چي دغه آیت شریف دأخنس بن شریق اوأسودبن عبدیغوث په هکله نازل شوی چي دوی دواړه یوځای شول أخنس وویل آیاالله زموږپټ راز اوري؟ هغه بل ورته وویل زموږ(نجویٰ) مشوره اوري اوپټ رازنه اوري([4])

﴿ قُلْ إِن كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْعَٰبِدِينَ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته !) که وي بالفرض والتقدیرلکه چي تاسي وایاست) رحمن ته ولد(زوی لور) پس زه به (دغه ولدلره) ړومبی له عبادت کونکووم (خوالله تعالی جل جلاله له زوجي او ولدڅخه منزه دی. قرطبي وايي ددې مثال هسي دی لکه چي ته یوچاته دمناظرې په وخت کي وايي که داستاراییه په دلیل ثابته شي نوزه به لومړنی څوک یم چي عقیده به پرې کوم اودغه په استبعادکي مبالغه اوهمدارنګه په کلام کي نرمښت دی([5])طبري وايي چي دغه په کلام کي ملاطفت دی. بیضاوي وايي چي پدې کي دولددثبوت اودهغه دعبادت په بشپړه توګه نفي شته هسي نه چي پدې سره دي دولد دوجود اوعبادت سم والی ښکاره شي بلکه له ولدڅخه انکاردعنادله مخي نه دی شوی خوکه چېري بالفرض وای نوبه په طریقه اولی سره خلګوپه هغه اعتراف کاوو اونبي

---

([1]) کبیرتفسیر ۲۷/ ۲۲۷

([2]) دقرطبي تفسیر ۱۲/ ۱۱۸

([3]) التسهیل ۴/ ۳۳

([4]) التسهیل ۴/ ۳۳

([5]) قرطبي ۱۲/ ۱۱۸

عليه السلام خو په الله ﷻ اوهغه څه چي له الله سره نه ښايي ښه عالم دی (١) ﴿ سُبْحَٰنَ رَبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ رَبِّ ٱلْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴾ پاكي ده رب دآسمانونو ته او(رب د) ځمكي ته رب دعرش ته له هغه څه چي بيانوي (دوی ورته چي نسبت دولد اوشرک اونورعيوب دي) ﴿ فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا۟ وَيَلْعَبُوا۟ ﴾ پس پرېږده دوی چي غوټې وهي (په جهل ضلال اوباطلوخبرو) اولوبي كوي (په دنيا خپله كي) ﴿ حَتَّىٰ يُلَٰقُوا۟ يَوْمَهُمُ ٱلَّذِى يُوعَدُونَ ﴾ ترهغه پوري چي ملاقات وكړي له ورځي ددوی سره هغه (هغه ورځ) چي وعده كړی شوی ده (له دوی سره په دغه ورځ دقيامت كي دعذاب نوژر به ووينې چي ددوی حال اوبرخه ليک به څه وي؟)

﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى فِى ٱلسَّمَآءِ إِلَٰهٌ وَفِى ٱلْأَرْضِ إِلَٰهٌ ﴾ اوالله هغه (لوی ذات) دی چي په آسمانونو كي معبوددی اوپه ځمكه كي معبوددی . په التسهيل كي وايي معناداچي هغه دځمكي داهل اودآسمان داهل معبوددی ابن كثيروايي يعني هغه دهغه چاچي په آسمانونواوځمكه كي معبوددی ګرددهغه عبادت كوي هغه ته غاړه ايښودونكي اوپه وړاندي يې خضوع كونكي دي(٢)﴿ وَهُوَ ٱلْحَكِيمُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ (اوهم دی ښه حكمت والاښه عالم) يعني اوهمدی ښه حكمت والاپه تدبيردخپل مخلوق اوښه عالم په مصلحتونو دوی دغه لكه چي دالله په وحدانيت باندي دليل وي﴿ وَتَبَارَكَ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ﴾ اوبركت ناک دی هغه (لوی ذات) چي خاص ده ته دی ملک سلطنت دآسمانونو اودځمكي اودهرهغه څه چي په مينځ ددغودواړو كي دي(له انسانانو، پېريانو اوپرښتوڅخه چي ددوی ګردو خالق، مالک اوپه كائناتو كي متصرف دی هيڅوک يې ممانعت اومدافعت نشي كولای) ﴿ وَعِندَهُۥ عِلْمُ ٱلسَّاعَةِ ﴾ او(خاص) همده سره دی علم دقيامت (چي څه وخت به وي) ﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ او(خاص) هم دغه (الله) ته بيرته بېولی شي (تول قيامت ته لپاره دجزآء چي هرچاته به پخپل عمل باندي جزاوركړي

﴿ وَلَا يَمْلِكُ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ ٱلشَّفَٰعَةَ ﴾ او اختيارنلري هغه معبودان چي دوی يې عبادت كوي بې له دغه (الله) دشفاعت (لكه چي منكران ګمان كوي) ځكه چي شفاعت دالله په اذن باندي ترسره كېږي ﴿ إِلَّا مَن شَهِدَ بِٱلْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ مګر هغه څوک چي شاهدي يې ويلي وي (په ژبه) په حقه سره (ايمان يې راوړی په پوهي اوبصيرت نو دهغه شفاعت ګټه لري) ﴿ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ حال داچي دوی پوهېږي (اوعلم يې وي پرهغوباندي په زړه سره) چي شفاعت پرته دالله له اذنه نشي كېدای . مفسرين كرام وايي چي مرادله ﴿ مَن شَهِدَ بِٱلْحَقِّ ﴾ څخه حضرت عيسى ، عزير اوملائكه دي ځكه دوی دالله دوحدانيت اوحق

---

(١) دغه ويناښه اوسمه ده چاپياويلي چي (ان) د(ما) په معنادی يعني (ماكان للرحمن ولد) يعني الله لره ولدنشته بيابه كلام دلته بشپړوبلل شي اوبيرته به پيل شي فقال ﴿ فَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلْعَٰبِدِينَ ﴾ خودغه ويناكمزوري ده.

(٢) مختصرابن كثير ٣ /٢٩٨

شاهدي ويونكي دي نوددوی شفاعت دمؤمنانولپاره گټوردی که څه هم دوی پرته له الله معبودان گڼل شوي دي ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ ﴾ اوقسم دی که وپوښتې ته دوی چي چاپيداکړي دي دغه (عابدان او معبودان) نوخامخاوبه وايې هرومرو دوی چي الله (پيداکړي دي دوی په دې اعتراف کوي چي الله خالق دی خوله دې سره دهغه چاعبادت کوي چي هغه په هيڅ څيزقادرنه وی ﴿ فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴾ پس کوم طرف ته گرزول کېږي دغه (مشرکان له عبادت درحمان څخه عبادت دبتانوته ؟ دغه نهايته جهل او پرېمانه ناپوهي ده) ﴿ وَقِيلِهِۦ يَٰرَبِّ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴾ او(قسم دی) پردغي وينادد غه (رسول چي ای زماربه بېشکه (دغه قريش مشرکان) يوقوم دی چي دوی ايمان نه راوړي) (په قرآن اونه په رسالت زماباندي . قتاده وايي چي دغه ستاسودپيغمبر رسول الله ﷺ وينا ده چي دخپل قوم شکايت خپل پروردگارته وراندي کوي (۱) ﴿ فَٱصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلَٰمٌ ﴾ (پس مخ وگرزوه له دوی (اوطمع پرې کړه له ايمانه ددوی) او ووايه (ای محمده دوی ته غواړم له شره ستاسو ) سلامتي يعنی ای محمده له دوی څخه مخ وگرزوه اوددوی دچلند په شان ورسره چلندمه کوه ! صاوي وايي چي دغه له دوی څخه دبېزاري اوليري والي په هکله حکم دی کفاروته دسلام وراچولو په معنانه دی (۲) قتاده وايي الله لومړی خل په مخ اړولواوتېری کولو ورته حکم کړي اوبيايې له دوی سره دقتال کولو حکم ورته فرمايلي دي نو(صفح) په (سيف) سره منسوخ شوی دی(۳) ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ پس ژردی چي پوه به شي دوی (په عاقبت دکفر، اجرام اوتکذيب خپل دغه دمشرکانولپاره وعيداوتهديداودرسول الله ﷺ لپاره تسليت دی(۴)

**بلاغت:**

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لندېزيې دادی:

۱- بليغه تشبيه لکه ﴿ جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ مَهْدًا ﴾ يعني لکه مهداوفراش دتشبيه توری (ادات) اودشبه وجه حذف شوی بليغه تشبيه گڼل کېږي

۲- تبعيه استعاره چي پدې کلام کي دی ﴿ فَأَنشَرْنَا بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا ﴾ څمکه يې ترباران اورېدلود مخه له مړه انسان سره مشابه گڼلی بيايې په باران راپاڅولي نوپدې کي تبعيه استعاره ده.

۳- تاکيدپه (ان) او(لام) باندي سره دمبالغې له صيغې چي کله فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَكَفُورٌ مُّبِينٌ ﴾ فعول اوفعيل دواړه دمبالغې صيغې دي

۴- تهکمي اسلوب دتوبيخ اوتقريع لپاره پدې آيت شريف کي چي ﴿ أَمِ ٱتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ وَأَصْفَىٰكُم بِٱلْبَنِينَ ﴾ اودبنين اوبنات ترمينځ دطباق صنعت دی.

---

(۱) مختصر ۳/ ۲۹۸

(۲) دصاوي حاشيه .

(۳) قرطبي تفسير ۱۲/ ۱۲۴

(۴) دابو السعود تفسير ۵ /۵۱

۵ - مرسل مجازهلته چي فرمايي ﴿ وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ ﴾ مراد په کلمه سره هغه جمله ده چي ويلي يې وو ﴿ إِنَّنِي بَرَاءٌ مِّمَّا تَعْبُدُونَ ﴾ نو دلته په لفظ کي مجاز دی.

۶ - استعاره پدې کلام کي چي: ﴿ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ ﴾ کفاريې له کڼو ړندو سره د تمثيلي استعارې په راوړلو مشابه کړي دي.

۷ - اشتقاقي جناس د الله جل جلاله په دې کلام کي ﴿ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رُّسُلِنَا ﴾ چي د دواړو ترمينځ د شکل او ځينو نورو تورو تغييرشته دی.

۸ - حذف الايجازپدې آيت کي ﴿ بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ ﴾ چي په حقيقت کي د اکواب من ذهب دی خو هغه حذف شوی ځکه چي پخوانی کلام وربانديې دلالت کوي.

۹ - دعام يادونه وروسته له خاص څخه لکه داچي: ﴿ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ ﴾ وروسته له دې قوله چي ﴿ يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ ﴾ د آيت ترپايه.

۱۰ - دطباق صنعت لکه ﴿ أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُم ﴾ ځکه مراد خني پټه او ښکاره ده.

۱۱ - زړه راښکونکي سجع چي تکلف په کي نه وي لکه ﴿ كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴾ ﴿ مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ مَا تَرْكَبُونَ ﴾ ﴿ وَإِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ ﴾ او نور د ېرداسي بديعي محسنات چي په دې سورت کي راغلي دي.

د الله ﷻ په مرسته د الزخرف سورت تفسيربشپړشو.

***

## دا الدخان سورت مکي او نه پنځوس آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

دا الدخان سورت مکي او د مکي سورتونو أهداف او موخي لکه توحید، رسالت او بعث څېړي ترڅو چي دایمان ستني ټينګي او عقیده مضبوطه شي.

سورت په پيل کي له قرآن کریمه غږېږي هغه چي تلپاتي معجزه او ترهغو به باقي وي څو چي دغه ځمکه او دهغې اوسېدونکي وي او بيا الله تعالی ته ورد رومي دسورت په ترڅ کي دا ښودل کېږي چي دغه پاک کتاب له ډېرو غوره دعمرشپو څخه په يوه ډېره مبارکه شپه چي دقدرشپه ده الله نازل کړی دی ددغي شپې شرف يې پدې څرګند کړی چي په هغې کي دخلګو چاري تدبيرمومي او دغه شپه پاک الله دهغه آسماني کتاب درانازلولو لپاره چاڼ کړي ده چي دټولو وروستنی کتاب او په وروستني پيغمبر حضرت محمد ﷺ رانازل شوی دی

بيا دمشرکانو دريز دنوموړي کتاب په هکله څرګندوي چي دوی دهغه په باب شک او شبهې لري سره له دې چي آيتونه يې روښانه او دلائل يې څرګند دي نو دوی ته دسخت عذاب وېرونه ورکوي.

وړپسې دفرعون او تېر څخه يې پرده پورته کوي چي څرنګه دخپل طغيان او کفر داورشومه شول او څومره سخت عذاب ورته ورسېد وچي ګڼ باغونه او ماڼۍ تري پاتي شوې چينې، ويالې او نعمتونه يې ګردبني اسرائيلو ته په ميراث ورسېدل او بيا دهغوی (بني اسرائيلو) تيت او پرک کېدل او اختلاف را اخلي کله چي يې دالله ﷻ داو امرو عصيان ته مخه کړه.

سورت دقريشي مشرکانو هغه انکار چي دبعث او نشور په هکله يې لرل بيانوي دوی دبيرته راژوندي کېدلو مرحله ډېره ليري او مستبعد ګڼله ځکه يې نو دپيغمبرانو تکذيب کاوو دلته داپه ګوته کوي چي دوی په الله باندي ترهغو سرغړونکو اُمتونو ګران نه دي چي پخوايې دخپلو پيغمبرانو تکذيب کړی او هلاک شوي دي دغه دمکذبينو هلاکول دالله ﷻ تېره لاره ده چي هيڅکله تغيير نه مومي.

په پای کي سورت دنېکانو او فاجرانو برخه ليک کاږي لکه چي دقرآنکريم اسلوب دی ترغيب او ترهيب سره يو ځای راوړي او تبشير او انذار سره نغاړي

تسميه او نوموول يې:

ځکه يې دا الدخان سورت بولي چي الله ﷻ دغه ددوی دوېروني لپاره يونښه را استولي ده دوی په سخته کاختي اولوږه کي پدې سبب اوسېدل چي درسول الله ﷺ تکذيب يې کاو والله ﷻ ورباندي لوګی راواستاوو چي نژدې وو ګرد هلاک شي بيا الله پاک درسول الله ﷺ ددعا په برکت وژغورل

***

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

حمٓ ﴿١﴾ وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ ﴿٢﴾ إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ ۚ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ﴿٣﴾ فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ ﴿٤﴾ أَمْرًا مِّنْ عِندِنَا ۚ إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴿٥﴾ رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٦﴾ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ ﴿٧﴾ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۖ رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨﴾ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ

يَلْعَبُونَ ﴿٩﴾ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ ﴿١٠﴾ يَغْشَى النَّاسَ هَٰذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١١﴾ رَّبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ ﴿١٢﴾ أَنَّىٰ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ ﴿١٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلَّمٌ مَّجْنُونٌ ﴿١٤﴾ إِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيلًا ۚ إِنَّكُمْ عَائِدُونَ ﴿١٥﴾ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ إِنَّا مُنتَقِمُونَ ﴿١٦﴾ ۞ وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَاءَهُمْ رَسُولٌ كَرِيمٌ ﴿١٧﴾ أَنْ أَدُّوا إِلَيَّ عِبَادَ اللَّهِ ۖ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٨﴾ وَأَن لَّا تَعْلُوا عَلَى اللَّهِ ۖ إِنِّي آتِيكُم بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿١٩﴾ وَإِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُمْ أَن تَرْجُمُونِ ﴿٢٠﴾ وَإِن لَّمْ تُؤْمِنُوا لِي فَاعْتَزِلُونِ ﴿٢١﴾ فَدَعَا رَبَّهُ أَنَّ هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُونَ ﴿٢٢﴾ فَأَسْرِ بِعِبَادِي لَيْلًا إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴿٢٣﴾ وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ۖ إِنَّهُمْ جُندٌ مُّغْرَقُونَ ﴿٢٤﴾ كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿٢٥﴾ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿٢٦﴾ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ ﴿٢٧﴾ كَذَٰلِكَ ۖ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ ﴿٢٨﴾ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ وَمَا كَانُوا مُنظَرِينَ ﴿٢٩﴾ ﴾ الدخان: ١ ـ ٢٩

**لغتونه:**

(يفرق) جلاكاووشي بيانېږي (ارتقب) منتظرشه (يغشى) پټوي احاطه كاووشي (نبطش) موږنيسو،په زور اوقوت سره نيول بطش بولي (فتنا) موږ وازمويلى (تعلوا) تكبراولويي بې وكړه (عذت) پناه مي يوووړه الله ته (أسر) دشپې تګ وكړه (رهوا) ساكن ،عربان (رهو) سكون ته وايې جوهري وايې (رهاالبحر) معناداچې ساكن اوآرام شواوچې وايې (جاءت الخيل رهوا) معناداچې آسان په آرام اوكرار راغلل (منظرين) مهلت وركول شوى (نعمة) په فتحه (زور) سره دسوكالي اوراحت ژوند ته وايې اوپه كسره (زېر) سره بيااحسان، وركړې اوافضال ته ويل كېږي

**دنزول سبب:**

له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت شوى وايې چې كله قريشوله رسول الله ﷺ څخه سرغړونه اوعصيان وكړنوپيغمبرعليه السلام ورته بنېراوكړه چې لكه ديوسف عليه السلام دكاختي غوندي وچكالي دي دربانديراشي هغه وودوى ته داسي كاختي ورسېده چې هډوكي يې وخوړل اوسړي به آسمان ته كتل دده اوآسمان ترمينځ به لكه لوګى غوندي له لوږې ورته ځرګند ېدو نوالله ﷻ داآيت نازل كړچي: ﴿ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ ﴾ نودوى رسول الله ته راغلل اورسول الله ته وويل شوچي (مضر) ته دعاوكړه چې هلاک شول نورسول الله استسقاء وكړه اوباران واورېدوچي بياداآيت نازل شو: ﴿ إِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيلًا ۚ إِنَّكُمْ عَائِدُونَ ﴾ كله چې دوى ته آسودګي اوسوكالي ورسېده بيرته پخواني حال ته ستانه شوو نوالله ﷻ داآيت نازل كړچي ﴿ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ إِنَّا مُنتَقِمُونَ ﴾ (١).

---

(١) رواه البخاري

تفسير:

﴿ حمٓ ﴾ له مقطعاتو توروڅخه دی چي دقرآنکريم په اعجازباندي تنبيه ورکوي اوتفصيل يې پخواتېرشوی دی ﴿ وَٱلۡكِتَـٰبِ ٱلۡمُبِينِ ﴾ قسم دی پردغه کتاب ښکاره کونکي (فرق کونکي په مينځ دهدايت اوضلالت دروڼ اعجاز اوڅرګندواحکاموڅښتن دقسم ځواب داچي ﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَـٰهُ فِي لَيۡلَةٖ مُّبَـٰرَكَةٍۚ ﴾ بېشکه موږنازل کړی مودی هغه په شپه برکت ناکه کي (چي ليلة القدردرمضان دمياشتي دی لکه چي الله فرمايي ﴿ شَهۡرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلۡقُرۡءَانُ ﴾ (البقرة: ١٨٥) ابن جزي وايي د قرآن کريم دنزول معناداچي يوځای ددنياآسمان ته پکي رانازل شوی دی اوبياحضرت جبرئيل په نبي عليه السلام باندي ټوټه ټوټه نازلاوو (١) چابياويلي چي لومړنی ابتداء دنزول يې په ليلة القدرکي شوی ده. قرطبي وايي داچي برکت ناکه شپه يې وبلله ځکه چي الله پدې شپه کي پخپلومخلوقاتو برکات اوخيرات رانازلوي اوثوابونه ورکوي (٢) ﴿ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ﴾ بېشکه موږ يو وېرونکي (په رالېږلوددغه قرآن ځکه چي زموږشان دادی چي خلګ بې له انذاراود عذاب له وېرولونه پرېږدو ترڅوچي ورباندي حجت قائم کړو ﴿ فِيهَا يُفۡرَقُ كُلُّ أَمۡرٍ حَكِيمٍ ﴾ په دغه شپه کي بيانوه شی بېلاوه شي هرکارحکمتناک (داسي ټينګ چي نه بدلېږي) له ارزاقودبندګانوله آجالو(دمرګ نېټو) اونوروټولو چارو احوالوددوی. ابن عباس وايي چي الله له يوه کاله تربله پوري دژوند، مرګ، رزق روزي فيصلې کوي مفسرين کرام وايي چي الله تعالی دقدرپه شپه له لوح محفوظ څخه ګردهغه شيان چي په دغه کال کي دبندګانوله روزي، اجل اونوروچاروکه دخيروي اوکه دشرمقررشوي وي رااخلي اوليکي آن تردې چي يوسړی به په ښارونو کي ګرزي نکاح به کوي اولادبه يې زېږي خونوم به يې په مړوکي ليکلی شوی وي (٣) ﴿ أَمۡرٗا مِّنۡ عِندِنَآۚ ﴾ حکم زموږله نزده يعني ټول هغه څه چي موږيې په دغه شپه کي تقديرفرمايواو پرښتوته دبندګانودچاروپه هکله وحی کوو دغه حکم دی چي زموږله لوري صادرېږي زموږ په علم اوتدبيرسره صورت نيسي ﴿ إِنَّا كُنَّا مُرۡسِلِينَ ﴾ بېشکه موږلېږونکي د رسولانو (انبياوو چي بشرته الهي احکام شرائع ورسوي اودهدايت لاري ته يې راوبولي ﴿ رَحۡمَةٗ مِّن رَّبِّكَۚ ﴾ لپاره درحمت (اومهرباني پرخلګو)له رب ستا. په البحرالمحيط کي وايي چي دظاهرراوړل چي (ربک) دی دضميرپرځای چي فرمايلي يې وای (رحمة منا) ددې لپاره دی چي داوښيي ربوبيت په بندګانوباندي درحمت اومهرباني غوښتونکي دي (٤) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴾ بېشکه الله هم دی دی ښه اورېدونکی (دټولواقوالو) ښه عالم دی په

---

(١) التسهيل لعلوم التنزيل ٤ / ٣٤

(٢) تفسير القرطبي ١٢ / ١٢٢

(٣) دشيخ زاده حاشيه په بيضاوي باندي ٣ / ٣١٠

(٤) البحرالمحيط ٨ / ٣٣

(تولو احوالو افعالو دبندگانو) ﴿ رَبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَآۖ إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ ﴾ (رحمت دی گردوته له طرفه د) رب د آسمانونو او خمکي او (رب د) هغو شیانو چي په مینځ د دوی کي دی که چیري یي تاسي یقین کونکي) یعنی که چیري یاست تاسي یقین کونکي ایمان راوړونکي یاست؟ هغه ذات چي قرآن یې نازل کړی رب د آسمانونو او خمکي اومابینهمادی ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُۖ ﴾ نشته لائق دعبادت بل هیڅوک مگرهم دی دی چي ژوندي کوي او وژل کوي دغه (الله چي دکمال جلال په صفاتو متصف دی له ده پرته بل معبود نشته ﴿ رَبُّكُمۡ وَرَبُّ ءَابَآئِكُمُ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ (دغه الله) رب ستاسي دی او رب دپلرونو رومبنیو ستاسي دی (له پخوانیو امتونو څخه. امام رازي وایي له آیت څخه مقصد دادی چي هرکله نازلونکی ذات د دومره زیاتو صفاتو خاوند دی نو نازل کړی کتاب به یې ارومرو دستري مرتبې اوشرف څښتن وي[1]) ﴿ بَلۡ هُمۡ فِي شَكّٖ يَلۡعَبُونَ ﴾ بلکه دوی په شک کي دي (له بعث څخه) چي لوبي کونکي دي (په مؤمن به شیانو) یعني دوی یقین نه کوي پخپله دې ویناکي چي وایې الله زموږ خالق دی بلکه دوی لوبي وربانديکوي او ملنډي پرې وهي شیخ زاده وایي چي دلته د التفات صنعت راوړل شوی دی چي ﴿ بَلۡ هُمۡ فِي شَكّٖ يَلۡعَبُونَ ﴾ ترڅو د دوی د شان تحقیر وکړي او دخطاب له مقام څخه یې لیري کړي ځکه چي دوی کوتلي دلائلو او براهینو ته هیڅ نه گوري او نه هم دحق او باطل څیزیاد گتور او تاواني ترمینځ توپیر کوي[2]) کله چي الله تعالی د دوی د حماقت او طغیان شان وستایو نو یې خپل حبیب ﷺ ته دالتفات خطاب وفرمایو چي تسلیت او ډاډ ورکړي او داورته وښیي چي د دوی له ایمان راوړلو دی بې پرواشي ﴿ فَٱرۡتَقِبۡ يَوۡمَ تَأۡتِي ٱلسَّمَآءُ بِدُخَانٖ مُّبِينٖ ﴾ پس منتظر اوسه (ای محمده دوی ته) په هغه ورځ چي راشي آسمان په ښکاره لوگي سره (چي هرڅوک یې ویني. ابن مسعود ﷺ وایې چي کله د قریشو له رسول الله ﷺ څخه سرغړونه او عصیان اوج ته ورسېدو نو رسول الله ﷺ ورته ښېراوکړه ویې ویل: اللهم أشدد وطأتک علی مضر واجعلها علیهم سنین کسني یوسف) ای الله پر مضر باندي دي کړاوونه سخت کړه او داسي کاختي ورته راوله لکه چي د یوسف علیه السلام په زمانه کي (په مصریانو) راغلي وه همداسي پرد غو خلکو کاختي راغلي آن تردې چي مرزگي یې وخوړلې او یو تن به له بل سره غږېدو له پریړه لوگي څخه چي د ځمکي او آسمان ترمینځ به خپور وو متکلم به یې نه لیدلو اوغږ به یې اورېدو[3]) او ابن عباس ﷺ وایې (دخان) تېر شوی نه دی هغه به ترقیامت لږ گړی د مخه راځي مسلمان ته به د زکام په ډول وررسېږي او د کافرانو منافقانو به کوپړی پخې شي اولکه مست غوندي به وي نولوگی به یې ختې

---

[1] کبیر تفسیر ۲۷/ ۲۴۱

[2] شیخ زاده ۳/ ۳۱۷

[3] البحر المحیط ۸/ ۳۴

اولرمونونه وړوک کړي له سپوږمو ، غوږونو اومقعد څخه به يې راوزي(١) ﴿ يَغْشَى ٱلنَّاسَ هَٰذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ (چي پټ به کړي ټول مخلوق (وبه وايي دوی) دغه عذاب ډېر دردناک دی) يعني کفار او قريش به له هره لوري سره راونغاړي ﴿ رَّبَّنَا ٱكْشِفْ عَنَّا ٱلْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ ﴾ ای ربه زموږ لري کړه له موږ دغه عذاب بېشکه موږ ايمان راوړونکي يو(په محمد او قرآن باندي که دي عذاب ليري کړ. بيضاوي وايي دغه ددوی له لوري دايمان راوړلو ژمنه اووعده وه (٢) ﴿ أَنَّىٰ لَهُمُ ٱلذِّكْرَىٰ ﴾ چېري به نفع ورسوي دوی ته پنداخيستل (پس دعذاب له نزوله دغه استبعاددی يعني له کومه به دوی وروسته دعذاب له پورته کېدلو پند واخلي ؟ ﴿ وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ ﴾ حال داچي په تحقيق راغلی وودوی ته رسول ښکاره بيانونکی (چي په څرګندو معجزاتو سره يې ملاتړشوی وو خوبياهم دوی وربانـدي ايمان نه راووړ اونه يې متابعت وکړ) ﴿ ثُمَّ تَوَلَّوْا۟ عَنْهُ وَقَالُوا۟ مُعَلَّمٌ مَّجْنُونٌ ﴾ بياهم داسي وګرزېدل دوی له هغه (اجابت درسول څخه) او وويل (کفارو) ده ته ښودنه کړی شوي ده (دقرآن له بل چانه) دی لېونی دی (نو آياداسي قوم چي داسي ناولي صفتونه ولري بياهم ايمان راوړي؟ امام فخررازي وايي چي دمکې کفارو دقرآنکريم په هکله چي درسول الله په وسيله ورته راورل شوی وو دوه رائي لرلې ځينوبه ويل چي محمد دغه قرآن له بل چاڅخه زده کوي او ځينوبياويل چي دی لېونی دی پېريان ورته دبېهوشي په حالت کي دغه کلام راوړي (٣) ﴿ إِنَّا كَاشِفُوا۟ ٱلْعَذَابِ قَلِيلًا ۚ إِنَّكُمْ عَآئِدُونَ ﴾ بېشکه موږ لري کونکي يودغه عذاب لږ موده بېشکه تاسي بيرته ګرزېدونکي يی کفرخپل ته امام رازي وايي مقصدله دې څخه داتنبيه ده چي دوی پخپله وعده وفا نکوي دعجزپه حالت کي زاری کوي الله بولي کله چي وېره ليري شي بيرته کفراودپلرونو تقليدته ورګرزي (٤) ابن مسعود وايي کله چي درسول الله ددعاپه برکت عذاب ځني پورته شوبيرته بياتکذيب ته راوګرزېدل ﴿ يَوْمَ نَبْطِشُ ٱلْبَطْشَةَ ٱلْكُبْرَىٰٓ إِنَّا مُنتَقِمُونَ ﴾ (يادکړه) هغه ورځ چي وبه نيسو موږ (دغه کفار) په نيولو سختو لويو سره بېشکه موږ انتقام اخيستونکي يو(په دغه ورځ کي) ابن مسعود ﷺ وايي چي ﴿ ٱلْبَطْشَةَ ٱلْكُبْرَىٰٓ ﴾ دبدر ورځ ده اوابن عباس ﷺ وايي چي دغه دقيامت ورځ ده ابن کثير وايي ظاهردادی چي دغه دي دقيامت ورځ وي که څه هم دبدرورځ هم (بطشة) وه (٥) امام رازي وايي دوهمه وينا ترنورو سمه ده ځکه چي دبدر ورځ هغو سترو اوصافوته نشي رسېدلای کوم چي دغه ورځ وربانـدي لمانځل شوي بشپړانتقام اوکسات اخيستل خود قيامت په ورځ وي اوداچي په (کبری) سره يې وستايله

(١) دابن مسعود قول څرګند او ابو السعود غوره کړی دی اودنظم اوسياق سره هم مناسب دی ابن کثيرد واړه ويناوي راوړي دي اوبيايي دابن عباس ويناغوره ګڼلې اووايي چي ابن عباس ويلي دقناعت وړده چي دغه دي دقيامت له نښانوڅخه وي. ابن کثير ٣ /٣٠٠

(٢) البيضاوي ٣ /٣١٢

(٣) کبيرتفسير ٢٧ /٢٤٤

(٤) نفع المرجع.

(٥) مختصرابن کثير ٣ /٣٠٢

نودغه به ترګردوسخت نیول وي چي دقیامت سره بنایي(۱) بیایې قریشي کفاروته هغه هلاکتونه وربه یادکړل کوم چي فرعون اومصري قبطیانوته رسېدلي وو ﴿ وَلَقَدۡ فَتَنَّا قَبۡلَهُمۡ قَوۡمَ فِرۡعَوۡنَ ﴾ اوخامخاپه تحقیق ازمویلي وو موږ پخواله دوی نه قوم دفرعون (چي قبطیان وو) ﴿ وَجَآءَهُمۡ رَسُولٞ كَرِيمٌ ﴾ اوراغلی وو دوی ته رسول (موسی) عزتمند(په نزددالله تعالی ) یعني دوی ته دشریف حسب اونسب خاوندچي دالله په بندګانوکي دالله په نزدعزتمندبنده اوکلیم الله وو رااستول شوی وو ﴿ أَنۡ أَدُّوٓاْ إِلَيَّ عِبَادَ ٱللَّهِۖ ﴾ (او وویل موسی فرعونیانو ته ) چي وسپارئ تاسي په ماباندي بندګان دالله (چي بني اسرائیل دي(۲) لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ فَأَرۡسِلۡ مَعَنَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ وَلَا تُعَذِّبۡهُمۡۖ ﴾ (طه ۴۷ ) ﴿ إِنِّي لَكُمۡ رَسُولٌ أَمِينٞ ﴾ بېشکه زه تاسي ته امانتګر رسول یم (په وحی باندي په تکذیب تورن نه یم تاسوته نصیحت کوم زمانصیحت ومنئ) ﴿ وَأَن لَّا تَعۡلُواْ عَلَى ٱللَّهِۖ ﴾ او(وویل موسی فرعونیانوته) چي سرکشي مه کوئ پرالله (له طاعت څخه یې تکبرمکوئ) ﴿ إِنِّيٓ ءَاتِيكُم بِسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٖ ﴾ بېشکه چي زه راوړونکی یم تاسي ته دبرهان دلیل ښکاره (چي هرهوښیارسړیورباندي اعتراف کوي) ﴿ وَإِنِّي عُذۡتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُمۡ أَن تَرۡجُمُونِ ﴾ (او وویل موسی فرعونیانوته) چي بېشکه زه پناه نیسم په رب خپل اوپه رب ستاسي له دې نه چي تاسي ماسنګسارکړئ. قرطبي وايې داسي معلومېږي لکه چي دوی دوژلو اخطار ورکړی وي نو ده الله ته پناه یوړه (۳) ﴿ وَإِن لَّمۡ تُؤۡمِنُواْ لِي فَٱعۡتَزِلُونِ ﴾ نوکه ایمان نه راوړئ تاسي (ای فرعونیانو) پرماپس (له ما ) په څنګ شئ(تکلیف اوخورمه راکوئ زمالاره خوشي کړئ ابن کثیروايې معناداچي زماپه وړاندي ربړونه ختدونه مه جوړوئ په آرامه پرېږدئ چي الله زموږاوتاسو ترمینځ فیصله وکړي ﴿ فَدَعَا رَبَّهُۥٓ أَنَّ هَٰٓؤُلَآءِ قَوۡمٞ مُّجۡرِمُونَ ﴾ پس دعاوکړه (موسی) خپل رب ته داسي چي بېشکه دغه (قبطیان) یوقوم دی ګنهګاران (کافران) نوله دوی څخه انتقام واخله ﴿ فَأَسۡرِ بِعِبَادِي لَيۡلًا إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴾ (نو وفرمايل الله تعالی موسی ته چي) پس بوزه بندګان زما دشپې بېشکه تاسي (د قبطیانو) متبوع یی (هغوی درپسي درومي اوپه دې کي به یې هلاکت وي) ﴿ وَٱتۡرُكِ ٱلۡبَحۡرَ رَهۡوًاۖ ﴾ او پرېږده بحرسیندولاړ (ساکن) کوڅې کوڅې) کله چي ته ترې پوري وزې) ﴿ إِنَّهُمۡ جُندٞ مُّغۡرَقُونَ ﴾ بېشکه دوی لښکري دي ډوبې کړی شوي (پدې سیندکي په التسهیل کي وايې کله چي موسی علیه السلام ترسیند پوري ووت ويې غوښتل بیرته

---

(۱) کبیرتفسیر ۲۷ / ۲۴۴

(۲) دغه دمجاهدقول دی اودتسهیل مؤلف غوره کړی دی اوابن عباس وايې معناداچي ای دالله بندګانوماته ایمان اوطاعت راکړئ.

(۳) دقرطبي تفسیر ۱۲ / ۱۳۵

يې په لکړه ووهي ترڅو بيرته سره پرله پوري شي نو الله ﷻ ورته امر وکړچې همداسې يې پرېږده څو فرعون ورګډشي سره له خپله قومه او ټکي غرق شي او دا چې الله پدې باندې خبردار کړ ددې لپاره چې څو پوري يې زړه مطمئن شي چې فرعونيان يې نيولای نشي او له شرڅخه يې وژغورل شول وروسته يې الله دهلاکت بيان داسې فرمايي ﴿ كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴾ څومره ډېرپرېښودل دوی له باغونو او(له) چينو (داوبو) او(له) فصلونو (چې ډول ډول مزروعات پکې وو) او(له) خايونوښايسته اوغوره څخه. قتاده وايي ﴿ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴾ هغه د ناستې او هستوګنې عمده ځايونه دي[1]﴿ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَٰكِهِينَ ﴾ اوله نعمتونو (اوله هسې د هوسايي اوآرام سامان) چې په هغو(نعمتونو ) کې خوشحال خوندوربه وي. امام رازي وايي چې الله تعالی دابيان وکړچې دوی له غرقېدلو وروسته دغه پنځه شيان پرېښودل چې باغونه، چينې، فصلونه، ښايسته ښکلي ښکلې اودناستې ملاستې ځايونه اودعيش اوسوکالي سامانونه (نعمة العيش) دنون په زور سره دژوندانه خلاوښکلااوهوسايي ته وايي ([2])﴿ كَذَٰلِكَ وَأَوْرَثْنَٰهَا قَوْمًا ءَاخَرِينَ ﴾ همداسې (هلاک کړل موږ له مکذبينو ) او په ميراث مو ورکړل(دغه شيان) بل قوم(سبطيانو ) ته د هغوی چې دقبطيانو چوپړيان (بني اسرائيل) وو. ابن کثيروايي چې مرادله دغه بل قوم څخه بني اسرائيل دي ځکه چې دوی دقبطيانو فرعونيانو له غرقېدلووروسته په قبطي مملوکاتوواکمن شول اودمصرټول واک دوی ته ورکول شول لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿ وَأَوْرَثْنَا ٱلْقَوْمَ ٱلَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشَٰرِقَ ٱلْأَرْضِ وَمَغَٰرِبَهَا ﴾ (الاعراف ۱۳۷ ) اوالله تعالی بل ځای فرمايي ﴿ كَذَٰلِكَ وَأَوْرَثْنَٰهَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ (الشعراء ۵۹)([3])﴿ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ ٱلسَّمَآءُ وَٱلْأَرْضُ ﴾ (پس ونه ژړل پردوی (يا په هلاکت ددوی ) باندې آسمانونو اوځمکې) يعنې غمګين اومتأثرنشول وربانډې هيڅوک کله چې دوی غرق شول اوله مينځه لاړل ﴿ وَمَا كَانُوا مُنظَرِينَ ﴾ اونه وو دوی مهلت ورکړی شوي (تربل وخته پوري بلکه دوی ته عذاب په دنياکې هم ژر ورکول شو. قرطبي وايي چې کله په عربوکې کوم سردار او وتلی شخصيت ومري نودوی وايي چې آسمان اوځمکې وربانډې وژړل يعنې دهغه مصيبت دومره عام ووچې ګردوشيانو ته ورسېدو آن تردې چې ځمکو، آسمانونو وربانډې وژړل برېښنااوهوا وربانډې غمجن شول لکه چې شاعروايي: فيا شجر الخابور مالک مورقا * کانک لم تجزع لموت طريف !؟

يعنې ای دخابوروني ولې دي پاڼې غوړېدلې لکه چې دطريف په مرينه خواشينې نه يې ؟! دغه ﴿ فَمَا بَكَتْ ..... ﴾ دتمثيل اوتخييل په توګه مبالغه راغلې معنادا چې دوی خوهلاک شول خوغم يې چاپه غم ونه

---

[1] البحر المحيط ۸ / ۳۶

[2] کبير تفسير ۲۷ / ۲۴۲

[3] دابن کثير مختصر ۳ /۳۰۲

بالو، چابياويلي چي داكلام په حذف دمضاف باندي دی يعني علوي اوسفلي عالم چي دآسمان اوسېدونکي اودځمکي اوسېدونکي دي ددوی په مړينه اوغرقېدلويې ونه ژړل(١).

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مِنَ ٱلْعَذَابِ ٱلْمُهِينِ ﴿٣٠﴾ مِن فِرْعَوْنَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ عَالِيًا مِّنَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾ وَلَقَدِ ٱخْتَرْنَٰهُمْ عَلَىٰ عِلْمٍ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٣٢﴾ وَءَاتَيْنَٰهُم مِّنَ ٱلْءَايَٰتِ مَا فِيهِ بَلَٰٓؤٌا مُّبِينٌ ﴿٣٣﴾ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَيَقُولُونَ ﴿٣٤﴾ إِنْ هِىَ إِلَّا مَوْتَتُنَا ٱلْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ﴿٣٥﴾ فَأْتُوا۟ بِـَٔابَآئِنَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٣٦﴾ أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ أَهْلَكْنَٰهُمْ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ مُجْرِمِينَ ﴿٣٧﴾ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَٰعِبِينَ ﴿٣٨﴾ مَا خَلَقْنَٰهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٩﴾ إِنَّ يَوْمَ ٱلْفَصْلِ مِيقَٰتُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٤٠﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِى مَوْلًى عَن مَّوْلًى شَيْـًٔا وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٤١﴾ إِلَّا مَن رَّحِمَ ٱللَّهُ ۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٤٢﴾ إِنَّ شَجَرَتَ ٱلزَّقُّومِ ﴿٤٣﴾ طَعَامُ ٱلْأَثِيمِ ﴿٤٤﴾ كَٱلْمُهْلِ يَغْلِى فِى ٱلْبُطُونِ ﴿٤٥﴾ كَغَلْىِ ٱلْحَمِيمِ ﴿٤٦﴾ خُذُوهُ فَٱعْتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَآءِ ٱلْجَحِيمِ ﴿٤٧﴾ ثُمَّ صُبُّوا۟ فَوْقَ رَأْسِهِۦ مِنْ عَذَابِ ٱلْحَمِيمِ ﴿٤٨﴾ ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْكَرِيمُ ﴿٤٩﴾ إِنَّ هَٰذَا مَا كُنتُم بِهِۦ تَمْتَرُونَ ﴿٥٠﴾ إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِى مَقَامٍ أَمِينٍ ﴿٥١﴾ فِى جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴿٥٢﴾ يَلْبَسُونَ مِن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴿٥٣﴾ كَذَٰلِكَ وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ ﴿٥٤﴾ يَدْعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَٰكِهَةٍ ءَامِنِينَ ﴿٥٥﴾ لَا يَذُوقُونَ فِيهَا ٱلْمَوْتَ إِلَّا ٱلْمَوْتَةَ ٱلْأُولَىٰ ۖ وَوَقَىٰهُمْ عَذَابَ ٱلْجَحِيمِ ﴿٥٦﴾ فَضْلًا مِّن رَّبِّكَ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴿٥٧﴾ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾ فَٱرْتَقِبْ إِنَّهُم مُّرْتَقِبُونَ ﴿٥٩﴾ ﴾ الدخان: ٣٠ ـ ٥٩

مناسبت:

کله چي الله تعالی دفرعون دهلاکت بيان وفرمايو ورپسې يې دخپلوهغواحساناتو يادونه وکړه کوم چي په بني اسرائيلويې لورولي ووترڅودالله دنعمتونوشکراداکړي بياالله تعالی دمکې کفارله خپل نيولواوانتقام څخه ووېرول دسورت پای يې دقيامت په ورځ دنېکمرغه (سعداوو) اوبدمرغه (اشقياوو) دحال په بيانولوسره بشپړکړ.

لغتونه:

(عاليا) متکبراوجبارته وايي (بلاء) ازموينښت اوامتحان (منشرين) له مرګه وروسته راپاڅېدل (قوم تبع) قوم ديمن پاچـا. جوهري وايي ديمن پاچهانوته تبابعه وايي اويويې (تبع) بولي(٢) دلغت پوهان وايي چي (تبع) ديمني پاچهانولقب دی لکه چي (قياصره) دروم دپاچهانواو(أکاسره) دفارسيانو يا(خلفاء)

(١) دقرطبي تفسير ١٣٩/١٢

(٢) الصحاح للجوهري مادة تبع

دمسلمانانو دپاچهانو([1]) (يوم الفصل) دقيامت ورځ (مولى) مرستندوى چاره ساز(المهل) ويلى شوي مس (الأثيم) فاجر گنهگار (اعتلوه) په سختي سره يې کش کړئ (سندس) نري وريښم (استبرق) پنډ وريښم (عين) غټ سترگى (ارتقب) انتظار وکړه.

تفسير:

﴿ وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مِنَ ٱلْعَذَابِ ٱلْمُهِينِ ﴾ (اوخامخا په تحقيق نجات مو ورکړ بني اسرائيلو ته له عذابه سپکونکي) چي قبطيانو به ورکاوو اوفرعون به ددوى نارينه ماشومان وژل اونجوني به يې پرې ښودلې چي ددوى چوپړ ووهي اوپخپله دوى به يې په درندو کارونو گمارل ﴿ مِن فِرْعَوْنَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ عَالِيًا مِّنَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾ چي له (طرفه د) فرعون وو بېشکه دغه (فرعون) وو سرکښه متکبر له حده تېرېدونکى سرغړونکو څخه. صاوي وايي دغه هم په بني اسرائيلو باندي دالله دنعمتونو شمېرل دي او مقصد ورڅخه رسول الله ﷺ ته تسليت اوډاډينه ورکول دي چي الله جل جلاله به دى اومؤمنان د مشرکانو له زور زياتي څخه ژغوري څکه مشرکان په جبروت اوځواک کي دفرعون اوقوم مقام ته يې نه دي رسېدلي([2]) ﴿ وَلَقَدِ ٱخْتَرْنَٰهُمْ عَلَىٰ عِلْمٍ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ اوخامخا غوره کړي موو ودغه بني اسرائيل) په علم خپل په خلگو(دزماني ددوى) قتاده وايي چي غوره کړي يې وو دوى دزمانې پرخلگو درسول الله ﷺ په امت غوره نه وو څکه چي الله تعالى فرمايي: ﴿ كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ﴾ (آل عمران:١١٠) ﴿ وَءَاتَيْنَٰهُم مِّنَ ٱلْءَايَٰتِ مَا فِيهِ بَلَٰٓؤٌا۟ مُّبِينٌ ﴾ او ورمو کړ دوى ته له دلائلو (دقدرت خپل په لاس د موسى) هغه (خوارق) چي په هغو کي ښکاره ازموينه وه (چي چاپکي سوچ کولاى) امام رازي وايي چي دغه دلائل دقدرت لکه دبحر چاودل، دوريځي راتلل اوپرې سيورى کول، من اوسلوى ورته را نازلېدل اونور هغه ټول شيان چي له دوى پرته الله په هيچا هم نه وو پېرزو کړي([3]) ﴿ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَيَقُولُونَ إِنْ هِىَ إِلَّا مَوْتَتُنَا ٱلْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ﴾ (بېشکه دغه(کفار) خامخا وايي چي نه دى دغه عاقبت زموږ مگر هم دا رومبى مرگ زموږ دى (په دنياکي) يعني دمکې کفار وايي چي خامخا زموږ هم دغه يو مرگ دى چي په دنياکي يې وينو(هؤلاء) په کلمه کي ددوى تحقيراوسپکاوي نغښتى دى مفسرين کرام وايي کله چي دسورت په پيل کي خبره دمکې کفاروپه هکله وه ورپسې دفرعون اودهغه دتېرکيسه پسې راوړل شوه چي دوى هم لکه هغه غوندي په کفراوضلالت باندي اصرارلري اوپس بيرته دمکې کفاروته خبره راغبرگه شوه اوغرض له دغي وينادوى څخه چي وايي: ﴿ إِنْ هِىَ إِلَّا مَوْتَتُنَا ٱلْأُولَىٰ ﴾ دبعث اونشور څخه انکاردى او وروسته يې پدې ويناسره له دغه انکار څخه تصريح وکړه چي: ﴿ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ﴾ اونه يو موږ له

---

([1]) دقرطبي تفسير ١٢/ ١٤٤

([2]) دصاوي حاشيه په جلالين ٤٨/ ٢٠.

([3]) کبيرتفسير ٢٧/ ٢٤٨

راپورته کړی شویو (له قبوروڅخه) ﴿ فَأْتُوا۟ بِـَٔابَآئِنَآ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ﴾ پس ژوندي راولئ پلرونه زموږ که چېرې یئ تاسې صادقان (رښتیني په دغه خپله ویناکي خطاب رسول الله ﷺ اومؤمنانو ته دی اودغه دتعجیزخطاب دی یعني که تاسو پدې ویناکي چي هلته وروسته له دغه ژونده بل ژوندشته رښتوني یاست نوزموږ پلرونه راژوندي کړئ چي ستاسي په رښتنولي خبر راکړي. امام فخر رازي وایې چي کفارو دحشر اونشردنفی کولو دلیل ووایوچي؛ که چېرې بعث او نشور ممکن اومعقول وي نوژر ترژره زموږ مړه شوي پلرونه راژوندي کړئ ترڅودغه ستاسوپه دعوی باندي یوشاهدوي چي په قیامت کي بعث اونشور شته([1]) قرطبي وایې چي ددغي ویناقائل ابوجهل وو ویې ویل: ای محمده! که ته پخپل قول کي رښتونی یې نو زموږ له پلرونوڅخه دوه تنه چي یویې قصی بن کلاب وي هغه رښتیاگوی سړی وو راپاځوه موږ به ترې وپوښتوچي له مرگه وروسته به څه پېښېږي؟([2]) ﴿ أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ ﴾ (نوالله فرمایې) آیادغه (قریش) غوره دي (په مال اوقوت کي) که قوم دتبع؟ استفهام دانکاراوتهدیدلپاره دی یعني آیادوی دیمني پاچهانوترتبرهغوی چي زیات مالونه او نعمتونه یې لرل غوره دي؟ ﴿ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ أَهْلَكْنَـٰهُمْ ﴾ اوهغه کسان چي پخواتېرشوي له دغو(قوم دتبع لکه عادیان، ثمودیان) هلاک کړل موږ دوی (زبر اوزبرموکړل هستوگنځایونه مو ور وران کړل. ابوالسعودوایې چي مقصدله پخوانیوڅخه عادیان، ثمودیان اوددوی امثال نورجبابره دي دوی تردغوقریشو دزیات مال دولت خاوندان ووچي هغوی هم هلاک شول نودغه دمکې مشرکان خوبه ارومرو هلاکېږي ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ مُجْرِمِينَ ﴾ بېشکه دوی گنهگاران وو(کافران منکرله بعث اونشوره) دغه دهلاکت لپاره علت دی اوپه دې کي دقریشولپاره وعیداوتهدیددی چي پردوی باندي به هم الله تعالی لکه دتېرو اُمتونو غوندي هلاکت راولي بیاالله پاک دبعث په دلائلو داسي تنبیه فرمایې چي الله هغه ذات دی چي عالم یې په حقه سره پیداکړی دي ﴿ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَـٰعِبِينَ ﴾ اونه دي پیداکړي موږ آسمانونه اوځمکه اوټول هغه شیان چي په مینځ ددغو دواړو کي دي حال داچي لوبي کونکي یو ﴿ مَا خَلَقْنَـٰهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾ (یعنی عبث) ندي پیداکړي موږدغه دواړه مگرپه حقه سره (تر څوچي نېکوکارته په احسان دده اوبدکار گنهگارته په بدي دهغه جزاء ورکړو ﴿ وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ولیکن زیاتره ددغو(مشرکانو) په دي نه پوهېږي (نوله بعث اوجزاڅخه سترگي پټوي انکار کوي. مفسرین کرام وایې الله تعالی بني نوع بشرپیداکړی اودهغه دژوندانه داسبابوانتظام یې فرمایلی دی چي لوړچت آسمان یې ورباندي درولی فرش یې ځمکه ورته غوړولي اوعجائبات د مصنوعاتواوبدیع دمخلوقاتویې په مینځ دسقف او مهاد کي پیداکړی دی اوبیایې په ایمان اوطاعت مکلف کړي دي نوځینوایمان راوړی اوځینوکفرغوره کړی دی نوارومرودجزاء اوسزا اړتیاشته ترڅو محسن اونیکوکار دخپل نیک عمل جزاء ووینې اومُسِی

---

([1]) کبیرتفسیر ۲۷/ ۲۴۹

([2]) دقرطبي تفسیر ۱۶/۱۴۴

اوبدکاردخپل بدعمل سزا ترلاسه کړي اوکه دغه بعث اوجزاء نه وي بیاخوداپیداینبت خوشی عبث کاردی اوالله له دې څخه منزه دی څکه وروسته فرمايي: ﴿إِنَّ يَوْمَ ٱلْفَصْلِ مِيقَـٰتُهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ بېشکه دغه ورځ دفیصلې (قیامت په مینځ دخلګوکي) وعده د(جمع کولو) ددوی ټولودی(چې په دغه ورځ به ددوی ګردوحساب په یوه وخت کي کېږي لکه چې الله تعالی فرمايي ﴿يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ﴾ (الممتحنة ۳) ﴿يَوْمَ لَا يُغْنِى مَوْلًى عَن مَّوْلًى شَيْـًٔا وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ﴾ هغه ورځ چې دفع به نشي کولای هيڅ دوست خپلوان له دوست خپله څخه هيڅ څیز(له عذابه) اونه به له دوی سره مددوکړی شي (که څه هم چې خپلوان بې وي لکه چې الله فرمايي: ﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُوا۟ رَبَّكُمْ وَٱخْشَوْا۟ يَوْمًا لَّا يَجْزِى وَالِدٌ عَن وَلَدِهِۦ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِۦ شَيْـًٔا﴾ (لقمان ۳۳) ﴿إِلَّا مَن رَّحِمَ ٱللَّهُ﴾ مګرهغه څوک چې الله پرې رحم وکړي، استثناء متصل دی یعني هیڅ خپل به بل چاته مرسته نشي ورکولای پرته له هغه چاچې دوی مؤمنان وي هغوی ته به دسپارښت اوشفاعت اذن ورکول کېږي (۱) چا بیاویلي چې استثناء منقطع دی معناداچې په چاباندې الله رحم وکړي نوهغه ته بیاګته رسېږي اوشفاعت بې کېږي. ابن عباس وايي مقصدله دغه چاڅخه مؤمن دی څکه چې دهغه لپاره انبیاء اوپرښتې شفاعت کوي (۲) ﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ﴾ بېشکه الله هم دی دی ښه غالب قوي (کسات اخیستونکی له دښمنانو) ډېر رحم والا(پخپلواولیاووباندې) کله چې دقیامت یادونه وشوه اودلائل بې راوړل شول ورپسې بې ددغې سختي ورځي صفتونه بیان اولومړی بې دکافرانولپاره وعیداوبیادنېکانوابرارو لپاره زېری وستایوچې ترهیب اوترغیب سره یوځای راشي ويې فرمایل: ﴿إِنَّ شَجَرَتَ ٱلزَّقُّومِ طَعَامُ ٱلْأَثِيمِ﴾ بېشکه (مېوه) ونې دزقوم خواړه د(ډېرولویو) ګنهګارانو(کافرانو) دی (چې له دې پرته نورخواړه بې هېڅ نشته، ابوحیان وايي چې (أثيم) ډېراثم کونکي ته وايي اوتفسیرېې په مشرک سره کړی دی (۳) ﴿كَٱلْمُهْلِ يَغْلِى فِى ٱلْبُطُونِ﴾ په شان دمسو (اوژېړ) ویلي کړی شوي چې په ګېډوکي ایشېږي ﴿كَغَلْىِ ٱلْحَمِيمِ﴾ په شان دایشېدلواوبوخوټېدونکو. قرطبي وايي: زقوم هغه ونه ده چې الله تعالی د دوزخ په مینځ کي پیداکړي ده او ﴿وَٱلشَّجَرَةَ ٱلْمَلْعُونَةَ﴾ بې بللي ده کله چې دوزخیان لوږه احساس کړي نو دغې ونې ته به پناه ورولي له هغې څخه به خوراک وکړي نوهغه به بې په ګېډوکي لکه ایشېدلي اوبه راوخوټېږي الله دغه له ویلي شوي مسواوژیړو سره تشبیه کړي ده مرادله اثيم څخه فاجر ګنهګارابوجهل دی څکه چې هغه به ویل موږته محمد په دوزخ کي دزقوم دخوړلو تهدید راکوي خو دغه زقوم(مکهن) کوچې (مسکه) اوخرمادی (۴) بیابه بې کوچې اوخرماراو غوښتل اوملګروته به بې ویل راشئ زقوم

---

(۱) البحرالمحیط ۸ / ۳۹

(۲) کبیرتفسیر ۲۷ / ۲۰۷

(۳) البحرالمحیط ۸ / ۳۹

(۴) القرطبي ۱۲ / ۱۵۱

وخوري هغه به يې زقوم بلل اوپه كلام الله باندي يې ملنډي وهلې الله تعالى به ددوزخ خازنانوته و فرمايې چي: ﴿ خُذُوهُ فَٱعۡتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَآءِ ٱلۡجَحِيمِ ﴾ ونيسئ دى پس راكاږئ دى (په زورسختي سره) برابرمينځ ددوزخ ته ﴿ ثُمَّ صُبُّواْ فَوۡقَ رَأۡسِهِۦ مِنۡ عَذَابِ ٱلۡحَمِيمِ ﴾ بياورتوي كړئ پاس پرسر دده له عذابه دايشېدلواوبو ﴿ ذُقۡ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡكَرِيمُ ﴾ (وبه ويل شي) ده لره ) وڅكه (دغه عذاب) بېشكه ته هم دغه ته عزتمن غټ مشر(كافر) وي(پخپل زعم سره ) دغه به داستهزآء اواهانت په توګه ورته وويل شي عكرمه ﵁ وايې چي يوه ورځ رسول الله ﷺ له ابوجهل سره مخامخ شو رسول الله ﷺ ورته وويل: چي ماته الله حكم كړى دى چي تاته ووايم ﴿ أَوۡلَىٰ لَكَ فَأَوۡلَىٰ ﴾ (القيامة ٣٤) ابوجهل ورته وويل: په څه شي ماته تهديد راكوې؟ زمادي په الله سوګندوي نه ته اونه هم ستاپروردګارپه ماهيڅ كولاى شې زه په بشپړه توګه ددغي وادي مشرا ودقوم عزتمن يم نوالله دبدرپه ورځ وواژه ذليل يې كړ اودغه آيت نازل شو[1]﴿ إِنَّ هَٰذَا مَا كُنتُم بِهِۦ تَمۡتَرُونَ ﴾ بېشكه چي دغه عذاب هغه دى چي وى تاسي چي په ده كي به موشک كاوو(په دنياكي نواوس يې وڅكئ) ﴿ أَفَسِحۡرٌ هَٰذَآ أَمۡ أَنتُمۡ لَا تُبۡصِرُونَ ﴾ (الطور:١٥) كله چي الله ددوزخيانوحال بيان كړ وريسې يې دجنتيانواحوال داسي راوړ چي ﴿ إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٖ ﴾ بېشكه چي متقيان به په ځاى دامن كي وي (له ټولو ناخوالومكروهاتو) يعني هغه كسان چي په دنياكي له الله څخه وېرېدل دالله اوامريې پرځاى كول اوله نواهيوڅخه يې ځان ژغورل نونن ورځ به دامن په ځاى كي وي له آفاتواوتلخيوڅخه به بې غمه وي په جنت كي به اوسي څكه يې وريسې و فرمايل: ﴿ فِي جَنَّٰتٖ وَعُيُونٖ ﴾ په جنتونواوچينوكي به وي (چي بهېږي به ) ﴿ يَلۡبَسُونَ مِن سُندُسٖ وَإِسۡتَبۡرَقٖ ﴾ چي اغوندي به دوى (جامې) له ورېښمونازكواوله پېړو ﴿ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴾ پداسي حال كي چي مخامخ به سره ناست وي ترڅويودبل له مجلسه خوند واخلي ﴿ كَذَٰلِكَ وَزَوَّجۡنَٰهُم بِحُورٍ عِينٖ ﴾ همداسي به وي (بې تغيره اوبې تبديله) او ملګري به كړو مونږدوى ته له پېغلوسپين پوستوغټو (ښايسته) ستركوسره. بيضاوي وايې: معناداچي يوځاى به كړو له دوى سره حوري (حورآء) يعني سپين پوستي (عينآء) يعني غټ ستركي [2] اوداچي الله تعالى ددوى نعمتونه پدې وستايل څكه چي باغونه او رواني ويالې اوچينې ترهرڅه خوشحالونكي اوښه منظرجوړونكي دي غم ورباندي غلطېږي اوبيايې پې مخي غټ ستركي حوري ورسره جوړه كړې څكه چي دانسان دنېكمرغي اوسعادت بشپړاوى په همدې دريوشيزونوسره كېږي لكه چي ويل شوي دي درې شيزونه له زړه غم اوخواشيني لېري كوي رواني اوبه، زرغونه څمكه او ښايسته مخ ، بيايې دنعمتونوپه زياتوالي كي وفرمايل: ﴿ يَدۡعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَٰكِهَةٍ ءَامِنِينَ ﴾ غواړي به دوى په دغه (جنت) كي له هر قسمه مېوې حال داچي په امن كي به وي ( له ضرره دمېو ،

---

(١) القرطبي ١٢-١٥١

(٢) دبيضاوي تفسير٢/١٨٢

ناروغیو، بدهضمي اوتکلیف ستوماني څخه) ﴿ لَا يَذُوقُونَ فِيهَا ٱلْمَوْتَ إِلَّا ٱلْمَوْتَةَ ٱلْأُولَىٰ ﴾ نه به څکي دوی په دغه (جنت) کي مرګ مګر خوهغه رومبنی مرګ( چي په دنیاکي تېرشوی دی بلکه تل ترتله به په جنت کي ژوندوي ﴿ وَوَقَىٰهُمْ عَذَابَ ٱلْجَحِيمِ ﴾ اووبه ساتي (الله) دوی له عذابه د دوزخ څخه ﴿ فَضْلًا مِّن رَّبِّكَ ﴾ له جهته دفضل له طرفه درب ستا(یعني تفضلا منه) ﴿ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ دغه (انعام اواکرام) همدادېرلوی بری دی(چي ترې پورته بل بری نشته) ﴿ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ پس بېشکه همدا خبره ده چي آسان کړی مودی دغه (قرآن) په ژبه ستا (چي دعربو ژبه ده) دپاره ددې چي دوی پندواخلي ﴿ فَٱرْتَقِبْ إِنَّهُم مُّرْتَقِبُونَ ﴾ پس منتظراوسه ته (هلاکت ددوی ته) دوی هم منتظردي (هلاکت د )تاته (اوژردی چي ورته معلومه به شي چي بری اوغلبه په دنیااو آخرت کي دچاپه برخه دی؟ پدې کي درسول الله ﷺ لپاره زېری اوددوی لپاره تهدید دی.

بلاغت: پدې سورت کي چي دبیان اوبدیع کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- دمبالغې صیغې لکه ﴿ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ او ﴿ هُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او ﴿ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾.

۲- دطباق صنعت چي الله فرمايي: ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِۦ وَيُمِيتُ ﴾ اوهمدارنګه ﴿ إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا ٱلْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ﴾.

۳- دایمان اوعقیدې لپاره دهمت خوخول اوتحریک لکه: ﴿ إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ ﴾.

۴- ایجازبالحذف لکه داچي: ﴿ فَأَسْرِ بِعِبَادِي ﴾ په حقیقت کي (وقلنا بأن أسر بعبادی) وو.

۵- لطیفه استعاره پدې کلام کي چي ﴿ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ ٱلسَّمَآءُ وَٱلْأَرْضُ ﴾ یعني ددوی په هلاکېدلو هيڅ څيزهم تغیرونه موند اونه هم ددوی په له مینځه تللو ځمکه اوآسمان خواشیني اوغمجن شول، عرب دتعظیم په وخت کي وايي (بکت علیهم السمآء والارض) یعني آسمان اوځمکي ورباندي وژړل اويادنیاورباندي تیاره شوه اودتحقیراوسپکاوي لپاره وايي فلانی مړشوخوغرونو دده لپاره عجزاونیازونکړ.

۶- دتعجیزاسلوب لکه ﴿ فَأْتُوا۟ بِـَٔابَآئِنَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾.

۷- دتهکم اوسخريې اسلوب لکه: ﴿ ذُقْ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْكَرِيمُ ﴾.

۸- دغم اوخفګان اظهارلکه چي فرمايي: ﴿ كَمْ تَرَكُوا۟ مِن جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴾ ؟

۹- مرسله مجمله تشبیه پدې کلام کي چي: ﴿ كَٱلْمُهْلِ يَغْلِي فِي ٱلْبُطُونِ كَغَلْيِ ٱلْحَمِيمِ ﴾.

۱۰- ښايسته بې تکلفه سجع هغه چې د کلام په رونق او جمال کې زياتوالى راولي لکه دا چې: ﴿ إِنَّ شَجَرَتَ ٱلزَّقُّومِ طَعَامُ ٱلۡأَثِيمِ كَٱلۡمُهۡلِ يَغۡلِي فِي ٱلۡبُطُونِ كَغَلۡيِ ٱلۡحَمِيمِ خُذُوهُ فَٱعۡتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَآءِ ٱلۡجَحِيمِ ثُمَّ صُبُّواْ فَوۡقَ رَأۡسِهِۦ مِنۡ عَذَابِ ٱلۡحَمِيمِ ذُقۡ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡكَرِيمُ ﴾.

دالله په مرسته د (الدخان) د سورت تفسير بشپړ شو.

## د (الجاثية) سورت مکي او وروسته له (الدخان) څخه نازل شوی دی ۳۷ آیتونه لري څورلسم آیت يې مدني دی.

د سورت په وړاندي:

جاثية مکي سورت دی او د نورو مکي سورتونو په شان د عقيدې په پراخ درشل کي موضوعات څېړي، ایمان په الله تعالی د الله په وحدانيت ایمان په قرآن کریم همدا راز د محمد ﷺ په نبوت او په آخرت باندي ایمان راوړل او په بعث او جزا عقیده لرل بیانوي نږدې چي د سورت هغه محور چي ورباندي راڅرخي د الله په وحدانيت باندي دلائل تېرول او براهين راوړل وي.

سورت په پیل کي له قرآن کریمه غږېږي او مصدر يې ښيې چي هغه د عزيز غالب او حکيم ذات له لوري دی هغه ذات چي دغه ستر او مجيد کتاب يې د رحمت د لوريني لپاره بندګانو ته رااستولی دی تر څو د دوی لپاره د خیر ښکنې او نېکمرغي د لاري موندلو لپاره بل مشال وي.

وروسته بيا په کائناتو کي د الله د قدرت ښبي ښناني بيانوي په آسمانونو کي ښناني دي، په ځمکه کي ښناني دي، د انسان او ګردو حيواناتو او مخلوقاتو په پيدا ايښت کي د الله د قدرت ښناني شته، د شپې او ورځي په ادلون بدلون کي د هوا او و تسخير او په اوربښت کي ښناني دي، لنډه دا چي په ګردو شيانو کي د الله په عظمت او جلال باندي ګويا شواهد او په قدرت او وحدانيت باندي يې کوتلي براهين او دلائل شته او ورپسې آيتونه له دروغ ګڼونکو او مجرمانو څخه خبري کوي هغه کسان چي روښانه آيتونه يې اوري خو له کبر او طغيان څخه ورباندي غوږنه ګروي نو آيتونه دوی ته د دوزخ په تل کي د دردناکو عذابونو خبر ورکوي.

د سورت مبارک نور آيتونه د الله په بندګانو باندي د الله د نعمتونو شمېر ښيي تر څو چي شکر ادا کولو ته يې وهڅوي او د الله په هغو نعمتونو کي چي ورباندي لورولي يې دي سوچ وکړي او پدې وپوهېږي چي يوازي الله تبارک و تعالی د دغو ظاهري او باطني نعمتونو خاوند دی او پرته له الله بل خالق او رازق نشته بيا د الله هغه اکرام چي په بني اسرائيلو يې فرمايلی و بيانوي کوم چي دوی بيا په عصيان او انکار کولو باندي ولمانځو او د غسي د طغيانګرو مجرمانو هغه دريځ چي د انبياوو عليهم السلام په وړاندي يې خپل کړی و ښيي او دا خبره په ډاګه کوي چي د الله تعالی په عدل او حکمت کي محسنين او مجرمين سره يو ډول کېدای نشي او نه به اشرار د ابرارو غوندي مقام پيدا کړي له دې په وروسته بيا د مشرکينو د ضلالت او ګمراهي اسباب بيانوي چي دوی خپل نفسي خواهشات په اُلوهيت منلي چي د دوی پوهي يې يو مخ ايزه له مينځه وړي نو حقيقي الله ته له سره لاره نشي موندلای

سورت په پای کي د قيامت د ورځي عادلانه جزاء بيانوي کله چي خلګ دوه ډلي وېشل کېږي يوه ډله په جنت کي او بله په دوزخ کي لوېږي

### تسمیه او نومول یې:

دي سورت ته ځکه جاثیة وایې چي دحساب په ورځ به خلک دومره کړاوونه ووېني چي له ډېري وېري به په ګونډو شي او دحساب انتظار به کوي او خلګو ته به داسي خواشینونکي سختي ورسېږي چي کله یې په زړه هم نه تېرېدلې ﴿ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً ۚ كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰ إِلَىٰ كِتَابِهَا الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ په ربنتیا هم چي دغه خورا سخته ورځ ده چي ما شومان پکي بوډاګان کېږي

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ حم (۱) تَنزِيلُ الْكِتَابِ مِنَ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ (۲) إِنَّ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِّلْمُؤْمِنِينَ (۳) وَفِي خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِن دَابَّةٍ آيَاتٌ لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ (۴) وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِن رِّزْقٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ آيَاتٌ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ (۵) تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۖ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَ اللَّهِ وَآيَاتِهِ يُؤْمِنُونَ (۶) وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ (۷) يَسْمَعُ آيَاتِ اللَّهِ تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا ۖ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (۸) وَإِذَا عَلِمَ مِنْ آيَاتِنَا شَيْئًا اتَّخَذَهَا هُزُوًا ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ (۹) مِّن وَرَائِهِمْ جَهَنَّمُ ۖ وَلَا يُغْنِي عَنْهُم مَّا كَسَبُوا شَيْئًا وَلَا مَا اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ أَوْلِيَاءَ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (۱۰) هَٰذَا هُدًى ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ عَذَابٌ مِّن رِّجْزٍ أَلِيمٌ (۱۱) ۞ اللَّهُ الَّذِي سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ فِيهِ بِأَمْرِهِ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ (۱۲) وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِّنْهُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ (۱۳) قُل لِّلَّذِينَ آمَنُوا يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ (۱۴) مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا ۖ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ (۱۵) وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ (۱۶) وَآتَيْنَاهُم بَيِّنَاتٍ مِّنَ الْأَمْرِ ۖ فَمَا اخْتَلَفُوا إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ (۱۷) ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ مِّنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ (۱۸) إِنَّهُمْ لَن يُغْنُوا عَنكَ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا ۚ وَإِنَّ الظَّالِمِينَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۖ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ (۱۹) هَٰذَا بَصَائِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ (۲۰) ﴾

الجاثية: ۱ ــ ۲۰

### لغتونه:

(یبث) خپروي تیتوي (تصریف) اړولو ته وایې (ویل) هغه کلمه چي دعذاب او هلاکت لپاره استعمالېږي (أفاک) ډېر دروغجن (أثیم) ډېر ګنهګار (رجز) سخت عذاب (یصر) له اصرار څخه اخیستل شوی او په ټینګار سره دیو کار کولو عزم ته اصرار وایې (یغني) دفع کول یا ګټه رسول لکه چي الله فرمایې (ماأغنی عنی مالیه) (الحاقة: ۲۸) (بصائر) نښي نښانې او دلائل.

## تفسير:

﴿ حمٓ ﴾ له مقطعاتو تورو څخه دی چي د قرآنکريم په اعجاز تنبيه ورکوي (١) ﴿ تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ (نازلېدل د کتاب له طرفه د الله دی چي ډېر غالب قوي دی ښه حکمت والادی) يعني دغه قرآنکريم د هغه الله له لوري نازل شوی چي غالب دی پخپله پاچهي کي د حکمت خاوند دی په خپله صنع کي هغه چي هيڅ کار بې له حکمته اومصلحته نه کوي ورپسې الله تعالی دوحدانيت اوقدرت دلائل داسي راوړي ﴿ إِنَّ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ لَءَايَٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴾ ببشکه په پيدا ښت د آسمانونو کي اوپه ځمکي کي خامخا ډېر دلائل (د قدرت) دي مؤمنانو ته (هغو کسانو ته چي د الله په وجود او وحدانيت باور کوي) ﴿ وَفِى خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِن دَآبَّةٍ ءَايَٰتٌ لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴾ اوپه پيدا کولو د هر يوه ستاسي کي اوپه هغه څه کي چي خواره کړي دي الله په ځمکه کي (له هر ډول خوځېدونکو) ډېر دلائل (د قدرت او استدلال) دي لپاره د هغه قوم چي (په قدرت د رب العالمين) يقين کوي ﴿ وَٱخْتِلَٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ ﴾ اوپه اختلاف د شپې او د ورځي (په تياره اورڼا چي تل يو په بل پسي راځي ستوماني اوخلل پکي نه راځي اوپه ډېر دقيق نظام سره اوړي راوړي)

﴿ وَمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مِن رِّزْقٍ ﴾ اوپه هغه کي چي الله نازل کړي دي له (طرفه د) آسمانه له (اسباب د رزق (بارانه) هغه چي په هغه سره د بشر معاش اورزق تأمينېږي . ابن کثير وايي چي الله تعالی باران په رزق ونوماوو ځکه په هغه سره رزق پيدا کېږي (٢) ﴿ فَأَحْيَا بِهِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ پس الله ژوندي کړه په دې (اوبو) سره ځمکه پس له مرګه (وچوالي) د هغې (نو قسما قسم فصلونه مېوې اونباتات يې رازرغونه کړل) ﴿ وَتَصْرِيفِ ٱلرِّيَٰحِ ﴾ اوپه بدلولو د بادونو (په يو قسم بل قسم سره له شماله جنوب ته اوله سړو څخه ګرمو ته ﴿ ءَايَٰتٌ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ (دلائل (د قدرت) دي لپاره د (هغه) قوم چي عقل چلوي) يعني په دې ګردو څېزونو کي ښکاره نښې نښانې دي چي د الله په وجود او وحدانيت ګواهي ورکوي لپاره د هغه قوم چي روښانه عقول اورڼا بصيرتونه لري صاوي وايي چي الله تعالی شپږ دلائل په دريو آيتونو کي بيان کړي لومړی آيت يې په (للمؤمنين) پای ته رسولی دوهم يې په (يوقنون) باندي اودريم يې په (يعقلون) سره بشپړ کړی دی ددوی ترمينځ بدلون اوتوپېر پدې ډول کېږي چي انسان کله آسمانونه اوځمکي ګوري اوپکي سوچ کوي دې پايلي اونتيجې ته رسېږي چي خامخا دغه يو پيدا کونکی لري اوپه وجود يې باوراو ايمان راوړي کله چي بيا د خپل ځان اونورو پيدا ښت کي سوچ کوي دغه باور او ايمان يې پخېږي اويقين ته رسي او چي کله بيا په ګردو پېښو حوادثو او کائناتو کي نظر ځغلوي نو عقل يې بشپړېږي اوعلم اوپوهه يې ټينګار او استحکام مومي (٣) ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِٱلْحَقِّ ﴾ دغه (علامې د قدرت لوی)

---

(١) وګوره تفصيل د دغي خبرني د البقره سورت د پيل په تفسير کي

(٢) د ابن کثير مختصر ٣/٣٠٨

(٣) په جلالين باندي د صاوي حاشيه ٤/٢٣

دلائل (دقدرت) دالله دي چي موږ يې په تاباندي لولو (اى محمده!) په حقه سره (داسي څرګند دي چي هيڅ پټوالى اوغموض پکي نشته) ﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍۭ بَعْدَ ٱللَّهِ وَءَايَٰتِهِۦ يُؤْمِنُونَ﴾ پس پر کومه يوه خبره پس له خبري دالله (قرآن) اوپس له دلائلو (دقدرت) دالله به دوى ايمان راوړي؟ (بلکه نه يې راوړي مقصد ددوى دهغه تکذيب چي دقرآن کريم په وړاندي يې درلودا ستعظام (لويوالى) دى يعني سره له ښکاره بيان اواعجازه دوى ورباندي ايمان نه راوړي) ﴿وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ﴾ خرابي هلاک افسوس دى هر دروغ تړونکي ګنهګارته امام رازي وايي دغه ستروعيد دى او(أفاك) د هر دروغ تړونکي (أثيم) خورازيات ګنهګارته وايي([1]) ﴿يَسْمَعُ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ تُتْلَىٰ عَلَيْهِ﴾ چي اوري آيتونه دالله چي لوستل کېږي پر ده (خوراڅرګند (خوراښکاره اوروښانه) ﴿ثُمَّ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا﴾ بيالانبه کلک شي په کفر خپل پدې حال کي چي متکبر (ګرزېدونکى) وي له ايمانه) لکه چي نه يې دي اورېدلي هغه (آيتونه دقرآن) ﴿فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ پس زېرى ورکړه ده ته (اى محمده) په عذاب دردناک سره . دغه بې بشارت ونوماووچي پردوى باندي تهکم اواستهزاء وشي ځکه زېرى اوبشارت خودخوشحالونکي خبرلپاره راځي په التسهيل کي ليکي چي عطف يې د(ثم) په توري سره راووړچي داصرار سترتوب وښيي چي سره له دې چي دالله آيتونه اوري خوبياهم کفرغوره کوي دغه له عقل اوطبيعت څخه ډېرليري دى ([2]) مفسرين کرام وايي: دغه آيتونه د(نضربن حارث) په هکله نازل شوى هغه به دعجمو خبرونه اخيستل اوراغونډول بيابه يې خلک دقرآن کريم له اورېدلو څخه ورباندي مشغولول دآيت حکم عام اودهرهغه چالپاره چي داسي کوي ثابت دى ﴿وَإِذَا عَلِمَ مِنْ ءَايَٰتِنَا شَيْـًٔا ٱتَّخَذَهَا هُزُوًا﴾ اوکله چي پوه شي له آيتونو دهغه کتاب چي په محمد(ص) باندي نازل شوى(قرآن) زموږ پريوڅه شي نونيسي يې په ټوکو اومسخرو دغه (دروغجنان متکبران اواستهزاء کونکي) ﴿أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ (شته دوى ته عذاب سپکونکى) يعني دغو په قرآن باندي ملنډي وهونکو ته سخت عذاب سره له سپکاوي اواهانته انتظارباسي ﴿مِّن وَرَآئِهِمْ جَهَنَّمُ﴾ وروسته له (مرګه) ددوى دوزخ دى) يعني ددوى په وړاندي دوزخ دوى ته سترګي په لاردى ځکه چي دوى په دنياکي له حق څخه تکبرکاوو ﴿وَلَا يُغْنِى عَنْهُم مَّا كَسَبُوا۟ شَيْـًٔا﴾ اودفع به نکړي له دوى نه هغه څېزچي کسب يې کړى وي دوى هيڅ څېز(له عذابه) يعني دوى ته به ددوى دنياوي املاک لکه مال اواولادڅه ګټه ورونه رسوي ﴿وَلَا مَا ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْلِيَآءَ﴾ اونه (به دفع کوي) هغه بتان چي دوى بې له الله دوستان نيولي دي(اوپه دنياکي به يې عبادت کاوو) ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ اوشته دوى ته عذاب ډېرلوى (تلپاتي دردناک ابوالسعودوايي چي دنفى په مينځ کي نفي راوړل چي ﴿وَلَا مَا ٱتَّخَذُوا۟﴾ سره له

---

([1]) کبيرتفسير ٢٧/ ٢٦١

([2]) التسهيل ٤/ ٣٨

دې چې دبتانو ګټه نه رسول خوښخي څرګندا وترمال اولادښکاره بربنډدي ددې لپاره شوي چې دوی به عقيده لرله دغه بتان به دقيامت په ورځ زموږشفاعت کوي همداراز يدې کي پردوی باندي تهکم اواستهزاء هم راغلي ده ﴿ هَٰذَا هُدًى ﴾ دغه (قرآن کامل ) هدايت دی (چې څوک ورباندي ايمان راوړي اوپلوي يې وکړي) ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمۡ ﴾ اوهغه کسان چې کافران شوي دي په آيتونودرب خپل (قرآن کريم باندي سره له څرګندوالي يې يدې کي ددوی دکفرزيات شناعت اودحال بدوالی اوفظاعت دی ﴿ لَهُمۡ عَذَابٌ مِّن رِّجۡزٍ أَلِيمٌ ﴾ شته دوی ته عذاب له (هغه ډېرسخت) عذاب دردرسونکي څخه.

زمخشري وايې چې رجز سخت عذاب ته وايې اومرادله ﴿ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمۡ ﴾ څخه قرآن دی([1]) له دې وروسته کله چې الله دوی ته په قسماقسم عذابونوتهديدوکړ سترنعمتونه ورپه يادوي ترڅوچې شکريې اداکړي اودالله توحيدومني فرمايې ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِي سَخَّرَ لَكُمُ ٱلۡبَحۡرَ ﴾ الله هغه ذات دی چې مسخرکړی يې دي (په حکمت اوقدرت خپل) تاسي ته بحرسيند(سره له لويوالي دهغه او ژوروالي يې) ﴿ لِتَجۡرِيَ ٱلۡفُلۡكُ فِيهِ بِأَمۡرِهِۦ ﴾ چې ګرزي بېړۍ په دغه (بحر)کي په امرحکم دالله سره (پرته له دې چې پکي ډوبې شي. امام فخررازي وايې چې داوبومخ يې داسي ښوی پيداکړی دی چې بېړۍ ورباندي درومي اولرګي ته يې داسي خانګړتيا وربښلي چې داوبوپه سرګرزي اودغه له يوالله پرته دبل چاپه واک اوخواک کي نشته ([2]) ﴿ وَلِتَبۡتَغُواْ مِن فَضۡلِهِۦ ﴾ اولپاره ددې چې طلب کوی تاسي دالله له فضله (په سوداګري کولو، ملغلري لؤلؤاو مرجان اوماهيانوله بحره راايستلو سره) ﴿ وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ﴾ اولپاره ددې چې شکريې وباسئ (په نعمتونواو مهربانيو باندي قرطبي وايې: الله تعالی دخپل بشپړقدرت اوپه بندګانوباندي دپوره نعمت يادونه وکړه اودايې بيان کړل چې دغه ګرددالله فعل؛ خلقت، انعام اواحسان دی([3]) ﴿ وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعًا مِّنۡهُۚ ﴾ اوپه کارلګولی مسخرکړی يې دي تاسي ته هرهغه شيان چې په آسمانونوکي دي (لکه لمر، ستوري اوسپوږمۍ) اوهرهغه شيان چې په ځمکه کي دي (لکه اوبه، سيندونه، غرونه، خاوره، حيوانات اونور) ټول (تابع) له (طرفه د) الله (دي) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ بېشکه په دغه (تسخير) کي خامخالوی دلائل (دقدرت) دي لپاره دهغه قوم چې فکر کوي (په دغومخلوقاتوکي بياد الله له دغه بديع صنعتونوڅخه دالله په قدرت او وحدانيت باندي دليل نيسي او ورباندي ايمان راوړي. کله چې الله تعالی دخپل قدرت توحيداوحکمت دلائل وښودل ورپسې دښوا خلاقواونېکو کړو وړو دفضائلو ښوونه هسي کوي چې: ﴿ قُل لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ يَغۡفِرُواْ لِلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ

---

([1]) الکشاف ۴ /۲۳۷

([2]) کبيرتفسير ۲۷ /۲۶۲

([3]) دقرطبي تفسير ۱۲ /۱۲۰

﴿أَيَّامَ اللَّهِ﴾ (ووايه (اى محمده) هغه كسانوته چي ايمان يې راوړى دى چي ښښنه وكړي (دآزار) هغوكسانوته چي هيله نلري دورخو(دحوادثو، وقائعود) الله ) يعني كفاروته دي دهغوبدوافعالواوتېريومغفرت وكړي چي له هغوى نه صادرشوي وي مقاتل وايي: له كفاروڅخه يوه تن عمر ؓ ته په مكه كي ښكنځل وكړل عمر ؓ وغوښتل چي هغه ته دخپل بدعمل سزاوركړي نوالله ﷻ دعفوي اوتجاوز امرصادركړاو دا آيت شريف نازل شو(۱)اومرادله ﴿لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ﴾ څخه دادي چي دوى دالله له نيولواوعذاب څخه نه وېرېږي څكه چي دوى په آخرت هدووايمان نلري اونه دالله سره دپيوستون هيله لري. ابن كثيروايي چي: مسلمانانوته ددې حكم شوى دى چي دمشركانواواهل كتاب په آزارونودي صبروكړي او ودي زغمي ترڅودهغوى زړونه رامات شي څوكله چي هغوى پخپل كفراو عنادباندي اصراروكړنو الله بياورته دجلاداوجهادمارېينه وكړه(۲)﴿لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ (دپاره ددې چي الله جزاء وركړي هغه قوم ته پرهغه چي وو دوى چي كسب به يې كاوو) پدې كي وعيداوتهديددى يعني ددې لپاره چي كفارومجرمانوته ددوى دګناه اوجرم په سبب جزاور كړي اوتنكيردتحقيرلپاره دى ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا ۖ﴾ هرهغه څوك چي وكړي (كوم كار) نيك نو(وكړه داكار) لپاره د(نفعي د) ځان اوهرهغه څوك چي وكړي (كوم كار) بدپس پرهم ده ده (وبال اوضرريې )بل چاته يې ګټه اوضررنه رسي) ﴿ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ﴾ بيا خاص رب ستاسي ته به بېول كېږى (په قيامت كي لپاره د جزا داعمالونېكوكارته دنېكي جزاء او بدكارته دبدي سزاكله چي الله دعمومي نعمتونويادونه وفرمايله ورپسې يې دخصوصي نعمتونوبيان داسي زيات كړچي په بني اسرائيلويې لوروليي وو: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ﴾ اوخامخاپه تحقيق وركړى وومونږبني اسرائيلوته كتاب (تورات) اوحكم (په تورات په مينځ د خلكوكي اونبوت (موسى اوهارون ته له دوى نه) ﴿وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ﴾ اوروزي مو وركړي وه دوى ته له پاكوحلالوڅېزونوڅخه (لكه من اوسلوى يانورخوراكي اوڅښاكي توكي غذاګاني اومېوې ) ﴿وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ اوفضيلت وركړى وو مونږدوى ته په خلكو (د زمانې خپلي) صاوي وايي مقصدله دې څخه درسول الله ﷺ تسليت اوډاډينه ده لكه چي ويلي يې دي اى محمده ته دخپل قوم په كفرمه غمجن كېږه ! څكه چې مونږ بني اسرائيلوته ډېرسترنعمتونه اوكتاب وركړى ووخودوى دنعمتونو ناشكري وكړه اوپخپل كفريې اصرار اوټينګاروكړهمداسي ستاقوم هم دى (۳)﴿وَآتَيْنَاهُمْ بَيِّنَاتٍ مِنَ الْأَمْرِ﴾ او وركړى وو مونږدوى ته ښكاره دلائل له امره او(له ديني احكامو) يعني دوى ته مود شريعت چاري اودمحمد ﷺ په هكله په

---

(۱) كبيرتفسير ۲۷ / ۲۲۳

(۲) دابن كثيرمختصر

(۳) دصاوي حاشيه په جلالين

بشپړه توګه بیان کړې وو. ابن عباس وايي چي ﴿ بَيِّنَٰتٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡرِۖ ﴾ يعني دمحمد ﷺ په باب معلومات اودنبوت شواهد يې موږ ورته ښودلي ووچي له تهامه څخه به يثرب ته هجرت کوي اوهغه خلګ به يې ملاتړ اونصرت کوي (۱) ﴿ فَمَا ٱخۡتَلَفُوٓاْ إِلَّا مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ ٱلۡعِلۡمُ ﴾ پس دوی اختلاف ونکړ مګرپس له له هغه چي راغی دوی ته علم (په صدق دنبوت دده) ﴿ بَغۡيَۢا بَيۡنَهُمۡۚ ﴾ له جهته دهغه ضداوعناده چي ددوی په مينځ کي وو(اودرياست او واکمني غوښتنه يې درلوده. امام فخر رازي وايي چي مقصودله دغه حالته څخه تعجب دی ځکه چي په يوځېزباندي علم راتلل اختلاف له مينځه وړي اودلته بياد پوهي اوعلم شتون داختلاف سبب شوځکه چي ددوی مقصد داسي علم نه ووچي اختلاف دي له مينځه يوسي بلکه ددوی مقصدد رياست غوښتل اوړومبی کېدل ووځکه نوچي کله وپوهېدل عنادته يې مخه کړه (۲) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ يَقۡضِي بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخۡتَلِفُونَ ﴾ ببشکه رب ستا به حکم وکړي په مينځ ددوی (اوستاسي) کي په ورځ دقيامت په هغه شي کي چي وودوی چي په هغه کي به يې سره اختلاف کاوو) يعني الله به د قيامت په ورځ دخپلو بندګانو ترمينځ فيصلې وکړي په هغودينې چاروکي چي دوی به يې په هکله يوله بل سره اختلاف کاوو په آيت شريف کي دمشرکانولپاره زجردی چي دهغو تېروسرغړونکو اُمتونو تګلاره دي نه تعقيبوي ﴿ ثُمَّ جَعَلۡنَٰكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡرِ فَٱتَّبِعۡهَا ﴾ بيامو وګرزولې ته ولاړپه شريعت ارته لاره له کاره ددين پس دهغه متابعت وکړه (کوم چي تاته دسم دين وحی کاووشي) ﴿ وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَآءَ ٱلَّذِينَ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾ (اومتابعت مکوه دآرزوګانودهغوکسانوچي دوی نه پوهېږي (په حقيقت دتوحيد) يعني د مشرکانو ګمراهانو دآرزوګانو متابعت مکوه. بيضاوي وايي معناداچي دهغوجاهلانوچي دخپلو خواهشاتو تابع وي رايه مه منه دغه قريشي سرداران ووچي ورته ويل به يې: دخپلو پلرونودين ته راستون شه!(۳) ﴿ إِنَّهُمۡ لَن يُغۡنُواْ عَنكَ مِنَ ٱللَّهِ شَيۡـٔٗاۚ ﴾ ببشکه چي دوی له سره به دفع نه کړي له تا(له عذابه د) الله هيڅ شی (که چېري ته ددوی دغوښتنوپلوي وکړې ﴿ وَإِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۖ ﴾ اوبېشکه چي ظالمان ځيني ددوی دوستان (کارساز)دي دځينونورو(په دنياکي اوپه آخرت کي ددوی کارجوړونکی اودوست نشته) ﴿ وَٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلۡمُتَّقِينَ ﴾ اوالله ولي دوست دمتقيانودی(په دنيا اوآخرت کي) ﴿ هَٰذَا بَصَٰٓئِرُ لِلنَّاسِ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٞ لِّقَوۡمٖ يُوقِنُونَ ﴾ دغه (قرآن) بصيرتونه پندونه دروښنايي اورڼادي) لپاره دخلګو اوهدايت لارښوونه اورحمت دی لپاره دهغه قوم چي يقين راوړي (په بعث باندي).

(۱) دجمل حاشيه ۴/ ۱۱۲

(۲) کبيرتفسير ۲۷/ ۲۶۵

(۳) حاشيه شيخ زاده ۳/ ۳۲۳

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَن نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ۚ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٢١﴾ وَخَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ وَلِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٢﴾ أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ وَأَضَلَّهُ اللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلَىٰ بَصَرِهِ غِشَاوَةً فَمَن يَهْدِيهِ مِن بَعْدِ اللَّهِ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٢٣﴾ وَقَالُوا مَا هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ ۚ وَمَا لَهُم بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۖ إِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿٢٤﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ إِلَّا أَن قَالُوا ائْتُوا بِآبَائِنَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٢٥﴾ قُلِ اللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَخْسَرُ الْمُبْطِلُونَ ﴿٢٧﴾ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً ۚ كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰ إِلَىٰ كِتَابِهَا الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٨﴾ هَٰذَا كِتَابُنَا يَنطِقُ عَلَيْكُم بِالْحَقِّ ۚ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٩﴾ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِي رَحْمَتِهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ ﴿٣٠﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴿٣١﴾ وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا قُلْتُم مَّا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِن نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ ﴿٣٢﴾ وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٣٣﴾ وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا وَمَأْوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٣٤﴾ ذَٰلِكُم بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٣٥﴾ فَلِلَّهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَرَبِّ الْأَرْضِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٣٦﴾ وَلَهُ الْكِبْرِيَاءُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٣٧﴾ ﴾ الجاثية: ٢١ ـ ٣٧

**مناسبت:**

کله چي الله تعالی دبني اسرائيلو ضلالتونه او گمراهي بيان کړي او دابي وښودل چي قرآن کريم رڼا او هدايت دی وروسته بې زياته کړه چي مؤمن او کافر سره برابر نه دي اونه هم نيکوکار له بدکاره سره پرتله کېدای شي دغه عدم مساوات په دنيا او آخرت دواړو کي شته له دې وروسته بيا په بعث او نشور دلائل وړاندي کوي.

**لغتونه:**

(اجترحوا) چي ترسره کړي بې دي له اجتراح څخه اخيستل شوی او جارحه هم له دغي کلمې څخه دی (غشاوة) پرده، مخ پوټی، برغولی (جاثية) په گونډو (نستنسخ) موږ ليکو نسخ ديو څېز تدوين او ليکلو ته وايي (حاق) نازل شو او چاپېر وگرځېدو (يستعتبون) د الله رضايت غوښتنه کول (الکبريآء) عظمت پاچهي او جلال ته وايي.

دنزول سبب:

روایت کېږي چي ابو جهل یوه شپه په بیت الله شریفه طواف کاوو او ولید بن مغیره ورسره وو نود رسول الله ﷺ په شان کي یې خبري اتري پیل کړې ابو جهل وویل: زمادي په الله سوگندوي چي زه پدې بنه پوهېږم هغه رښتونی دی ولید ورته وویل: چي نه، ته په څه توګه ورباندي پوهېدلی یې؟ ابو جهل ور غبرګه کړه چي ای دعبدشمس پلاره موږ هغه په هلکتوب کي الصادق او أمین بالو اوکله چي یې عقل بشپړ او سړیتوب ته ورسېدو نوموږ یې دروغجن او خائن بولو!! زمادي په الله سوګندوي چي زه بنه پوهېږم هغه صادق دی نو ولید ورته زیاته کړه بیا ولي ورباندي ایمان نه راوړې؟ هغه ورته وویل: چي بیا به دقریشو نجوني وایې چي: ماد ابوطالب دیتیم ورا ره متابعت او پیروي دیوې مړۍ ډوډۍ لپاره وکړ زمادي په لات او عُزّٰی سوګندوي زه به یې هیڅکله هم متابعت ونکړم او نه به ورباندي ایمان راوړم (۱) نو دغه آیت شریف نازل شو چي: ﴿ أَفَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ وَأَضَلَّهُ ٱللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِۦ وَقَلْبِهِۦ ﴾ دآیت دآیت ترپایه.

تفسیر: (۲۱)

﴿ أَمْ حَسِبَ ٱلَّذِينَ ٱجْتَرَحُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ﴾ (استفهام دانکار لپاره دي) آیا ګمان کوي هغه کسان چي بدکارونه یې کړي دي (کفار دي) ﴿ أَن نَّجْعَلَهُمْ كَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ چي وبه ګرزوو موږ دوی په شان دهغو کسانو چي ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) ﴿ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ﴾ برابر (او یو شاني) به وي ژوندون ددوی او مرګ ددوی (بلکه ندی برابر مؤمنان له کفار و سره نه په دنیاکي او نه هم په آخرت کي ځکه مؤمنان په تقوی او طاعت کي ژوند کوي او کفار بیا په ناولتیا او معصیت کي شپې ورځي سباکوي ددوی ترمینځ خورا ستر واټن دی لکه چي الله فرمایي: ﴿ أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا ۚ لَّا يَسْتَوُۥنَ ﴾ (السجدة: ۱۸) مجاهد وایي: مؤمن په ایمان مري په ایمان راپاځېږي او کافر بیا په کفر مري او په کفر راپاڅول کېږي (۲) ﴿ سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴾ بد دی هغه چي دوی حکم کوي (چي دابرابر دي) ابن کثیر وایي: معنا داچي ددوی دغه ګمان پر موږ او زموږ پر عدل باندي ناروا ګمان دی چي موږ به دکفار و فجار و او مؤمنینو ابرار و ترمینځ یو شان ته برابري منو لکه چي له أغزي څخه انګور نشي ترلاسه کېدای همداسي فجار د ابرار و منزلت نشي ترلاسه کولای (۳) ﴿ وَخَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ ﴾ او پیدا کړي دي الله آسمانونه او ځمکه پر حقه باندي (ترڅو چي پردوی باندي دخپل قدرت او وحدانیت دلالت وکړي) ﴿ وَلِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ لپاره ددې چي

---

(۱) مقاتل روایت کړي القرطبي ۱۲/ ۱۷۰

(۲) القرطبي ۱۷۲

(۳) دابن کثیر مختصر ۲/ ۳۱۱

جزاور کړه شي هرنفس ته په هغه عمل سره چي کړی يې وي او پر دوی به ظلم ونکړی شي (چي دمؤمن له ثوابه څه لږ شي اويادکافرپه عذاب څه ورزيات شي . شيخ زاده وايي :کله چي الله آسمانونه اوځمکي دحق داظهار لپاره پيداکړې اودهغوی پيدايښت دالله دحکمت اوعدل غوښتنه وه نوله دې څخه دالازمېږي چي دمظلوم لپاره دې له ظالم څخه کسات واخلي نوپدې باندي دحشراوبعث ، نشورثبوت کېږي (۱) ﴿ أَفَرَءَيۡتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ ﴾ آياپس ويني ته هغه څوک چي نيولی وي ده معبود خپل آرزو(دنفس) خپل) يعني ای محمده دهغه چاله حاله خبرراکړه چي خپل خواهش يې معبود ګرزولی اودالله عبادت يې پرې اېښی وي ؟! په البحرالمحيط کي وايي معناداچي هغه دخپل خواهش منونکي وي هرلوري ته چي يې بولي دی يې پلوي اومتابعت کوي (۲)ابن عباس وايي : معناداچي دغه کافردين دخپل خواهش په غوښتنه جوړوي هرڅه چي يې خواهش وي دهغه متابعت کوي ﴿ وَأَضَلَّهُ ٱللَّهُ عَلَىٰ عِلۡمٍ ﴾ (اوګمراه کړی وي ده لره الله په علم باندي) يعني الله دغه بدمرغه پداسي حال کي چي په حق باندي پوه وي اوجاهل نه وي ګمراه کړی وي داترهغه ډېر بدتردی چي څوک په ناپوهي کي ګمراه شي ځکه له پوهي سره ګمراهي دعناد پايله اونتيجه وي لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَجَحَدُواْ بِهَا وَٱسۡتَيۡقَنَتۡهَآ أَنفُسُهُمۡ ظُلۡمٗا وَعُلُوّٗاۚ ﴾ (النمل: ۸۴) ﴿ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمۡعِهِۦ وَقَلۡبِهِۦ ﴾ اومهريې لګولی دي په غوږونو دده اوزړه دده (چي مواعظ وربانديي اغيزه نه کوي اونه هم په آياتونواونذُروکي سوچ کوي ) ﴿ وَجَعَلَ عَلَىٰ بَصَرِهِۦ غِشَٰوَةٗ ﴾ اوګرزولي يې وي په سترګودده پرده (سمه لاره نه ويني اونه هم دليل اوري چي لاره وروښيي ﴿ فَمَن يَهۡدِيهِ مِنۢ بَعۡدِ ٱللَّهِۚ ﴾ (پس څوک به لاره وښيي ده ته پس له (ګمراه کولود ) الله)؟ يعني څوک کولای شي چي هغه ته سمه لاره وروښيي وروسته له دې چي الله ګمراه کړي دی؟ ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ پس آياتاسي پند نه اخلی ؟(ای خلګو. صاوي وايي : الله کفارپه څلوروصفتونو ستايلي يوداچي دنفسي خواهشاتو عبادت کوي دوهم داچي ګمراهي يې له پوهي سره سره غوره کړي دريم داچي په غوږونو اوزړونويې مهرلګېدلی اوڅلورم داچي په سترګويې پردې دي اوداهرصفت دضلالت اوګمراهي غوښتونکی دی نوپه هيڅ توګه دوی ته لارښوونه ممکن نه ده (۳) بياالله تعالی دمشرکانوله قيامت څخه شبه اوانکار داسي بيانوي چي: ﴿ وَقَالُواْ مَا هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا ٱلدُّنۡيَا نَمُوتُ وَنَحۡيَا ﴾ (اووايي (کفار) نشته ژوندون مګرهمدغه ژوندون زموږ دی په دغي دنياکي چي مړه کېږو اوژوندي کېږو ) يعني مشرکان وايي چي له دغه ژونده پرته بل ژوندهډونشته دغه دنياوي ژونددی چي مړه کېږي ځيني زموږ اوژوندي کېږي پکي ځيني زموږ نورنه بعث اونه حشرشته ابن کثيروايي چي دغه د دهريانوويناده چي عربي مشرکان يې هم ملګري شوي اوله معادڅخه انکارکوي ددوی مراددادی چي له دې نه بغيرکوم بل ژوندنشته دغه ددهري فلاسفه ووحکماوو عقيده

(۱) شيخ زاده په بيضاوي ۳ /۳۲۵
(۲) البحرالمحيط ۸ /۴۸
(۳) دصاوي حاشيه په جلالين باندي ۴ /۲۷

ده هغوی چي له خالق څخه منکردي اوپدې باوردي چي هرذرې دېرش زره کاله وروسته هرڅېزخپلي اصلي بڼي ته رجوع کوي ګرزي[1] ﴿ وَمَا يُهۡلِكُنَآ إِلَّا ٱلدَّهۡرُۚ ﴾ اونه موهلاکوي مګرزمانه (تېرېدل چي شپې ورځي تېرېږي امام رازي وايي: دوی داسي انګېري چي دژوند اومرګ لپاره موجبات دغه دطبيعت تأثيرات اودافلاکو خوځښتونه اوحرکات دي اودخالق مختار وجودته اړتيانشته نودغه ډلګې ددووانکارونو اجتماع کوي يوداچي له الله څخه منکر اودوهم داچي وايي: بعث اونشور نشته[2]) الله تعالی ددوی په ترديد کي داسي فرمايي: ﴿ وَمَا لَهُم بِذَٰلِكَ مِنۡ عِلۡمٍۖ ﴾ او نشته دوی ته (په دغه نسبت کولو دمرګ زمانې ته) هيڅ قدرعلم (نه دوی عقلي سندلري اونه هم نقلي څکه نو بې له علمي سنده ، دليل او شاهده دالله له وجوده انکارکوي ﴿ إِنۡ هُمۡ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴾ نه دي دوی مګرګمان کوي (اواټکل چلوي وهم اوخيال څغلوي يقين پکي ځای نلري) ﴿ وَإِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٖ ﴾ (اوهرکله چي ولوستل شي پردغو(کفارو ) آيتونه د(قرآن) زموږښکاره) يعني کله چي مشرکانوته په بعث اونشور باندي مشتمل ښکاره آيتونه ولوستل شي ﴿ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمۡ إِلَّآ أَن قَالُواْ ٱئۡتُواْ بِـَٔابَآئِنَآ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ نونه وي حجت دليل ددوی مګرداچي وايي راولئ پلرونه زموږکه چېري تاسي رښتيني يئ (پدغه خپله ويناکي چي له مرګه وروسته ژوندشته ) ددوی دغي وييناته يې دتهکم په توګه دليل اوحجت ووايو ﴿ قُلِ ٱللَّهُ يُحۡيِيكُمۡ ثُمَّ يُمِيتُكُمۡ ﴾ (ووايه (ای محمده ! دوی ته) چي الله ژوندي کوي تاسي بياالله مړه کوي تاسي) يعني الله هغه ذات دی چي تاسي ته له نطفې څخه ژونددرکوي اوهغه ذات دی چي کله موټاکلي موده راشي تاسومړه کوي داسي نه دی لکه چي تاسوګمان کوی چي موږ دهراوزمانه پيداکوي اومړه کوي مو ﴿ ثُمَّ يَجۡمَعُكُمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ لَا رَيۡبَ فِيهِ ﴾ بيابه سره ټولوي تاسي ورځي دقيامت ته چي نشته هيڅ شک په (راتلود ) هغې کي څکه هغه څوک چي په لومړي پيدايښت قادروي هغه په اعاده باندي هم قدرت لري اودحکمت تقاضااوغوښتنه داده چي ګردخلګ دي دقيامت په ورځ هغه چي دهغې په راتلوکي هيڅ شک نشته را پاڅول شي اوخپله جزاء دي هرڅوک ترلاسه کړي ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾ وليکن زياتره (کافران) خلګ نه پوهېږي څکه چي جاهلان اوپه دليل اوتفکرکي تقصيرلرونکي وي دالله قدرت ورته معلوم نه دی نوله بعث اوجزآء څخه انکارکوي بياالله دحشراونشر امکان بيانوي اودقيامت دورځي احوال په تفصيل سره ښيي چي: ﴿ وَلِلَّهِ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ او خاص الله لره دی سلطنت دآسمانونو اودځمکي (علوي اوسفلي کائناتو) ﴿ وَيَوۡمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يَوۡمَئِذٖ يَخۡسَرُ ٱلۡمُبۡطِلُونَ ﴾ اوپه هغه ورځ کي چي قيامت ودرېږي نوپه دغه ورځ به زيان کاره شي مبطلان (کافران) ﴿ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٖ جَاثِيَةٗۚ ﴾ اووبه وينې ته ( ای مخاطبه په

---

([1]) دابن کثيرمختصر۳ /۳۱۷

([2]) کبيرتفسير۲۷ /۲۷۵

قيامت كي) هرأمت ناست په ځنګنونو (له ډېري وېري اوهيبته لكه چي مدعيان دحاكم په وړاندي په ځنګنونو عاجز اوپه خوف كي ډوب ناست وي. ابن كثيروايي داپه هغه وخت كي كله چي جهنم راوستل شي اوهغه چيغه وكړي ساوكاږي نوهيڅوک به پاتي نشي مګرچي په ګوندوبه شي([1]) ﴿ كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰ إِلَىٰ كِتَٰبِهَا ﴾ هريوأمت به رابللى شي په طرف دكتاب اعمالنامې خپلي (نووبه ويلى شي دوى ته له جانبه دالله تعالى چي:) ﴿ ٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ نن ورځ به جزاء دركړه شي (تاسي ته د) هغواعمالوچي وى تاسي چي كول به مو(په دنياكي له خيراوشرڅخه) ﴿ هَٰذَا كِتَٰبُنَا يَنطِقُ عَلَيْكُم بِٱلْحَقِّ ﴾ دغه كتاب زموږدى خبري كوي (اوشاهدي وايې) پراعمالود) تاسي باندي په حقه سره(چي نه پكي زياتوب شته اونه نقصان په التسهيل كي وايې چي: كه څوک پوښتي چي څرنګه يې دكتاب يوځل دوى ته نسبت وكړاوبل ځل يې الله ته؟ ځواب داچي دوى ته يې نسبت پدې وكړچي ددوى عملونه پكي ليكل شوي دي اوالله ته يې ځكه نسبت وكړچي هغه يې مالک دى او پرښتوته يې دليكلو امرهم هغه فرمايلى دى([2]) ﴿ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ بېشكه موږوو چي امربه موكاووپه ليكلوسره دهغه څيزچي وى تاسي چي كول به مو(په دنياكي) مفسرين كرام وايې چي (نستنسخ) دلته د(نكتب) په معنادى اونسخ په اصل كي له يوه ځخه بل ته نقل كولوته وايې ابن عباس ﵄ وايې: پرښتې دبنيادمواعمال ليكي اوبيايې آسمان ته اوچتوي اوبياله هغو مؤكلو پرښتو سره مخامخ كېږي كومي چي ددغواعمالنامو(چي حفظه ووليكلي) په ديوان ګمارلي شوي دي دوى ته له لوح محفوظ څخه په هرليلة القدركي هغه څه څرګندېږي كوم څه چي الله تريخواله پيدا ينبت دبندګانوليكلي (نودپرتله كولوپه وخت كي) نه يوحرف زياتېږي نه كمېږي همدغه استنساخ دى ابن عباس به ويل: آياتاسوعرب نه ياست؟ آيااستنساخ پرته له اصل څخه كېداى شي ؟([3]) له دې وروسته الله پاک دمطيعانواوعاصيانواحوال داسي بيانوي چي: ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِى رَحْمَتِهِۦ ﴾ پس هرهغه كسان چي ايمان يې راوړى وي اوكړي يې دي ښه (عملونه) پس ننې باسي دوى رب ددوى په رحمت (جنت) خپل كي (جنت ته ) يې رحمت ځكه ووايوچي داهسي ځاى دى چي هلته دالله رحمت نازلېږي ﴿ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْمُبِينُ ﴾ دغه (ننوتل جنت ته) همدغه ښكاره برى دى (چي تري پورته برى نشته) ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَفَلَمْ تَكُنْ ءَايَٰتِى تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ اوهرچي هغه كسان چي كافران شوي دي (وبه ويل شي دوى ته داسي ) آيانه ووآيتونه (دقرآن) زماچي لوستل كېدل به پرتاسي باندي؟ دغه به دوى ته دتوبيخ اوتقريع په توګه وويل شي) ﴿ فَٱسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴾ پس تكبرمو وكړ(ايمان موپرې نه راووړ له اوريدلوڅخه موڅنګ وكړ) اووى تاسي قوم ګنهګاران (كافران

---

([1]) دابن كثيرمختصر ۳ /۳۱۲
([2]) التسهيل لعلوم التنزيل ۴ /۴۰
([3]) البحرالمحيط ۸ /۵۱

غرق په گناه کي) ﴿ وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ ﴾ اوهرکله چي وبه ويل شو(تاسي ته ای کفاروچي) بېشکه چي وعده دالله حقه ده(بعث اونشورخامخاشته) ﴿ وَٱلسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا ﴾ اوقيامت (راتلونکی دی) شک پکي نشته ﴿ قُلْتُم مَّا نَدْرِي مَا ٱلسَّاعَةُ ﴾ نووبه ويل تاسو نه پوهېږو چي قيامت څه شی دی ؟(آياهغه حق دی که باطل؟ بيضاوي وايي دغه به دوی داستغراب تعجب اوزيات انکارپه ډول ويل(¹) ﴿ إِن نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا ﴾

گمان نه کوومگرلږ گمان(يعني موږ رباندي باورنلروخوله خلگو اورو چي قيامت شته نوموږ يې توهم کوو ﴿ وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ ﴾ اونه يو موږيقين راوړونکي (په راتلودقيامت همدغه يې دقيامت دانکارلپاره تأکيددی ﴿ وَبَدَا لَهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا عَمِلُوا۟ ﴾ اوښکاره به شي(په قيامت کي) دوی ته ناکاره وا لی بدي (جزاوي) دهغو(بدو)اعمالوچي دوی کړي وو(په دنياکي) ﴿ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ اوچاپېر(نازل) به شي پردوی(عذاب د)هغه څه چي وودوی په هغه پوري به يې مسخرې کولې (په دنياکي) ﴿ وَقِيلَ ٱلْيَوْمَ نَنسَىٰكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَـٰذَا ﴾ اووبه ويل شي چي نن ورځ به هېر کړو (پرې به ږدو) موږتاسي(په دوزخ کي) لکه چي تاسي هېرکړی وو ملاقات ددغي ورځي ستاسي (چي ديوم الميعادلپاره مودطاعاتوتوښه نه وه برابره کړې) ﴿ وَمَأْوَىٰكُمُ ٱلنَّارُ ﴾ اوځای ستاسي اوردی ﴿ وَمَا لَكُم مِّن نَّـٰصِرِينَ ﴾ اونشته تاسوته هيڅوک له مددگارانو(چي ترې خلاص مو کړي) ﴿ ذَٰلِكُم بِأَنَّكُمُ ٱتَّخَذْتُمْ ءَايَـٰتِ ٱللَّهِ هُزُوًا ﴾ دغه (تعذيب له دې سببه دی) چي بېشکه تاسي نيولي وو آيتونه (دقرآن د) الله په ټوکوسره ﴿ وَغَرَّتْكُمُ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا ﴾ اومغرور کړي وی تاسي دغه ژوندون ددنيا (چي ترديې يې راورسولی چي گمان مونه کاووله دې ژونده پرته دي بل ژوندبعث اونشور هم وي) ﴿ فَٱلْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴾ نونن ورځ به نه دوی له دوزخه ايستلی شي اونه به ددوی عذرقبول او(توبه منلی) شي ځکه په دغه ورځ توبه اوطاعت نفع نه رسوي ﴿ فَلِلَّهِ ٱلْحَمْدُ رَبِّ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَرَبِّ ٱلْأَرْضِ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ (پس خاص الله لره دي ټوله ثناصفت چي رب دآسمانونواورب دځمکي دی رب دټولوعالميانودی) يعني خاص الله لره حمددی بل هيڅوک دحمدمستحق نه دی يوازي هغه ذات دحمدمستحق دی چي خالق مالک دگردوکائناتودی ﴿ وَلَهُ ٱلْكِبْرِيَآءُ فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ اوخاص الله لره ده لويي په آسمانونواوځمکي کي (دعظمت اوجلال بقاء اوکمال په علوياتواوسفلياتوکي الله لره دی) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ اوهم دی دی ښه غالب قوي (چي مغلوبېدلای نشي) ښه حکمت والا(پخپل صنع ، فعل اوتدبيرکي چي هيڅ کاريې له مصلحته نه کوي).

بلاغت: پدغه سورت کي چي دبلاغت بياني اوبديعي کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

---

(¹) حاشية الجمل ٤ /١٢٢

۱ – تاکید په إن او لام سره لکه: ﴿ إِنَّ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ لَأٓيَٰتٍ ﴾ ځکه چي مخاطبين د الله له وحدانيته منکر دي.

۲ – د مبالغې صيغه لکه ﴿ وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴾ ځکه چي فعال او فعيل د مبالغې صيغې دي

۳ – تهکمي اسلوب په دې کلام کي ﴿ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ ځکه بشارت او زېرى د خوښي او ښېګڼي لپاره وي دلته د استهزآء لپاره راوړل شوى دى

۴ – مرسل مجاز لکه چي فرمايي: ﴿ وَمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مِن رِّزْقٍ ﴾ رزق يعني باران او علاقه يې مسببيت دى ځکه رزق خو له آسمانه ،نه رانازلېږي بلکه باران راوري چي د رزق، روزي سبب دى

۵ – مرسله تشبيه لکه ﴿ يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا ﴾ يعني لکه چي د قرآن آيتونه يې اورېدلي نه وي.

۶ – مبالغه د مصدر په راوړلو سره لکه داچي: ﴿ هَٰذَا هُدًى ﴾ لکه چي قرآن له ډېره روښانه دليله پخپله هدايت وي.

۷ – د اطناب صنعت د لفظ په تکرارولو سره چي فرمايي: ﴿ سَخَّرَ لَكُمُ ٱلْبَحْرَ... وَسَخَّرَ لَكُم مَّا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ ترڅو د امتنان اظهار وشي.

۸ – سلبي طباق لکه: ﴿ فَٱتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾.

۹ – مرسل مجاز په دې آيت کي: ﴿ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِي رَحْمَتِهِۦ ﴾ په رحمت يعني په جنت کي ځکه چي هغه د رحمت ځاى دى.

۱۰ – د طباق صنعت چي فرمايي: ﴿ مَنْ عَمِلَ صَٰلِحًا فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ أَسَآءَ فَعَلَيْهَا ۖ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴾ او همداسي د ﴿ نَمُوتُ وَنَحْيَا ﴾ او ﴿ يُحْيِيكُمْ ..... يُمِيتُكُمْ ﴾ ترمينځ چي راغلى دى.

۱۱ – تصريحي استعاره چي کله فرمايي: ﴿ هَٰذَا كِتَٰبُنَا يَنطِقُ عَلَيْكُم بِٱلْحَقِّ ﴾ يعني شاهدي وايي پر تاسو استعاره دلته تر حقيقت لا زياته أبلغ ده ځکه چي د کتاب شاهدي په خپل بيان سره د انسان تر شاهدي په ژبه سره ډېره قوي ده.

۱۲ – د التفات صنعت لکه: ﴿ فَٱلْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا ﴾ دلته التفات دى چي له خطاب څخه غيبت ته راغلى ترڅو دوى د خطاب له مرتبې څخه وغورځوي

۱۳ – تمثيلي استعاره په دې آيت کي چي: ﴿ ٱلْيَوْمَ نَنسَىٰكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ﴾ د دوى پرېښودل به داسي وي لکه چي يو محبوس په يو داسي ځاى کي پرې ښودل شي چي د بنديخانې د مسئولينو له پامه وغورځي او د خوراک څښاک توکي ورته نه رسېږي ترڅو چي هلاک شي او دغه تمثيلي استعارې په توګه راغلى دى مقصد له آيت شريف څخه داچي په عذاب کي به پرېښودل شي او د هېر شوى محبوس په څېر به ورسره وشي ځکه الله تعالى خو له نسيان څخه منزه او پاک دي . د الجاثية تفسير بشپړ شو.

## داحقاف سورت مکي دی او پنځه دېرش آیتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دغه سورت مکي اواهداف يې ګردسره لکه دنورومکي سورتونوپه شان دعقيدې اصول لکه وحدانيت ، رسالت اوبعث اوجزاء دی دسورت محور درسالت اورسول په خواوشاراڅرخي ترڅو محمدي رسالت ثابت اودقرآن کريم رښتنولي وښيي

په پيل کي سورت له قرآن عظيم څخه غږېږي هغه چي دالله له لوري په حقه رانازل شوی دی ورپسې دبتانوخبري رااخلي هغوی چي مشرکانويې عبادت کاوو اوګمان يې درلودچي دغه معبودان به دالله په وړاندي ددوی شفاعت کوي نوددوی ګمراهي په ګوته کوي چي دوی دهسي څېزعبادت کوي چي نه اوري نه ګټه رسوي اوبيادمشرکانوهغه شک اوشبه راوړي چي دوی دقرآن کريم په هکله لرله هغه په کوټلي دليل اوبرهان سره ترديدوی.

ورپسې دبشريت دوې نمونې دهدايت اوضلالت له نظره ښيي چي ديوه صالح نيکوکاره او مستقيم دفطرت په لاره له مور اوپلاره سره نېکي کونکي زوی په بڼه چي هرڅومره يې عمرزياتېږي تقوی اوصلحيت يې ورسره نوره هم ېږي اوله مور اوپلارسره يې نېکي اواحسان اوج ته رسېږي يوه بله نمونه يې دبدمرغه ، اومنحرف له فطرته اودمور اوپلار آزاري زوي ښيي کوم چي له ايمان بېزاره اوپه ايمان پسې ټوکي مسخرې کوي بعث اونشور په دروغوليکه کوي سورت ددواړو انجام بيانوي . بياورپسې سورت دهودعليه السلام کيسه له خپله قومه عاديانوسره رااخلي هغوی چي په ښارونوکي يې طغيان پيل کړی اوپخپل قدرت اوځواک غره ووترڅوچي الله تعالی دوی په باداوهوا باندي هلاک کړل اوپدې کي دقريشي کفارولپاره غوږ وهنه ده چي طغيان ته يې لاس اوږد کړی اودالله له اوامروڅخه يې استکبارکړی درسول الله صلی الله عليه وسلم تکذيب يې کړی دی.

په پای کي سورت دځوتنوپېريانودکيسې يادونه کوي چي قرآنکريم ته يې غوږ کېښودوړباندي ايمان يې راووړاوبياخپل قوم ته ستانه شول چي هغوی ووېروي اوايمان ته بلنه ورکړي اوپدې کي دمعاندوانسانانولپاره يادونه ده چي پېريانان تردوی له مخه په اسلام مشرف شوي دي

### تسميه اونومول يې:

دغه سورت په (احقاف )ځکه ونومول شوچي (احقاف ) دعاديانوهستوګنځی دی کوم چي الله هغوی ددوی دطغيان اوجبروت په نتېجه کي هلاک کړل ددوی دغه مساکن ديمن په ځمکه کي وو

﴿ وَاذْكُرْ أَخَا عَادٍ إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُۥ بِالْأَحْقَافِ ﴾ دآيت ترپايه

## دپنځم ټوک پښتو صفوة التفاسیر دسورتونو اوآیتونو نوملړ

## دپنځم ټوک پښتو صفوة التفاسیر دسورتونو اوآیتونو نوملړ

صفوة التفاسیر 5 ټوک

د نصیراحمد احمدي

لخوا سکین او pdf سو

تاریخ. ۱۳۹۸-۱۱-۲۷

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محـتـاج احمدي!